# اِرشادُ الطّالِبین

پښتو شرح

# زادُ الطّالِبین

مؤلفه: مولانا عاشقِ الٰهی البرنی رحمه الله


تالیف
محمد عتیق الرحمٰن
مدرس جامعه اشرفیه، لاهور

نظرِ ثانی
حضرت مولانا صوفی محمد سرور صاحب حفظه الله
شیخ الحدیث جامعه اشرفیه، لاهور



مکتبه فریدیه
محله جنگی خوانی بازار پشاور
0345-9035870
0333-9261546

قریشی کتب خانه
محله جنگی پشاور
0332-9256693

# دکتاب پیژندنه ⇦


دکتاب نوم:.................... ارشادالطالبین پښتوشرح دزادالطالبین

مؤلف:.................................... مولاناعاشق الٰهی البرنی

تالیف: ...............................مولانا محمّد عتیق الرحمن صاحب

ناشر.................................. قریش کتب خانه ، محله جنګي پشاور

سیټنګ کونکے

صدیقیه

کمپوزنگ سنٹر

محلہ جنگی پشاور

زیر اہتمام قاری عبدالبصیر صدیقی لغمانی

0336-9157887 / 0344-9600941


Scanned by CamScanner

# فهرست مضامین

## تقریظ

دشیخ الحدیث حضرت مولانا صوفی محمد سرورصاحب دامت برکاتهم

بسم الله الرحمن الرحیم الحمدلله رب العالمین

والصلواة والسلام علی سیدالمرسلین وعلیٰآله واصحابه واتباعه اجمعین اما بعد :

دخپل آقا چه څومره هم شکر اوکړم کم دې.چه هغۀ کوم خانې په کروړونو انعامات راکړی دی.هلته نې یو ډیر لوئې احسان،اکرام او انعام بغیر داستحقاق نه داهم فرمائیلې دې.چه نیک اولاد نې راکړې دې.چه دا زما دسترګو یخوالې دې.الحمدلله حمدًاکثیرًا طیّبًا مبارکًا فیه کما یحبّ ربّنا ویرضی.ـــ دبنده مینځنې څوئې عزتمند محمدعتیق الرحمن سلمه دې وخت کښې په ټولو بچوکښې په ذهانت اومحنت کښې دټولونه وړاندې په نظر راځی.اللّٰهمّ زد فزد.او دهغې یوه نښه دهغۀ دامحنت دې.کوم چه هغۀ تقریبًا د پنځۀ ویشتو کالویه عمرکښې د زادُ الطالبین دمختصر شرح په صورت کښې تیارکړې دې.دا ددۀ ړومبنې تصنیف دې.اوبنده دالله تعالی رحمت نه د زیاتې ترقۍ اُمید ساتی.بنده داشرح دشروع نه تر آخره پورې یویو لفظ لوستلې ده.دخپل عمرپه لحاظ سره دعزتمند دا ډیر دحوصلې زیاتولو والا دینی خدمت دې.دترجمې او ترکیب نې پوره اهتمام کړې دې.په بعضې بعضې مسئلوکښې نې ډیرتفصیل کړې دې.او زیات ترنې دمختصر وضاحت نه کاراخستې دې.کوم چه د ړومبنی تصنیف کیدلوپه درجه کښې کامیاب محنت دې.ابتدائی طالبانو او عوامو دپاره یو ډیره زیاته فائده منده ذخیره ده.الله تعالی دې د عزت مند دا محنت قبول کړی.او دهغۀ او بنده مسکین دپاره دې دآخرت ذخیره جوړه کړی.آمین یا رب العالمین.

وصلّی الله تعالی علی سیّدنا ومولانا

محمّد وّآله واصحابه واتباعه اجمعین

.کتبه محمد سرورعفی عنه___ ۱۹ جمادی الاولی سن۱٤۱٤هـ

# تقریظ

دحضرت مولانا مفتی عبدالقادرصاحب مدظلهم
شیخ الحدیث دارالعلوم عیدگاه کبیروالا

بسم الله الرحمن الرحيم. الحمدلله الذي جعل علم الحديث زادًا للطالبين ومزادًا للراغبين وافضل الصلوات والتسليمات على من صدرمن مشكواة نبوته
جوامع الكلم ونبع من قلبه منابع الحكم
وعلى آله واصحابه الذين سمعوا احاديثه فحفظوها ووعوها واذوها كما سمعوا فرض الله عنهم اجمعين

اما بعد عزتمند رورحضرت مولانا عتیق الرحمن صاحب زید مجده په اردوکښې د زادالطالبین شرح بالکل دخوانی په شرع کښې اولیکله ماشاءالله دعلم طالبانو دپاره یوه بهترینه تحفه ده. دهرحدیث تخریج ئې سره دصفحې اوکړښې کړې دې دهرحدیث ترجمه او دهغې مفهوم اوتشریح اودهغې ترکیب ئې په ډیرښه اندازکښې لیکلې دې.او نکتې او لطائف بیانولو سره ئې دکتاب قدر زیات کړې دې

بنده ترجمه او تشریح کتلې ده.بعضې بعضې ځایونوکښې چه ئې خطائی اولیدله نودهغې اصلاح ئې اوکړه.الله تعالی دې دا شرح دطالبانو دپاره فائده منده اود مؤلف دپاره دې دخپلې رضا ذریعه جوړه کړی (آمین یارب العالمین)

عبدالقادر عفی عنه
مدرس دارالعلوم کبیروالا
(۲۰ شوال المکرم سن۱۴۱۴ه)

# تقریظ

(دحضرت مولانا محمدقاسم مدظلهم استاذالحدیث جامعه مدنیه لاهور)

بسم الله الرحمن الرحيم حامدًا ومصليًا

د بعضو احادیثو تشریح او تحقیق مې اوکتلو کلام مې ډیرښه.بهتر اوصحیح بیامونډلو.الله تعالی دې دخپلې رضا ذریعه جوړه کړی.اود دنیا اوآخرت ترقی دې ورکړی

آمین یارب العالمین فقط:

احقرمحمدقاسم خادم جامعه مدنیه (۱۹ شوال ۱۴۱۴ه)

## بسم الله الرحمن الرحيم

**الا لا آلآء الا آلآءُ الله      اللّهمّ صلّ علی سیّدنا ومولانا محمّد وّعلی آل سیّدنا ومولانامحمّد وّبارك وسلّم، امابعد:**

زادالطالبین چه دمولانا عاشق الهی البرنی صاحب تالیف دې کومّ چه د(۳۲۹) احادیثو مجموعه ده.داکتاب دطالبانو دپاره لوئې احسان دې.داکتاب دعلم حدیث فن سره تعلق ساتی اوپه دې خبره کښې هیڅ شك نشته.چه دعلم حدیث فن په ټولو فنونوکښې اعلی او افضل شمارلې شی.په دې سره په دین باندې پوهه حاصلیږی اود اخلاقو اصلاح کیږی. اوداکتاب چونکه د دویمې درجې په نصاب کښې هم شامل دې.ددې وجې نه طالبانوته دعلم صرف جاری کولوموقع په لاس ورځی اوپه دې کتاب سره دنحوی ترکیبونومهارت هم حاصلیږی اوپه علم ادب هم نظرساتلې شی.بیا چونکه دعلم دکمې په دې زمانه کښې

طالبان په هرفن کښې آسانتیا خوښوي په دې وجه احقر دا اوغوښتل چه ددې کتاب شرح اوليکلې شی چه په هغې کښې دهرحديث ترجمه اوتشريح او تخريج او لغوی او صرفی تحقيق او ترکيب ټول يوځائې جمع کړې شی اود ارشاد الطالبين (طالبانو ته لارښودونکې کتاب) په نوم سره دکتونکو دپاره تحفه (ډالئ) جوړه کړې شی.

الحمدلله! الله تعالی داکار د احقرنه واخستلو دټولو لوستونکو اوکتونکو نه ددعا درخواست دې چه الله تعالی خالص په خپل فضل وکرم سره داشرح قبوله کړی او بغير دعذاب نه جنت دټلو دپاره ئې زما ذخيره اوګرځوی.

آمین ثمّ آمین یاربّ العالمین، صلّی الله علی النّبیّ الاُمّیّ وآله وسلّم.

## د زادالطالبین طرز او خصوصیات

① ترکيبی حيثيت سره ټول احاديث جمع کړې شوی دی.

② دټولونه رومبې جمله اسميه سره شروع شوې ده بيا دهغې پنځه قسمه بيان شوی دی.

(۱) چه دهغې په شروع کښې الف لام وی (۲) هغه چه دهغې په شروع کښې الف لام نه وی.

(۳) هغه چه دهغې په شروع کښې لا نافيه وی (۴) هغه چه دهغې په شروع کښې انّ وی.

(۵) هغه چه دهغې په شروع کښې انّما وی.

③ بيائې جمله فعليه اوليکله چه په هغې کښې ئې شپږقسمونه جوړکړل (۱) بغير دځه حرف داخلولونه (۲) هغه چه دهغې په شروع کښې لا وی (۳) د امر اونهی په صورت کښې (۴) چه ليس ناقصه ئې په شروع کښې لګيدلې وی (۵) چه مَن حرف شرط پکښې راغلې وی (۶) چه اذا حرف شرط ورسره لګيدلې وی.

④ بيائې دبعضې مغيباتو (يعنی دغيب بعضې خبرو) په عنوان سره (۲۵) خبرونه د مغيباتو ذکرکړی دی.

⑤ بيائې دويم باب قائم کړې دې چه په هغې کښې ئې څلويښت قصې ذکرکړی دی.

## د ارشاد الطالبين طرز او خصوصيات

① عوامو اوخواصو ټولو دپاره مفيد دې ځکه چه دهرحديث ترجمه اوتشريح ليکلې شوې ده. ② چونکه د زادالطالبين ټول احاديث دمشکواة شريف نه اخستلې شوی دی دې وجې نه د قديمی کتب خانې والا دچهاپ مشکواة باقاعده هرحديث سره حواله ،صفحه نمبر اود کرښې نمبر ليکلې شوې دې (دتخريج په عنوان سره) ③ داصل کتاب نوم دهرحديث سره ليکلې شوې دې چه دمسلم دې يادبخاری ياد ابوداؤد ياد ترمذی وغيره.

④ دهرحديث سره دصحابی راوی نوم هم ليکلې شوې دې.

⑤ دترجمې اوتشريح نه علاوه دعلماؤ پداره لغوی او صرفی تحقيق اهتمام هم کړې شوې دې. ⑥ د رومبنی باب په هريو لفظ باندې اعراب هم لګيدلې دې او دويم باب باندې اعراب ددې وجې نه نه دی لګيدلې چه طالبان په عبارت لوستلوکښې مهارت حاصل کړی.

⑦ دکوم حديث چه شان ورود وی (يعنی په يوه موقع کښې هغه حديث بيان شوې وی) هغه هم تشريح سره اويه بعضې ځايونوکښې جدا عنوان سره ليکلې شوې دې.

⑧ دکتاب تصحيح او نظرثانی دبنده والدصاحب حضرت صوفی محمد سرورصاحب مدظلّهم کړې ده اوحضرت مفتی عبدالقادرصاحب د دارالعلوم کبيروالا شيخ الحديث کړې دې

# هغه کتابونه چه دهغې نه په دې شرح کې مدد اخستلې شوې دې یائې حواله ورکړې شوې ده

۱) مشکواة ۲) مرقات شرح مشکواة ۳) لمعات ۴) بخاری
۵) مسلم ۶) ترمذی ۷) ابوداؤد ۸) ابن ماجه
۹) نسائی ۱۰) بیهقی ۱۱) دارمی ۱۲) رزین
۱۳) احمد ۱۴) شافعی ۱۵) شرح السنة ۱۶) فتح الباری
۱۷) عمدة القاری ۱۸) الخیرالجاری ۱۹) فتح الملهم ۲۰) ارشاد الساری
۲۱) مجمع الزوائد ۲۲) الخیرالاصول ۲۳) خداکی باتین ۲۴) السراج المنیر
۲۵) حسن المعبود ۲۶) المنجد ۲۷) مصباح اللغات ۲۸) لغات فیروزی فارسی
۲۹) قاموس ۳۰) فیروزاللغات ۳۱) تاج المصادر ۳۲) بیان اللسان
۳۳) الافاضات ۳۴) بهشتی زیور ۳۵) کلید بهشت ۳۶) سنت وبدعت
۳۷) تاج العروس ۳۸) جامع صغیر ۳۹) نصب الرایه ۴۰) مختارالصحاح
۴۱) مدخل ۴۲) الجُنة ۴۳) جصاص ۴۴) فتاوی افریقه
۴۵) مکتوبات مجدد الف ثانی حصه دوم ۴۶) کتاب الاعتصام للشاطبی
۴۷) المنهاج الواضح (راه سنت) ۴۸) حاشیه مقامات (مولانا ادریس)
۴۹) پاکٹ عربی اردو لغات ۵۰) معارف القرآن (مولانا مفتی شفیع صاحب)

# دهغه استاذانو نومونه چه دهغوی نه احقر ته د شاګردئ فضیلت حاصل شوې دې

① حضرت مسیح الامت مولانا مسیح الله خان صاحب
② حضرت مولانا سرفرازخان صاحب دامت برکاتهم
③ حضرت مولانا عبیدالله صاحب مدظلهم
④ حضرت مولانا صوفی محمد سرورصاحب مدظلهم
⑤ حضرت مولانا محمدموسی صاحب روحانی بازی مدظلهم
⑥ حضرت مولانا عبدالرحمن اشرفی صاحب مدظلهم
⑦ حضرت مولانا محمد یعقوب صاحب مدظلهم
⑧ حضرت مولانا نورمحمد صاحب مدظلهم
⑨ حضرت سید نفیس شاه صاحب مدظلهم
⑩ مولانا فضل الرحیم صاحب مدظله
⑪ مولانا وکیل احمد شیروانی صاحب مدظله
⑫ مولانا محمود اشرف صاحب مدظله
⑬ مولانا محمداکرم کاشمیری صاحب مدظله
⑭ مولانا مفتی ممتاز صاحب
⑮ مولانا عبدالرحیم چترالی صاحب مدظله
⑯ مولانا فیاض الدین چترالی صاحب مدظله

# بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

**ترجمه:** زۀ شروع کوم د الله تعالی په نوم سره چه رحمن اورحيم دې.

**تشريح:** مصنف خپل کتاب د بِسۡمِ اللّٰه نه شروع کړو چه په حديث باندې عمل اوشی.هغه حديث دادې: كل امر ذی بال لم يبدأ ببسم الله فهو ابتر،، يعنی که هريوکارد بِسۡمِ اللّٰه نه بغير شروع کړې شی.نوهغه بې برکته وی.بِسۡمِ اللّٰه وئيل هم يوکاردې.اودهر يوکارنه مخکښې بِسۡمِ اللّٰه پکارده. لهذا د بِسۡمِ اللّٰه نه مخکښې هم بِسۡمِ اللّٰه پکارده.نو نتيجه به ئې داشی چه تسلسل به لازم شی.اودا محال دی.

**رومبی جواب:** بِسۡمِ اللّٰه لوستل داسې کاردې.چه په دې کښې شروع د الله په نوم سره کيږی.لهذا تکرار د بِسۡمِ اللّٰه ضروری نه دې.

**دويم جواب:** حديث مخصوص دې.د ذی بال نه مراد غيرد بِسۡمِ اللّٰه نه دې.

**بسم الله** ب جارده.او وريسې مجروردې.هر جار،مجرورسره متعلق کيږی.لهذا بِسۡمِ اللّٰه به هم دځۀ څيزسره متعلق وی.ډيره غوره داده.چه ددې متعلق فعل وی.او مؤخروی.مثلاً اشرعُ فعل ځکه غوره دې.چه فعل په عمل کښې اصل دې.اسم اصل نه دې.او مؤخرځکه غوره دې.چه دالله تعالی نوم دفعل نه مخکښې شی.که فعل مقدم وې.نو ابتداء به فعل سره کيدله.په اسم دالله سره به نه کيده.

**اسم:** دا د سُمُوٌّ نه مشتق دې.لکه څنګه چه نُحويان د بصرې وائی.په معنی د اوچتوالی سره.يادا د وَسۡمٌ نه مشتق دې.لکه څنګه چه نحويان د کوفې وائی.په معنی دعلامت، نخښې،او داغ سره،په لفظ داسم کښې اتلس لغتونه دی.لکه چه دشعرنه واضح کيږی:

سَمٌ سِمٌ وَزِدۡ سَمۡاةً وَا ثۡلُثۡ أَوَائِلَ كُلِّهَا    سُمَاءٌ سُمٌ وَسۡمٌ سُمَاةٌ كَذَا

**الله:** دمحققينوپه نزد دا لفظ دداسې ذات نوم دې.چه هغه ټولو صفاتو دپاره جامع دې.بيا دا لفظ دکومې ژبې دې.عجمی دې اوکه عربی؟ نوپه دې کښې دواړه قوله دی.بياچه څوك وائی.چه لفظ دالله عربی دې.دهغوی خپل مينځ کښې بيا اختلاف دې.چه دا اسم جامد دې اوکه مشتق.په دې کښې هم دواړه قوله دی.بياچه څوك دا وائی.چه لفظ دالله مشتق دې.په دوی کښې بيا اختلاف دې.بعضې وائی.چه د وَلِهَ نه مشتق دې.اوبعضې وائی.چه د اَلِهَ نه مشتق دې.بهرحال په دې کښې شل اقواله دی.چه په بيضاوی شريف کښې ليکلی شوی دی.لفظ دالله،دالله تعالی ذاتی نوم دې.الرحمن الرحيم : دا دواړه دمبالغې صيغې دی.رحمة (دباب سمع نه) مشتق دی.د رحمة لغوی معنی د زړۀ نرميدلو ده.

**سوال**: الله تعالی خود زړۀ نه پاك دې.نوبيا هغه رحمن اورحيم صفت سره څنګه متصف کيږي.

**جواب**:ښه پوهه شئ چه داسې کوم يوصفت هم وي.چه الله تعالی دپاره ثابت وي.نو دهغې نه مراد ددغه صفت انتهاء. اثر اونتيجه وي.دغه شان دلته هم د رحمة معنی د زړۀ نرمی ده. خوددې مقتضی (نتيجه) احسان او انعام دې.اوهم دا دلته مرادده.اوهم دا اثر اونتيجه ده.د زړۀ د نرم والی.بيا چونکه د فعلان وزن دفعيل نه ابلغ وي.په دې وجه رحمن د رحيم نه ابلغ دې.

**فرق**: رحمن د عَلَم اونوم په شان دې.هم داوجه ده.چه په غيرالله باندې د رحمن اطلاق جائزنه دې.په خلاف درحيم،چه ددې اطلا ق په غيرالله باندې صحيح دې.لکه چه نبی کريم ﷺ ته رحيم په قرآن کريم کښې وئيلی شوی دی.

﴿ إِنَّهُۥ بِٱلنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾

**ترکيب**۞ ب حرف جار ،اسم مضاف.لفظ الله موصوف.الرحمن صفت اول.رحيم صفت ثانی، موصوف سره دخپلو دواړو صفتونو مضاف اليه شو.مضاف سره دمضاف اليه نه مجرورشو. جارسره د مجرورنه متعلق شو اَشْرَعُ فعل محذوف پورې.اشْرَعُ فعل،په دې کښې أنا ضمير ددې فاعل.فعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه شوه.

**اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ شَرَّفَنَا عَلٰى سَائِرِ الْاُمَمِ بِرِسَالَةِ مَنْ اِخْتَصَّهٗ مِنْ بَيْنِ الْاَنَامِ بِجَوَامِعِ الْكَلِمِ وَجَوَاهِرِ الْحِكَمِ صَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰى عَلَيْهِ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَصَحْبِهٖ وَبَارَكَ وَسَلَّمَ مَا نَطَقَ اللِّسَانُ بِمَدْحِهٖ وَنَسَخَ الْقَلَمُ.**

**ترجمه**۞ ټول تعريفونه الله تعالی دپاره دی.هغه الله چه هغۀ مونږته په ټولو امتونو باندې فضيلت راکړو.دداسې ذات رسول جوړولوسره،چه هغه ئې خاص کړو د خلقوپه مينځ کښې دجملو جامعيت سره.اود حکمتونو موتيانو (غمو) سره الله تعالی دې په هغوی اودهغوی په اولاد باندې اوپه صحابو باندې کامل رحمت او برکتونه اوسلامتيا نازل کړی.چه ترڅو پورې ژبه دهغۀ په تعريف مشغول وی.او ترڅو پورې چه قلم ليکل کوی.

**تشريح**۞ **سوال**: په الحمدلله کښې ، ،ټول، ،دځه ترجمه ده **جواب**: پوهه شئ چه د الف لام څلور قسمونه دی: جنسی،استغراقی، عهدخارجی،عهد ذهنی.

❶ الف لام جنسی هغه دې چه دهغې دمدخول نه ماهيت مرادوی.لکه الرجل خيرٌ من المراة،په الرجل کښې الف لام جنسی دې.يعنی ماهيت اوجنس سړې غوره دې دښځې نه.

**د رجل تعريف**: مذکرمن بنی آدم جاوزمن حد الصغر الی حدالکبر. ❷ الف لام استغراقی هغه دې. چه دهغې دمدخول نه ټول افراد مرادوی.لکه ﴿ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لَفِى خُسْرٍ ﴾ يعنی ټول انسانان په تاوان کښې دی. ❸ عهدخارجی هغه دې.چه دهغې د مدخول نه هغه بعضې افراد مراد وی.

کوم چه خارج کښې متعين وى.لکه ﴿ فَعَصَىٰ فِرۡعَوۡنُ ٱلرَّسُولَ ﴾ يعنى نافرمانى اوکړه فرعون د رسول ﷺ.په الرسول کښې الف لام عهد جارجى دې.يعنى موسى ﷺ مُراد دې. ❹ عهدذهنى هغه دې.چه دهغې دمدخول نه معين افراد مرادنه وى.بلکه صرف دمتکلم ذهن کښې وى.لکه ﴿ وَأَخَافُ أَن يَأۡكُلَهُ ٱلذِّئۡبُ ﴾ چه يوسف ﷺ لره به شرمخ اوخورى.چونکه د يعقوب ﷺ په ذهن کښې غيرمعين شرمخ وو.په دې وجه الف لام عهدذهنى جوړشو.نودلته په الحمدُلله کښې ،،ټول،،د الف لام استغراقى ترجمه ده.دلته جنسى او استغراقى دواړه صحيح دى. ځکه چه جنس تعريف هم الله دپاره خاص دې.اوټول تعريفونه هم خاص الله لره دى.اوعهد خارجى هم صحيح دې.نوخوبښ حمد به مُرادوى.،،شَرَّفَنَا،،دا دباب تفعيل نه دې.ددې معنى ده.عزت ورکول، تشريف ددې مصدردې.ښه پوهه شئ چه شَرَّفَنَا جدا صيغه ده.او شَرُفْنَا جدا صيغه ده.شَرَّفَنَا په فتحې د فاء سره دماضى واحد غائب صيغه ده.په دې کښې هُوَ ضميردې. چه هغه الله تعالى طرف ته راجع دې.او نَا جدا مفعول دې.يعنى مونږته شرافت راکړو الله تعالى،اوهم دا صيغه دلته ده.اوبل شَرُفْنَا په سکون د فاء سره ده.دا دماضى دجمع متکلم صيغه ده.يعنى مونږ شريف جوړکړو.

**سَائِرِ الأُمَمِ** د سائر په عربئ ژبه کښې دوه معانې راځى:❶ باقى ❷ ټول.دا د فتحَ يَفتح باب نه داسم فاعل صيغه ده.دلته ددې معنى ،،ټول،،ده.الأمَم جمع ده دأُمَّةٌ، د اُمَّةٌ څو معانې دى:❶ جماعت ❷ د خلقو ډله،❸ طريقه ❹ وخت ❺ قد وقامت. دلته ړومبئ معنى مرادده.په ټولو امتونو باندې يعنى دټولو نبيانو په جماعتونو باندې. **برسالة**: ب جاره جداده.رسالة جداده.رسالة د فعالة وزن دې.ددې جمع رسائل او رسالت دې.په لغت کښې ددې درې معانې راځى.❶ پيغام ❷ پيغامبرى ❸ خط. د رسالې اصطلاحى معنى داده: مَاكَبُرَعِلْمُهُ وَصَغُرَ حَجْمُهُ،(حُجم د څيز مقدارته وائى ددې جمع حُجُوم راځى) يولفظ رسول دې.ددې معنى هم دغه ده.خوجمع ددې رُسُل رُسَلاء آرسُل رُسل راځى. **الأَنَامِ**: أنام د سَحاب وزن دې.او مفرددې.ددې جمع آنام راځى.ددې لغوى معنى مخلوق دې.

**بِجَوَامِعِ الكَلِمِ**: ب جاره جداده.او(جَوَامِعُ الكَلِم)جدا.جوامع دجامع جمع ده.او الکلم دکلمة جمع ده. دجوامع الکلم نه مراد هغه الفاظ دى.چه الفاظ دهغې کم وى اومعانې ئې ډيرې وى.په اصل کښې مصنف اشاره کوى هغه حديث طرف ته چه په هغې کښې دجوامع الکلم ذکردې.هغه حديث دادې. ((أُعْطِيتُ جَوَامِعَ الكَلِم وَنُصرتُ بالرُّعب))

**وَجَوَاهِرِ الحِكَمِ** جَواهرد جَوهَرة جمع ده.په لغت کښې جَوهر هرهغه کاڼى ته وئيلې شى.چه دهغې نه د فائدې څيزجوړکړې شى.الحکم دحکمة جمع ده ددې په لغت کښې ګڼړې معانى

دی: ❶ انصاف ❷ علم ❸ صبر ❹ فلسفه ❺ دحق موافق وينا ❻ دکار صحيح والې. دلته دغه دويمه معنې مراد ده. يو لفظ حکيم دې چه دهغې معنی پوهه او عالِم ده. دهغې جمع حکماء راځي. جواهرالحکم نه مراد ښه ښه خبرې دی. دقيمتی ملغلرو په شان.

**(صَلَّى اللّٰهُ تَعَالَىٰ عَلَيْهِ...الخ)** صَلّی دماضی صيغه ده. قانون دادی چه دماضی په الفاظو سره کله دعاء اوکړې شی. نو ترجمه به ئې دمستقبل کيږی. (بَارَكَ) هم دماضی صيغه ده. او(سَلَّمَ)هم دماضی صيغه ده **(صَحبه)** دادَ صاحب جمع ده چه معانې ئې دادی ❶ ملګرې ❷ يوځائې ژوند تيرونکې ❸ مالك ❹ وزير ❺ ګورنر.

دصاحب داجمعې راځی ❶ صَحْبٌ ❷ اَصْحَابٌ ❸ صِحَابٌ ❹ صُحْبَانٌ ❺ صَحَابَةٌ ❻ صِــحَابَةٌ. اود (اصحاب) جمع بيا اصاحيب راځی(مَانَطَقَ اللسَانُ بِمَدحه) مَا په معنی د مَادَامَ سره. يعنی ترڅو پورې چه ژبه خبرې کوی دهغه پۀ تعريف سره، دلته هم نطق ماضی ده. (دَضَرَبَ يَضرِبُ دَ بَاب نَه) ليکن معنی ئې دمستقبل کولې شی ځکه چه داځائې د دعـادې. ددې مصدر نطقًا هم راځی. اومنطقا اونطوقا هم راځی په معنی دوينا. لسان ژبې ته وائی. دالفظ زيات ترمذکر استعماليږی. ددې هم ډيرې جمعې راځی ❶ اَلْسِنَةٌ ❷ اَلْسُنُ ❸ لُسْنٌ ❹ لِسَانَاتٌ. لغت او پيغام هم ددې معانی راځی. مَدحَ دفتح باب نه مصدر دې په معنی دتعريف کولو

**(وَنَسَخَ الْقَلَمُ)** نسخ هم دفتح باب نه دماضی واحد غائب صيغه ده په معنی دورانولو، باطل کولو اوليکلو. القلم مفرد دې جمع ئې اَقلام او قِلام راځی. دقلم اطلاق پرې دقلم جوړيدلونه پس کيږی.

**تشريح : اما بعد** : امادشرط دپاره راځی اګرچه دابتداء نه شروع وی ياد تيرشوی اجمال تفصيل وی. دلته خواجمال نه دې تيرشوې نو خامخا اَمَّا دلته (استئنافيه) دپاره دې بَعْــدُ مبنی دې په ضمې سره، يعنی **(اَمَّابَعدَالْبَسْمَلَةِ وَالْحَمدلَةِ والصَّلوٰةِ)** اَمابَعدُ نه پس هميشه فاء جزائيه راوړلې شی. يودې بعد او بل دې امابعد، نوښه پيژندل پکاردی. چه اما بعدُ ليکل او لوستل سنت دی او بعدُ سره سنت نه ادا کيږی.

بيا امابعد دکوم وخت نه شروع شو. په دې کښې مختلف اقوال دې. دبعضوپه په نزد دحضرت داؤد عليه السلام نه، اودبعضو په نزد دسحبان بن وائل نه تقريبا شپږاقوال په دې کښې نورهم دی **(فَهٰذَا كِتَابٌ وَجِيزٌ)** (نودا يومختصرکتاب دې)

فاء داما په جواب کښې ده او هذا اسم اشاره ده.

**سوال** : مشاراليه محسوس طرف ته اشارې کولو دپاره راځی. دلته مشاراليه کوم يودې؟ دخطبې دوه قسمونه وی. يو الحاقيه دويمه ابتدائيه. که چرې خطبه ابتدائيه اومنلې شی نو بيا کتاب مشاراليه نه شی جوړيدې. ځکه چه خطبه ابتدائيه هغه وی چه مصنف مخکښې

خطبه اوليکي بيا باقي کتاب اوليکي.نو اوس لادکتاب وجود نشته نو مشار اليه به څنګه جوړيږي.اوکه چرې دلته خطبه الحاقيه اوګڼړلې شي نو بيا هم صحيح نه ده ځکه چه خطبه الحاقيه هغه وي چه مصنف مخکښې کتاب ليکلې وي او خطبه روستو اوليکي کله چه مونږ خطبه الحاقيه اومنو،نوددی مشاراليه به صرف نقشونه وي. ياصرف الفاظ ياصرف معاني.ياد دواړو مجموعه ياد دريو واړو مجموعه.ټول اووه صورتونه شول چه په هغې کښې درې صورتونه داسې دی چه هغې طرف ته په هذا سره اشاره کول جائزنه دی ①اول داچه صرف الفاظ مشاراليه وي.داځکه باطل دې چه زادالطالبين صرف دالفاظو نوم نه دې.

② دويم داچه صرف معانې مشاراليه وي.داهم ځکه باطل دې.چه زادالطالبين صرف د معانيو نوم نه دې.بلکه دالفاظو او معانيو دواړو دمجموعې نوم دې.③ دويم داچه د الفاظ اومعاني دواړو مجموعه مشاراليه وي،داځکه صحيح نه دی چه هذا ديو دپاره دې.کوم چه محسوس اوليدونکې وي.دالفاظو او معانيو مجموعه داسې نه ده.باقي دنقشونو والا څلور صورتونه پاتې شول.هغه باطل دی.هغه دادی.❶اول داچه صرف نقوش ❷دويم داچه نقوش اوالفاظ ❸ دريم داچه نقوش اومعاني ❹ څلورم داچه نقوش،الفاظ او معاني. داڅلور صورتونه ځکه باطل دی چه: زادالطالبين د نقوشو نوم نه دې.نو هرکله چه يو صورت هم مشاراليه نشي جوړيدې په خطبه الحاقيه کښې.او په ابتدائيه کښې خو هسې هم دکتاب وجود نه نشته.نو مشار اليه کوم يودې؟ متعين ئې کړه؟

**جواب** خطبه ابتدائيه ده.بيا به ته وائې چه اوسه پورې خودکتاب وجودنشته.نو څنګه مشاراليه جوړوي.نو مونږ داوايو چه دمصنف په زړه کښې مکمل موجودوو.په دې وجه ئې هغې طرف ته په هذاسره اشاره اوکړه.- **(وَجِيزٌ)** وجيز دفعيل په وزن باندې دې په معنی داختصار سره په علم بلاغت کښې دکلام پنځه قسمونه دی.

❶ ايجاز❷ مساواة ❸ اطناب ❹ تطويل ❺ حشو.

❶**ايجاز**۞ په لغت کښې اختصارته وائی او په اصطلاح کښې هرهغه کلام ته وائی.چه دهغې الفاظ کم وی او معانې ئې ډيرې وی.

❷ **مساواه**۞ په لغت کښې برابروالی ته وائی.اوپه اصطلاح کښې هرهغه کلام ته وائی.چه دهغې دمعنی مطابق الفاظ وی.يعنی څومره چه الفاظ وی په هغه مقدار ئې معنی وی.

❸**اطناب**۞ دې ته وائی.چه دڅه نکتې په وجه الفاظ زيات وی.

❹ **تطويل**۞ په اصطلاح کښې هرهغه کلام ته وائی کوم چه ډير اوږد وی بغيرد فائدې نه.خوپه مقصد کښې خلل اچونکې نه وی.

❺ حشو﴿ په لغت کښې په کلام کښې زیات والی ته وائی..او په اصطلاح کښې کلام کښې هغه زیاتوالی ته وائی.چه بې فائدې وی او خلل اچونکې هم وی زیات وضاحت دعلم بلاغت په کتابونو ،،تحسین المبانی،، وغیره کښې او ګورئ!

﴿ مُنْتَخَبٌ مِّنْ كَلَامِ الشَّفِيعِ الْعَزِيزِ ﴾ منتخب دباب افتعال نه داسم مفعول صیغه ده په معنی دخوښولو سره.هم ددې نه دی انتخابات.شفیع په معنی دسفارش کونکی سره ددې جمع شُفَعَاء راځی.عزیز دضرب د باب نه دصفت مشبه صیغه ده چه په هفت اقسام (اووه قسمونو) کښې دمضاعف نه دې. ددې ډیرې معانې راځی.❶ شریف ❷ مضبوط ❸ ناآشنا ❹ عزت مند❺ اوچتې مرتبې والا بادشاه چه دهغې حاصلول مشکل وی.اوهغه مغلوب نه وی.اوڅوک هغهٔ لره عاجزکولې نه شی.او دهغهٔ په شان هیڅوك نه وی.اودا دالله ﷻ په نومونو کښې یونوم دې.ددې جمع عِزَاز او اَعِزَّاء او اَعِزَّةٌ راځی.

﴿ اِقْتَبَسْتُهُ مِنَ الْكِتَابِ اللَّامِعِ الصَّبِيحِ ﴾: داقتباس لغوی معنی ده اورراخستل.اوپه اصطلاح کښې اقتباس هغې ته وائی چه څوك سړې په خپل نثریا نظم کښې دقرآن یا حدیث ټکړه راواخلی.اودا وضاحت اونکړی چه دا دَقرآن یا حدیث ټکړه ده.کتاب مصدر دې دنصرینصر نه. معنی ئې ده ① کوم څیز کښې چه لیکل اوشی ② خط ③ صحیفه ④ فرض ⑤ حکم ⑥ اندازه.ددې جمع کُتْبٌ او کُتُبٌ راځی.

لامِع دفتح باب نه داسم فاعل صیغه ده.په معنی دځلیدلوسره.ددې جمع لُمَّـعَ راځی.الصبیح په معنی دښکلی راځی جمع ئې صباح ده.مطلب دادې چه ماداکتاب حاصل کړې دې.دښکلی او ځلیدونکی کتاب نه،کوم چه دمشکوة المصابیح په نوم باندې مشهوردې ﴿ بِمِشْكٰوةِ الْمَصَابِيحِ ﴾ دمشکوة دوه معانې راځی.یوهغه سورې (سوړه) چه هغه دیوطرفه بندوی.دویم هغه اوسپنه چه دباتئ دواړوطرفونوته وی.

مصابیح دمصباح جمع ده.دمصباح معنیٰ ده ❶ ډیوه ❷ پلنه نیزه❸ لویه پیالئ.چه په هغې کښې دسحر شراب څکلې شی.

> وَسَمَّيْتُهٗ زَادَالطَّالِبِيْنَ مِنْ كَلَامِ رَسُوْلِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ
>
> **ترجمه**﴿اوما ددې نوم کیخودهٔ،،زادالطالبین،،دټولو جهانونو د پالونکی د رسول دکلام نه

**تشریح**﴿زادالطالبین: کښې لفظ زاد اسم جامددې.یعنی دالفظ نهٔ دڅه نه راوتلې دې اونه ددې نه بل لفظ راوُځی.ددې معنی توښه ده.یعنی په سفر کښې دخوراك څکاك څیزونه (اَلطَّـالِبِين) دنصر ینصر باب نه داسم فاعل جمع مذکر صیغه ده.داسم فاعل جمع مذکرطالبون راځی په حالت رفعی کښې.لیکن دلته حالت جری دنصب تابع دې.داسم متمکن دشپاړسو قسمونو

نه دولسم قسم دي.(جَآءَطَالِبُونَ،رَاَیتُ طَالِبِینَ مَرَرتُ بِطَالِبِینَ) طالب مفرد دي او ددې جمعې دا دا راځي❶ طُلَاب❷ طَلَبَة❸ طلب،دطلب معنی (تالاش) ده.بنه پیژندل پکاردی چه دطالب جمع طلباء نه راځي ځکه چه دفاعل جمع فعلاء نه ده.

**سوال**: ته وائې چه دفاعل جمع فعلاء نه راځي.اوګوره په قرآن مجید کښې دشاعرجمع شعراء استعمال شوې ده.﴿ وَٱلشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ ٱلۡغَاوُۥنَ ﴾

**جواب** دا شاذ ده.

**سوال**: دشاذ استعمال په قرآن کښې ځنګه راغې.قرآن کریم کښې خو هغه الفاظ استعمالیږی کوم چه ډیرزیات فصیح او بلیغ دی؟

**جواب**: دشاذ درې معانې دی اوهغې ته درې قسمونه هم وائی:❶ یوهغه چه دقاعدې او استعمال دواړونه خلاف وی.❷ دویم هغه چه داستعمال خلاف وی دقاعدې موافق وی.
❸ دریم چه دقاعدې خلاف وی اوداستعمال موافق وی. رومبی دوه قسمونه مردود دی.د قبلولو قابل نه دی.دریم قسم مقبول دې او هم دا په قرآن کښې ذکردې.

**سوال**:. بنه نو بیا فُعَلَاء او طُلَبَاء دځه څیزجمع ده؟

**جواب** فعلاء د فَعِيل جمع ده لهذا طُلَبَاء د طلیب جمع ده.

## ﴿ د طالب اود طلیب په مینځ کې فرق ﴾

دطالب لغوی معنی طلب کونکې ده اودطلیب معنی ډیر زیات طلب کونکی ده.نو په اصطلاح کښې طالب هغه ته وائی.چه لږسبق ویونکې وی اوپه سبق کښې ناغه او چهتی کوی.اوطلیب هغه ته وائی.چه بغیر دچهتئ وغیره کولونه ډیر سبق وائی (رَسُول رَبّ العَالَمِینﷺ) درسول تعریف او تحقیق درسالې په لفظ کښې تیرشوې دې.رب دبعضو په نزد مصدر دې دنصرینصر دباب نه.اودبعضو په نزد دمبالغې صیغه ده.ددې ډیرې معانې راځي:
❶ تربیت کونکی❷ پالونکی❸ مالک یا واکدار❹ بادشاه❺ معبود❻ سردار❼ مدبر وغیره،داد الله تعالی دنومونو نه یونوم هم دی.په دې وجه داضافت نه بغیرمخلوق دپاره نه استعمالیږي.العالمین دعالم جمع ده.عالم داسم آلې صیغه ده.

**سوال**: داسم آلې خودرې وزنونه دی.مِفعَلٌ،مِفعَلَةٌ ومِفعَالٌ داپه یووزن هم برابره نه ده نو دا داسم آلې صیغه جوړول صحیح نه شول؟

**جواب** دااسم آله غیرقیاسی ده لکه خاتم اوقالب (دخښتو سوانچه) دمطلق آله تعریف دادې: (مَایُفعَلُ بِهٖ) اودعالم تعریف دادې (کُلُّ مَاسِوَی اللهِ فَهُوَ عَالَمٌ)

**نکته او سوال** ❁ دعالَم دجمعې جوړولوڅه ضرورت دې.هرکله چه عالَم پخپله هغه څیزته وائی کوم چه دالله تعالیٰ ﷻ نه سواوی؟

**اول جواب**: دجمعې ضرورت ځکه دې چه (رِعَایَةً لِلفَاصِلَة) یعنی دسورت فاتحې دآیاتونو دآخر وزن یو شان جوړولو دپاره.

**دونم جواب**: عَالَمٌ کُلِی مشکك ووْ.ددې دلاندې دافرادو شاملیدل یقینی نه ووْ.عالمین ئې جمع راوړه.چه شمول یقینی جوړشی.

**اَلْفَاظُهٗ قَصِیْرَةٌ وَمَعَانِیْهِ کَثِیْرَةٌ یَتَنَضَّرُبِهٖ مَنْ قَرَأَهٗ وَحَفِظَهٗ وَیَبْتَهِجُ بِهٖ مَنْ دَرَسَهٗ وَسَمِعَهٗ وَرَتَّبْتُهٗ عَلَی الْبَابَیْنِ یَعُمُّ نَفْعُهُمَا فِی الدَّارَیْنِ**

**ترجمه** ❁ ددې الفاظ لړدی اومعانې ئې ډیرې دی.تروتازه کیږی دې سره هغه کس څوك چه دا لولی.او دا یادوی.او روښانه کیږی دې سره هغه کس څوك چه دا لولی.او زده کوی ئې،او رنړا والا کیږی دې سره هغه کس څوك چه دا ښائی،(اوبل ته ئې لولی) اوڅوك چه دا آوری. اومادې ته ترتیب ورکړې دې.په دوؤ بابونوکښې،ددې دواړو نفع دې عامه وی په دواړو جهانو کښې،،(آمین)۔

**تشریح** ❁ (اَلفَاظُهٗ قَصِیْرَةٌوَمَعَانِیهِ کَثِیْرَةٌ) داد جوامعُ الکلم مفهوم دې چه دهغې ذکر وړاندې تیرشوې دې.

(اَلفَاظُهٗ قَصِیرَة) دلفظ لغوی تعریف دادې.الرمی یعنی غورځول،او اصطلاحی تعریف(حدتام) ئې دادې.مایتلفظ به الانسان.(قصیرة) په اصل کښې هغه ښځې ته وائی چه هغې ته دکورنه دوتلو اجازت نه وی.قصر په معنی دلږکی هم راځی.اودمحل په معنی ؑهم. ددې جمع قُصور راځی داد نَصَرَ یَنْصُرُ دباب نه استعمال شوې دې.اومصدر ئې قصور راځی.(ومعانیه کثیرةٌ) دمعان جمع ده.ددې واحد معنی راځی.لغوی معنی ئې "مقصد"دې.محاوره ده چه (فُلَانٌ حَسَنُ المَعَانِی) فلانکې ښه صفتونو والادې. کَثُرَدکَرُمَ باب نه هم راځی.اونصر ینصر نه هم.دکثیر معنی ده ډیره (یَتَنَضَّرُ بِهٖ مَن قَرَاَهٗ وَحَفِظَهٗ) یوحدیث طرف ته اشاره ده کوم چه امام احمد په مسند احمدکښی نقل کړې دې.(نَضَّرَاللهُ امرَأسَمِعَ مَقَالَتِی فَحَفِظَهَا وَ وَعَاهَا وَاَدَّاهَا)یعنی الله تعالیٰ ﷻ دې هغه کس تروتازه کړی چاچه زما خبرې واوریدې.هغه ئې یادې کړې اووړاندې ئې اورسولې.په دې حدیث سره دعلم حدیث لوستونکو اوخودونکو فضیلت ثابت شو.ځکه چه په حدیث کښې دعاء ذکرده(وَیَبتَهِجُ بِهٖ مَن دَرَسَهٗ وَسَمِعَهٗ)ابتهاج په معنیدښائست او خوشحالئ،درس دباب تفصیل نه دماضی واحد غائب صیغه ده.بل ته دښودلو په معنی سره(رَتَّبتُهٗ عَلَی البَابَینِ یَعُمُّ نَفعُهُمَا فِی الدَّارَین) یعنی ماداکتاب په دووبابونو کښې تقسیم کړې دې په ړومبنی باب کښې مواعظ حسنه دی.او په

دویم باب کښې دځلوینښتو قصوبیان دي.الله تعالی دي ددې دواړو بابونو فائده په دواړوجهانو کښې عامه کړي.

**وَاللّٰهُ اَسْئَلُ اَنْ يَّجْعَلَهٗ خَالِصًالِّوَجْهِهِ الْكَرِيْمِ وَسَبَبًا لِدُخُوْلِ دَارِالنَّعِيْمِ فَاِنَّهٗ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ وَاِنَّهٗ ذُوالْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ط**

**ترجمه** اوزهٔ خاص دالله نه سوال کوم.چه جوړکړي داکتاب خاص دخپل کریم ذات دپاره، اوجنت ته د داخلیدوسبب ئې هم جوړکړي.ځکه چه هغه ډیر مغفرت والا او ډیر لوئې فضل والادي.

**تشریح** **سوال**: زه خاص دالله تعالی نه سوال کوم.دا(خاص) ترجمه دځه ده؟

**جواب**: دلفظ الله اَسئَلُ دپاره مفعول مقدم دي.اوداقاعده ده چه تقدیم ماحقه التاخیر موجب دحصر وی.لهذا(خاص) ترجمه دحصرده.اسئل دفتح یفتح نه دمضارع واحد متکلم صیغه ده په دې کښې یوه خبره قابل دتوجه ده.هغه داچه،، سئل یسئل سؤالاً ،،که چرې مصدرراشی نو ددې معنی ده تپوس کول.اوکه چرې مسئلة ئې مصدرراشی نوددې معنی کولې شی ،،غوښتل،، (دَارُالنَّعِیم) دادجنت لقب دي ځکه چه هغه دنعمتونوکوردي.

## اَلْبَابُ الْاَوَّلُ

### (فِيْ جَوَامِعِ الْكَلِمِ وَمَنَابِعِ الْحِكَمِ وَالْمَوَاعِظِ الْحَسَنَةِ)

**ترجمه** ړومبي باب دجامع کلمو په بیان کښې اود حکمتونو دچینو په بیان کښې اود ښه نصیحتونو په بیان کښې دي.

**تشریح** دباب لغوی معنی (مَا يُتَوَسَّلُ به اِلَى غَيْرِه) ده اودمصنفینو په اصطلاح کښی ددې معنی (هُوَ اسمُ لجُملَة مُختَصة مِنَ العِلمِ) ده.ددې جمع (اَبوَابٌ) راځی لفظ اول منصرف هم استعمالیږی.او غیرمنصرف هم. غیرمنصرف هغه وخت کښی استعمالیږي کله چه لفظ اول د وزن فعل سره سره وصف هم وی.یعنی ,چه په دې کښی دوصفیت معنی هم موندلې شی.په دې معنی چه ړومبې کیدل،دویم کیدل یوصفت دې. مثلاً(لَقِيتُهُ عَامًااَوَّلَ) په باقی صورتونو کښی منصرف دی.مثلاً (مَا رَاَيتُ لَهَ اَوَّلًا وَّاَخِرًا) منابع دمنبع جمع ده. چه ددې معنی چینه ده. مواعظ دموعظة جمع ده.چه ددې معنی ده وعظ اونصیحت .حسنه په معنی دنیکئ اود ښیګړې سره.

**ترکیب** .(اَلبَابُ) موصوف.الاول ئې صفت.موصوف سره دصفت نه مبتداء، فی حرف جار. جوامع مضاف.الکلم ئې مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مَعطُوف عَلَیهِ .واو حرف

عاطف منابع مضاف الحكم ئې مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه معطرف اول شو. واوحرف عاطف،المواعظ موصوف الحسنة، جار سره دمجرورنه متعلق دې ثابت پورې، ثابت اسم فاعل دې په دې کښې هو ضميردې هغه ئې فاعل شو،اسم فاعل سره دخپل فاعل نه اوسره دمتعلق نه شبه جمله خبر دمبتداء. مبتداء سره دخبر نه جمله اسميه خبريه شوه.

١ - قَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ وَإِنَّمَا لِكُلِّ امْرِءٍ مَا نَوٰى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ فَهِجْرَتُهُ إِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَ مَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلٰى دُنْيَا يُصِيْبُهَا أَوْ إِلٰى امْرَأَةٍ يَنْكِحُهَا فَهِجْرَتُهُ إِلٰى مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ. رواه البخاري ومسلم

**ترجمه** نبى كريمﷺ اوفرمائيل.چه بې شكه دعملونو دارومدار په نيتونو باندې دې.او بيشكه هرسړي دپاره هغه څه دى دڅه چه هغه نيت اوكړو.پس دكوم كس هجرت چه وى دالله اود الله درسول په طرف،نودهغهٔ هجرت دې دالله اود الله درسول په طرف.اودكوم كس هجرت چه وى د دنيا په طرف چه داحاصله كړى،يا ښځې طرف ته چه هغې سره وادهٔ اوكړى،نودهغهٔ هجرت هغې طرف ته دې كوم طرف ته چه هغهٔ هجرت اوكړو.

**تشريح** مصنف دټولو نه مخکښې په دې حديث سره شروع اوكړه.ددې وجه داده چه هريو سړې لوستلونه وړاندې خپل نيت صحيح كړى.(إِنَّمَا الأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ) انما مفرد دې اوكه مركب؟ نو په دې كښى دواړه قولونه شته.بيا ددې په مركب كيدلو كښې درې قوله دى:

❶ دبعضوپه نزد د أن مُشَبه بالفعل نه اودَ مَا كافه نه مركب دې ❷اود بعضو په نزد د أن حَرف مُشَبه بالفعل اوما زائده نه مركب دې❸اودبعضوپه نزد د أن حرف مشبه بالفعل او ما نا فيه نه مركب دې.

**سوال**: كه چرې دَ اِنَّ اوما نافيه نه مركب اومنلې شى نو بيا خوبه ضدين جمع شى؟

**جواب**: داسوال دمفرد كيدلو په صورت كښى كيدې شى.دمركب جوړيدلو نه پس پرې هيڅ اشكال نه راځى.ځكه چه مركب كښى صرف دحصر معنى اخستلې شى جداجدانه شى اخستلې.

**سوال**: .انَّ او مَا دواړه صدارت (شروع) دكلام غواړى.يعنى اِنَّ هم دا غواړى چه په شروع كښى راشم.اوَ مَا هم داغواړى.نومونږ به كوم يو په شروع كښى راوړو؟

**جواب**: .دمركب كيدلونه پس دااشكال هم نه راځى.بيا اِنَّمَا حصر دپاره راځى.د مَا او الاَّ په معنى سره.لكه نشته دې معبود مگر اللهﷻ يعنى صرف هم الله تعالىٰ معبوددې.دا ترجمه د حصرده.دغه شان دلته هم دى.چه هيڅ يوعمل معتبرنه دې ليكن نيت سره.الاعمال جمع دعمل ده.د يوكار كولو ته عمل وئيلې شى.

**سوال**: بیا په فعل او عمل کښې څه فرق شو؟

**جواب**: ❶ په عمل کښې قصد او اراده شرط ده.په فعل کښې نه دي.غیراختیاري کارته هم فعل وئیلې شي.

❷ په عمل کښې علم او نظر او فکر شرط دي.په فعل کښې داسې نه ده.نیات دنیة جمع ده. دیَا په شد سره هم وئیلې شي.او بغیرد شدنه هم.دنیت لغوی معنی داده: دَیوکار قصدکول. اود شریعت په اصطلاح کښې دفعل اراده کول دالله ﷻ درضادپاره.مطلب ددې دادې چه دټولو عملونو دارومدار په نیت دې.په الاعمال کښې الف لام استغراقي دې.(وَاِنَّمَا لِامْرِءٍ مَانَوٰی) لفظ امرئ کښې ❶ مشهور او فصیح لغت دادې چه کوم اعراب په آخری همزه باندې راځي هغه به په راء باندې راځي.(هٰذَاامْرِئٌ،رَاَیْتُ امْرَءً، وَمَرَرْتُ بِامْرِئٍ) ❷ دویم لغت دادې لیکن فصیح نه دې.چه راء باندې همیشه فتحه شي.❸ دریم لغت هم شته کوم چه انتهائی ردی دې.هغه داچه په راء باندې همیشه پیښ اووئیلې شي.ماخو یا مصدریه ده یا موصوله. دواړه قَوله په کښې شته.ددې جملې مطلب دادې چه هر سړی ته به په اندازه دنیت ثواب ورکړې کیږي.که چرې په یو عمل کښې ئې ګڼرنیتونه اوکړل.نو هغه ډیر عملونه جوړیږي.په دوؤ جملو کښې فرق دادې چه د(اِنَّمَا الْاَعمَالُ بِالنِّیَّاتِ) والاجمله کښې دنفس نیت ذکردې.او په (اِنَّمَا لِامرِئٍ مَانَوٰی) کښې دنیت د تعین ذکردې.

**د هجرت معنی**۞ دهجرت لغوی معنی ده: ،پریښودل،.اودشریعت په اصطلاح کښې ددې دوه قسمه دي.❶ هجرت ظاهره❷ هجرت باطنه،هجرتِ ظاهره دادې چه ددارالکفرنه دارالاسلام ته منتقل کیدل.اوهجرت باطنه دادی ګناهونوپریښودل.

**مشهوراعتراض**۞ چاچه هجرت اوکړو الله تعالی اورسول طرف ته نوهغه هجرت اوکړوالله او رسول طرف ته.داخومبتداء او خبر یو شو،اودغه شان شرطْ اوجزاء یوشول؟

**جواب**: داسې نه ده. فرق پکښې شته. په شرط کښېد(قصداً) لحاظ شوې.اوپه جزاء کښې دثوابًا (وَمَن کَانَت هِجرَتُهٗ اِلٰی دُنیَا) او دچا هجرت چه دنیا دپاره وي.چه هغه حاصله کړي یا ښځې دپاره چه دهغې سره واده اوکړي.نوڅه څیزدپاره ئې چه هجرت کړې دې هغه طرفته به ئې هجرت وي.

**سوال**: دلته ئې ولې دنیا او امراۃ دوباره ذکرنه کړل؟

**جواب**: په دې وجه چه دبې کاره څیز نوم دوباره اخستل نه دي پکار.

**اهمه فائده**۞ ددې حدیث نه داخبره بالکل نه ثابتیږي چه واده نه دی کول پکار،ځکه چه دلته صرف په غلط نیت سره دهجرتِ کولو ممانعت دې.

**د دنیا تعریفونه اوددې وجه تسمیه**۞ ددنیا تعریف:❶مَجمُوعُ هٰذَالعَالَمِ.چه څه سره تعلق زمونږ دمرګ نه وړاندې وړاندې دي ❷مَا عَلَی الاَرضِ ❸مَایُلهِیكَ عَنِ اللهِ فَهِیَ الدُّنیَا.دنیا خویامشتق ده د(دُنُــوٌّ) نه په

معنی دنزدی والی،دې وخت کښې دنیا ته دنیا ځکه وئیلې شی چه دا آخرت ته نزدې ده.او یا دامشتق ده د(دَنَاءَةٌ) نه په معنی دبې کاره.نو داهم بې کاره ده.ځکه دې ته دنیا وائی.

**ددې حدیث شان ورود﴾** طبرانی په خپل معجم کبیرکښې ددې واقعې تخریج کړې دې.چه یو سړی.یوې ښځې ته دنکاح پیغام ورکړې وُو.هغې داشرط لګولې وُو چه هجرت به کوې نو بیا تاسره نکاح کولې شم.داښځه اُم قیس ده.ددې نوم قیله دې.هغه سړی دې سره دنکاح کولو په غرض هجرت اوکړو.نوپه دې وجه هغهٔ ته مهاجراُم قیس اووئیلې شو.په دې موقعه باندې نبی کریمﷺ دا تول ارشاد اوفرمائیلو.

**ترکیب﴾** دلته شپږ ترکیبونه دی.قَالَ فعل.اَلنَّبِی فَاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شوه صَلّٰی فعل لفظ دالله فاعل.عَلَیهِ جارمجرور.جارسره د مجرورنه متعلق په صلی پورې. صلی سره دفعل اوفاعل نه او سره دمتعلق نه مَعطُوف عَلَیهِ.واوْ حرف عاطفه .سَلَّمَ فعل هو فاعل.فعل سره دفاعل نه معطوف. مَعطُوف عَلَیهِ سره دمعطوف نه جمله دعائیه انشائیه معترضه معطوفه.(اِنمَا) حرف مشبه بالفعل (اَلاَعمَالُ) مبتداء باجار اَلنِّیَات ئې مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په (مُعتَبَرَةٌ) پورې شو.معتبرة اسم مفعول.په دې کښې ضمیر دهِی دې.هغه ئې نائب فاعل شو.اسم مفعول سره دنائب فاعل نه اوسره دمتعلق نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.واوْ حرف عاطفه.اِنماحرف مشبه بالفعل.ل. جار امر ئې مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په ثابتٌ پورې.ثابتٌ اسم فاعل په دې کښې ضمیردهو مستتردې.هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دفاعل نه اوسره دمتعلق نه خبرمقدم. ما موصوله نَوَی فعل.په دې کښې دهوضمیر مستتردې هغه ئې فاعل .فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه صله شوه.موصول سره دصلې نه مبتداءموَخر.مبتداء موَخر سره دخپل خبرمقدم نه جمله اسمیه خبریه اجمال شو.فاء تفصیلیه،مَن موصوله کانت فعل ناقص هجرت مضاف،ہ، مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه اسم دکانت.الی حرف جارلفظ اللهﷻ مَعطُوف عَلَیهِ. واوْ حرف عاطف،رسول مضاف ہ مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف.معطوف سره د مَعطُوف عَلَیهِ نه مجرور دجار،جارسره دمجرورنه متعلق په مقصودة پورې.مقصودة اسم مفعول،دې کښې هِیَ ضمیر مستتردې هغه ئې نائب فاعل،اسم مفعول دخپل نائب فاعل اومتعلق سره شبه جمله خبرشو دکانت.کانت سره دخپل اسم اوخبر نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول،موصول سره دخپلې صلې نه مبتداء چه متضمن ده معنی دشرط لره، فاء جزائیه،هجرت مضاف،ہ مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مبتدا ،الی جار ،لفظ دالله معطوف علیه،واوْ حرف عطف،رسول مضاف،ہ مضاف الیه،مضاف سره دمضاف الیه نه مَعطُوف عَلَیهِ،مَعطُوف عَلَیهِ سره دخپل معطوف نه مجرور دجار،جارسره دمجرورنه متعلق شو په مقبولة پورې.مقبولة اسم مفعول.په دې کښې هِیَ ضمیر دې هغه ئې نائب فاعل.مفعول سره دخپل نائب فاعل نه اوسره دمتعلق نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه قائم مقام دجزاء. شرط سره دجزانه جمله شرطیه مَعطُوف عَلَیهِ.واوْ حرف عاطفه.مَن

موصوله، کانت فعل نا قص، هجرت مضاف.ه ضمیر مضاف الیه، مضاف سره دمضاف الیه نه اسم دکانت.الی جار.دنیا موصوف، یصیب فعل هو فاعل، مامفعول به. فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه جمله فعلیه خبریه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه مَعطُوف عَلَیهِ ،او حرف عطف.امرأة موصوف یتزوج فعل هو فاعل.ها مفعول به .فعل سره دفاعل او سره دمفعول به نه جمله فعلیه خبریه صفت دموصوف،موصوف سره دصفت نه معطوف، معطوف سره د مَعطُوف عَلَیهِ مجرور دجار، جارسره دمجرورنه متعلق په مقصوده پورې. مقصودة اسم مفعول هی ضمیر پکښې هغه نائب فاعل،اسم فاعل سره دنائب فاعل نه اوسره دمتعلق نه خبر دکانت،کانت سره دخپل اِسم او خبر نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول، موصول سره دصلې نه مبتداء چه متضمن ده معنی دشرط لره،فاء جزائیه هجرت مضاف، مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء الی حرف جار،ما موصوله ها جر فعل ضمیر دهو پکښې مستتر هغه فاعل .الی جاره. مجرور،جار سره دمجرورنه متعلق په هاجر پورې.هاجر فعل سره دخپل فاعل.او سره ددمتعلق نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول،موصول سره دخپلې صلې نه مجرور دجار،جار سره دمجرور نه متعلق په ثابتة پورې.ثابتة اسم فاعل.په دې کښې هِیَ ضمیر ئې فاعل شو.اسم فاعل سره دخپل فاعل نه اوسره دمتعلق نه شبه جمله خبر دمبتداء.مبتدا سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه خبر چه قائم مقام دجزاء دې شرط اوجزاء دواړه جمله شرطیه معطوف، مَعطُوف عَلَیهِ سره دخپل معطوف نه تفصیل داجمال،اجمال سره دتفصیل نه معطوف،معطوف سره دمعطوف سره د مَعطُوف عَلَیهِ نه مقوله (مفعول به) شوه دقَالَ ،قَالَ فعل سره دخپل فاعل او سره دمقولې (مفعول به) نه جمله فعلیه خبریه شوه.

## اَلْجُمْلَةُ الْاِسْمِيَّةُ

﴿۲﴾ اَلدِّيْنُ النَّصِيْحَةُ روا ه مسلم

[تخریج:مشکواة،ص:۴۲۳،س:۱،عن تمیم الداری مرفوعا]

**ترجمه**۞ دین خیرخواهی ده.

**تشریح**۞ دین دخیرخواهئ نوم دې .په دې عبارت کښې انتهائی لنډوالې او اختصار دې. اودا جمله دجوامع الکلم نه ده.ددې تعبیر دپاره ددې نه غوره بله جمله نشته.نصیحت د مسلمانانو دحقوقونه دې.اونصیحت عام دې.پوره حدیث داسې دې.چه نصیحت دچا دپاره دې.نبی کریمﷺاوفرمائیل:چه الله تعالیﷻ دپاره.یعنی چه دهغه دوجود صحیح عقیده اولرلې شی او دهغهٔ دکتاب دپاره.یعنی چه دهغه کتاب رښتونې اوګنړلې شی.په دې باندې عمل اوکړې شی.اودهغې تلاوت اوکړې شی.اودهغهٔ درسولﷺ دپاره.یعنی دهغهٔ نبوت اومنلې شی او فرمانبرداری ئې اوکړې شی.او دعامو خلقو دپاره.یعنی دهغوی دفائدې رسولو سوچ اوکړې شی او نقصان ترې ختم کړې شی.

**لغوي اوصرفي تحقیق:** لفظ دین مصدردې د(ضَرَبَ یَضرِبُ) دباب نه ددې ډیرې معانې راځي:❶ حساب،هم ددې نه (یَومُ الدِّین) دې❷ ملکیت❸ قدرت ❹ حُکم ❺ مذهب ❻ ملت ❼حالت❽ عادت ❾ تدبیر ❿ اطاعت (۱۱) نافرمانی(۱۲) بدله (۱۳) رسوائی(۱۴) قهر او غلبه (۱۵)ګناه.ددې جمع (اَدیَان) راځي.یو بل لفظ دې دَین په فتحې ددال سره ددې معنی قرض ده.ددې جمع دیون او اَدیُن راځی. (اَلنَّصِیحَةُ) اسم مصدر دې ښه پیژندل پکاردی.چه یو مصدر دې او بل اسم مصدر او بل علم مصدر دې.❶ دمصدر تعریف دادې چه په معنی حدثی باندې دلالت اوکړی.اومشتق منه ئې واقع وی ❷ او اسم مصدر هغه دې چه په معنی حدثی باندې دلالت اوکړی.اومشتق منه ئې واقع نه وی ❸علم مصدر هغه دې کوم چه دمصدر دپاره نوم واقع شوې وی.ددې مادې باب دفتَحَ یفتَحُ نه استعمال شوې دې (نَصَحَ یَنصَحُ نُصْحًا وَنَصَاحَةً) اَلنَصِیحَةُ چه دا اسم مصدردې.ددې جمع نصائح راځی اوددې لغوی معنی اخلاص هم راځی.اودخیر او ښیګړې طرف ته بللو ته هم وئیلې شی.

**ترکیب** ۞ اَلدِینُ مبتداء اَلنَّصِیحَةُ ئې خبر.مبتدا سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه.

**سوال**:.الدین مذکردې اوددې خبرالنصیحة مؤنث دې،نوپه دواړو کښې مطابقت پاتې نه شو؟

**جواب**:.❶نصیحة اسم مصدردې او په اسم صدرکښې تا دتانیث نه راځی عموماً دلته هم داسې دی ❷ داچه مبتداء او خبر کښې مطابقت هغه وخت ضروری وی.کله چه دخبر ضمیر مبتداء طرف ته راجع وی.اوخبرمشتق وی.دلته خبردَ النصیحة نه مشتق دې.نه مشتق منه دې.بلکه اسم مصدردې.په دې وجه مطابقت دلته ضروری نه دې.که چرې مشتق اوګنړلې شی بیا هم مبتداء طرف ته ضمیر نه راجع کیږی.

﴿۳﴾- اَلْمَجَالِسُ بِالْأَمَانَةِ (ابوداؤد)

[تخریج: مشکوة ص: ۴۳۰،س:۱۵،عن جابر رضی الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه** ۞ مجلسونه امانت وی.

**تشریح** ۞ یعنی په مجلس کښې چه کومه خبره وی هغه بهرکول پکارنه دی،ځکه چه بعضې خبرې دپردې وی او بهر کولو سره انسان بې پردې کیږي.اوچالره بې پردې کول جائزنه دی. لهذا کومه خبره چه په مجلس کښې وی هغه امانت ګنړل پکاردی.څنګه چه امانت چا ته نه شی ورکولې دغه شان دمجلس خصوصی خبرې هم داجازت نه بغیر بهرنه شی کولې.

**لغوی او صرفی تحقیق** ۞ مجالس جمع ده.ددې مفرد مجلس راځی.ددې معانی دادی:
❶ دناستې ځائې ❷ ناست خلق❸کچهری.ددې باب ضَرَبَ یَضرِبُ دې.او مصدرئی جلوس او مجلس راځی.(اَلامَانَةُ) په معنی دامانت سره،جمع ئی(اَمَانَاتٌ) راځی.

**ترکیب۞** (اَلمَجَالِس) مبتداء.باء جار امانة ئې مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتةٌ محذوف پورې. ثابتة اسم فاعل هِیَ ضَمیر پکښې مستتردې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دفاعل او سره دمتعلق نه شبه جمله خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه.

﴿٤﴾- اَلدُّعَاءُمُخُّ الْعِبَادَةِ (ترمذی)

[تخریج: مشکواة ص: ۱۹٤،س:۲٦،عن انس؇ مرفوعًا]

**ترجمه۞** دعا دعبادت مغزدې.

**تشریح۞** دعا اصل دعبادت دې.ځکه چه په دې کښې انتهائی عاجزی وی.هم داوجه ده چه هیڅ یو دُعا هم بې کاره نه ځی.بلکه که چرته سمدستی قبوله نه شی،نو یاخو مصیبت لرې کیږی،یا دُعا په آخرت کښې.ذخیره کولې شی. په النهایه کتاب کښې دی چه دُعاء ته ئې د عبادت مغز د دوو وجونه وئیلې دی.❶ داچه دُعاء غوښتل دالله؆ ددې حکم اطاعت دې چه ﴿ اُدْعُوْنِیْٓ اَسْتَجِبْ لَکُمْ ﴾ چه تاسو زما نه غواړئ زهٔ به ئې قبلوم، په دې وجه دُعاء خالص عبادت اودعبادت مغز دې ❷داچه کله بنده سوچ اوکړی چه په ټولو کارونوکښې کامیابی دالله؆ دطرفه ده.او دغیرالله (یعنی مخلوق) نه ټول امیدونه ختم شو.نو اوس بنده خاص دالله؆ نه خپل حاجتونه غواړی او پوره کوی دااصل دعاده اودعبادت مغز دې.

**لغوی اوصرفی تحقیق۞** اَلدعاءُ مصدردې دنَصَرَ یَنصُرُ دباب نه.دعاء هم مصدردې.او دعوی هم.ددې لغوی معانې دادی:❶ اوازکول ❷رغبت کول❸ مدد غوښتل. دمُخ معانې دادی: ❶دهډوکی نلې❷ مغز❸ دسترګوچربی❹خالص،ددې جمع مخاخ راځی او مخخة هم راځی.عبادت دنصر ینصر باب نه دې.ددې مصدر( عِبَادَةٌ،عبوْدِیَّةٌ اوعبودَةٌ) راځی.

**ترکیب۞** الدعاء مبتداء،مُخ مضاف،العبادةُ مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه خبر دمبتداء، مبتدا سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۵﴾- اَلْحَیَاءُشُعْبَةٌمِنَ الْاِیْمَانِ (بخاری ومسلم) [تخریج: مشکواة ص:۱۲،س:٤، عن ابی‌هریرة؇ مرفوعًا]

**ترجمه۞** حیاء دایمان یو ښانګه ده.

**تشریح۞** شرم اوحَیاء دایمان یو حصه ( ښانګه) ده.دشعبة معنی دڅه څیز یوې حصې ته وائی. القطعة من کل شیء،، حیاء ته ئې دایمان یوه حصه ځکه وئیلې ده.چه حیاء کونکې دخپل شرم او حیاء په وجه دګناهونو نه منع کیږی.او ښکاره خبره ده چه کوم څیز دګنا هونونه دمنع کولو ذریعه وی.هغه دایمان ښاخ دې.په یو بل حدیث کښې دی‌چه دایمان اوه اویا(۷۷) حصې او ښانګې دی.په‌بعضې کښې ادنې‌حصه داده.چه دلارې نه ضرر رسونکې څیز لرې کړې شی.په یو بل حدیث کښې دی چه حیاء او ایمان یوځائې یوځائې دی.که چرته یو په دې کښې نه وی نو دویم به هم نه وی.

**لغوی او صرفی تحقیق** دحیا لغوی تعریف دادې.(اَلْحَيَاءُ هُوَتَغَيُّرٌ لِخَوْفِ الْمَذَمَّةِ اَوِ الْعِقَابِ) چه دچا دبد وئیلو نه یاد سزا د ویرې نه دمخ رنګ بدل شی.حیات ژوندته وا ئي.او حیاء شرم او حیاء ته وائی.د شعبة باب فتح یفتح هم راځی او سمع یسمع هم.او ددې لغوی معانې دادی❶ فرقه ❷دخه څیز ډله❸ څانګه ❹ دَ دوؤ ښکرونو یادَ دوؤ څانګو ترمینځ فاصله❺ داوبو بهیدلو ځائې ❻ دغرکنډاوُ.ددې جمع شُعَبْ اوشِعَاب ده.اوشُعب دشعیب جمع ده چه معانې ئې دادی: ❶کجاوه❷ زورمشك ❸ توبنه دان.الایمان په معنی دمنلو او تصدیق کولو سره.

**ترکیب** الحیاء مبتداء شعبة (صیغه دصفت ) موصوف.مِن جار.الایمان مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوثابتة صفت پورې موصوف سره دخپل صفت نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۶﴾- اَلْمَرْءُمَعَ مَنْ اَحَبَّ [تخريج مشكواة،ص٤٢٦،س:٣، عن ابن مسعود‌ؓ مرفوعًا]

**ترجمه** سړې به هغه چاسره وی چاسره چه هغهٔ محبت کړې وی.

**تشریح** حضرت عبدالله بن مسعود‌ؓ اوفرمائیل.چه یوسړی درسول اللهﷺ نه تپوس اوکړو.چه تاسو دهغهٔ کس باره کښې څه فرمایئ.چه هغه دیو بزرګ سره محبت کوی.خود عمل په اعتبارسره دهغهٔ درجې ته نه شی رسیدې؟نبیﷺ اوفرمائیل.،،المرء مع من احب،،یعنی هر کس به هغه چاسره وی.دچا سره چه دهغهٔ محبت وی.ددې نه معلومه شوه.چه اولیاء الله سره محبت اوصُحبت انسان دپاره د ولایت حاصلولو ذریعه ده.(معارف القرآن،ج ۱٤،٥٥)

**لغوی او صرفی تحقیق** دمَرءُ تحقیق په (اِنَّمَا لِامرِءٍ)کښې تیر شوې دې.په حدیث نمبر۱ کښې مع اسم دې.کوم چه مضاف استعمال شوې دې.احَب دباب افعال نه دماضی واحد غائب صیغه ده

**ترکیب** المرءُ مبتدا ، مع مضاف،مَن موصوله،احَب فعل،هُوَ ددې فاعل،فعل سره دخپل فاعل نه جمله فعلیه خبریه صله شوه دموصول.موصول سره دصلې نه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه خبر دمبتداء،مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۷﴾- اَلْخَمْرُجُمَّاعُ الْاِثْمِ[تخريج مشكواة،ص:٤٤٤،س:١٧،عن حُذيفةؓ مرفوعًا]

**ترجمه** شراب دګناهونو جرړه ده.

**تشریح** دشرابو څکلو نه روستو انسان ډیر ګناهونه کوی.په دې وجه ئې شرابو ته دګناهونو جرړه او ددې مجموعه اووئیله.ددې دا مطلب نه دې چه چا شراب اوڅکل نو هغه ټول ګناهونه اوکړل.بلکه ددې مطلب دادې چه ډیروګناهونو احتمال دې په دې سره جنګ جګړې کیږی حادثات پیښیږي. کنځل کولې شی.وغیره وغیره.په دې وجه ددې سزاهم لویه ده.هغه داچه شراب

ځکونکی ته دقاضی دطرفه اتیا دُرې ورکولې شی.چه کله په شرعی طریقه ثابت شی چه ده شراب څکلی دی.زنا.او هلکانوسره بد فعلی او مونځ پرېښودل وغیره زیات ترددې وجې نه کیږی.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ خمر مؤنث سماعی دې.ابن حاجب په مؤنثات سماعیه کښې خَمر هم شمارکړې دی.اوپه حدیثونو کښې هم دې ته دمؤنث ضمیرونه راجع کړې شوی دی.

**سوال**: په یوحدیث کښې داسې راځی (اَلْخَمْرُحَرَامٌ) دې نه معلومیږی چه خمر مذکردې.ځکه که چرته مذکراونه منلې شی نوپه مبتداء اوخبرکښې به مطا بقت پاتې نه شی؟

**جواب**: ددې جواب په (اَلدِینُ اَلنَّصِیْحَةُ)کښې تیرشوې دې.چه مبتداء اوخبر کښې مطابقت هغه وخت ضروری دې.کله چه خبر مشتق وی او ضمیر ئې روستو راجع کیږی. او که داسې نه وی نو مطا بقت ضروری نه دې.ددې لغوی معنی داده:هغه شراب چه انګورونه جوړشوی وی.جماع مصدردې دفتح بفتح نه.ددې معنی ده جامع کیدل.او جُمَّاع هم وئیلې شی دمبالغې صیغه به شی.یعنی دګناهونو جرړه او دهدو بنیاد شراب دې .داثم معنی ده ناجائزکار ❷ګناه ❸جرم.ددې جمع آثام،ماثمه اوماثِمُ راځی. د اثم اطلاق زیات تر په ګناه کبیره باندې کیږی.او دسیئه،خطاء اودَ ذنب،اطلاق زیات تر په وړو ګناهونوباندې کیږی.

**ترکیب**۞ الخمر مبتداء جماع مضاف الاثم مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه خبر د مبتداء.مبتداءسره دخبر نه جمله اسمیه خبریه.

﴿۸﴾- اَلْاَنَاةُ مِنَ اللّٰهِ وَالْعَجَلَةُ مِنَ الشَّیْطَانِ (ترمذی)

[ تخریج:مشکواة،ص:۴۲۹،س:۲۴،عن سهل بن سعد مرفوعًا]

**ترجمه**۞ صبر دالله تعالی دطرفه دې.او جلدبازی دشیطان دطرفه ده.

**تشریح**۞ وقار اوحلم او صبر دالله تعالیٰ ﷻ دطرفه وی،یعنی هرکارپه اخلاص اواطمینان سره کول پکار دی.اوسوچ فکرسره کول پکاردی.اودالله تعالی نه مشوره اخستلویعنی استخاره کولوسره پکاردی کوم کارچه داسې اوشی هغه به دالله تعالی دطرفه وی.اوکوم چه په جلتئ کښې وی.هغه به دشیطان دطرفه وی.په دې وجه هرکار په آرام سره کول پکاردی.ددنیا په کارونو کښې جَلتی عجلت دې او دشیطان دطرفه دې.اوپه نیکئ کښې جَلتی سرعت دې او خوښ دې.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ دَ اَلاَنَاه معنی ده❶وقار❷بردباری❸انتظار او مهلت (دعُجْلَتٌ او عُجَالَةٌ او اَلعُجْلُ) معنی جَلتی ده اودعجل معنی ده سخې، شیطان دنَصَرَ ینصُرُ دباب نه دې.معنی ئې سرکش او نا فرمان ده (خواه که انسان وی یا پیرې یا ځناور) اودشیطان جمع شیاطین راځی.او بل لفظ الشطن ددې معنی رسئ ده او ددې جمع اشطان راځی.

**ترکیب**۞ (اَلاَنَاةُ) مبتداء من جار لفظ الله ﷻ مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتةٌ پورې. ثابتة اسم فاعل ضمیر هی پکښې دې هغه فاعل.فعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه خبر،

مبتدا سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه مَعطُوف عَلَیهِ واو حرف عاطف.(اَلعُجْلَــةُ) مبتداء،مِن جار،الشیطان مجرور،جار سره د مجرورنه متعلق په ثابتة پورې.ثابتة اسم فاعل هِیَ ضمیر پکښې دې هغه فاعل.اسم فاعل سره د فاعل او سره دمتعلق نه خبر دمبتداء.مبتداء سره د خبر نه جمله اسمیه خبریه معطوف. مَعطُوف عَلَیهِ سره دخپل.معطوف نه جمله معطوفه.

﴿۹﴾- اَلْمُؤْمِنُ غِرٌّ كَرِيْمٌ وَالْفَاجِرُ خَبٌّ لَئِيْمٌ (احمد وترمذی)

[تخریج: مشکواة،ص:۴۳۲،س:۶،عن ابی هریرة رض مرفوعًا]

**ترجمه** مؤمن سیدها ساده شریف سړې دې.اومنافق دهوکه باز او رذیل وی.

**تشریح** مؤمن عاجزه سیدها ساده بنده وی او ناتجربه کاره وی.او ساده اوشریف وی.څوك نه تنګوی که چرې په چا احسان نه شی کولې نو تکلیف هم نه ورکوی، او ګناه ګار اوبدکار دهوکې ورکوی اوکمینه وی،مؤمن په خلقو باندې ښه ګمان کوی او ښه معامله ورسره کوی.دخپل جهالت په وجه نه بلکه دخپل عزت او شرافت په وجه.داخو ددنیا په معامله کښې د سیدها ساده کیدلو معنی شوه په آخرت کښې دسیدها ساده کیدلو مطلب دادې چه دخپل مرګ په فکر کښې مشغول وی.او دخپل آخرت په تیاری کښې هروخت مصروف وی او دجنت طمع داروی.ددې په مقابله کښې فاجر سړې دخلقو په مینځ کښې دفساداچولو کوشش کښې مشغول وی.او دیو ځائې خبره بل ځائې کولو کښې اوپه غیبتو نو کښې او کنځلو کولو وغیره کښې مشغول وی.

**لغوی اوصرفی تحقیق** (غِرٌّ) وائی نا تجربه کارته.دادنَصَرَ،ضَرَبَ.سَمِعَ دریو بابونو نه راځی. دکریم معنی ده ❶کرم والا❷ معافی کونکې.دا داسم فاعل صیغه ده.دباء.دکرم نه. فاجرْ د نَصَرَ یَنصُرُباب نه اسم فاعل دې.دفاجر دامعانې دی❶زناکار❷ دګناهونو تابعدار❸جادوګر ددې جمع فاجِرُون او فَجَرَةٌ اوفُجَّارٌ راځی.خَبٌّ دباب دنصر او سمعَ نه مصدردې.ددې معنی مَکارکیدل دی.او دهوکه ورکول. لَئِـیمٌ دَ فَعِیل وزن دې اود باب دکرم نه دې.او ددې مصدر لؤم راځی.اددې جمع لِئَام اولؤَمانْ راځی.

**ترکیب** (اَلْمُؤمِنُ) مبتدا غِرّ خبراول.کریم خبرثانی.مبتداء سره ددواړوخبرینو نه جمله اسمیه خبریه مَعطُوف عَلَیهِ،واوْ حرف عاطف الفاجرمبتدا ،خب ئې خبراول،لَئیمْ خبرثانی،مبتداء سره د دواړو خبرینونه جمله اسمیه خبریه معطوف.مَعطُوف عَلَیهِ سره دمعطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۱۰﴾- اَلظُّلْمُ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ (متفق علیه)

[تخریج:مشکواة،ص:۴۳۴،س:۲۶،عن ابن عمر رض مرفوعًا]

**ترجمه** ظلم به دقیامت په ورځ د تیرو سبب وی.

**تشریح** لکه څنګه چه نیك عمل دنُورسبب دې.دغه شان به ظلم دقیامت په ورځ د ظُلمت او تیَارو سبب وی دوئیمه معنی ئې داهم شوې ده چه دظلمات نه مراد تکلیفونه اوسختئ دی. ظلمات جمع ئې په دی وجه راوړه چه دهرظالم دپاره یوجدا ظُلمت یعنی تیاره اوسختی وی. اویاد ساتئ چه ظلم ګناه کبیره ده.

**لغوی اوصرفی تحقیق** دظلم معنی ده (وَضعَ کُلِّ شَـيْ فِیْغَیرِمَحَلِّـه)یعنی څه څیز بی ځایه ایښودل دضَرَبَ یَضربُ نه.ظلمات په ضمې دلام. په فتحې دَلام.او په سکون دلام سره جمع ده.ددې مفرد(ظُلمةٌ) راځی په معنی دتیارې.لفظ یوم مفرددې ددې جمع اَیـام راځی.اودایام جمع(اَیـاوِمٌ) راځی.دیوم دوه معانې دی.❶ ورځ ❷ وخت.دقیامت معنی ده.دمرګ نه پس پاسیدل.

**ترکیب** (الظلم) مبتداء،ظلمات موصوف،یوم مضاف.القیامة مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول فیه دې ثابتة دپاره.ثابتة اسم فاعل ضمیر دهی پکښیدې هغه ئې فاعل.فعل سره دفاعل اوسره دمفعول فیه نه صفت دموصوف.موصوف سره دصفت نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۱۱﴾- اَلْبَادِیْءُبِالسَّلَامِ بَرِیْءٌمِنَ الْکِبْرِ(بیهقی)

[مشکواة،ص: ٤٠٠،س:٢١،عن عبدالله بن مسعودؓ مرفوعًا]

**ترجمه** سلام سره شروع کونکې د تکبرنه بَری وی.

**تشریح** څوك چه په سلام کښ ړومبې والې کوی هغه دتکبرنه بری وی.ځکه چه څوك مخکښ سلام کوی.هغه به خپل ځان وړوکې ګنړی نو سلام به کوی.اوڅوك چه ځان لوئې ګنړی هغه په سلام کښ ړومبې والې نه کوی.ځکه چه دهغه دا خواهش وی چه زهٔ لوئې یم نو هغه دې ماته سلام اوکړی. په دې وجه سلام کښ ړومبې والې نه کول سبب دتکبر دې.او په سلام کښ ړومبې والې تکبردپاره ایتمی وسله ده.

**لغوی او صرفی تحقیق** (البادئ) دنصر د باب نه داسم فاعل صیغه ده.السلام مصدردې دباب دَ سمع نه بریئ دصفت مشبه صیغه ده.الکبر په معنی دغروراولویه ګناه ده دکرم د باب نه.

**ترکیب** البادئ اسم فاعل.په دې کښې ضمیردَ هُوَ دې هغه ئې فاعل.باء جار السلام ئې مجرور.جار سره دمجرورنه متعلق شو په البادئ پورې.البادی اسم فاعل (:ضمیر دهو پکښی هغه فاعل).اسم فاعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه شبه جمله مبتداء بریئ صیغه دصفت ده ضمیر دهوپکښی دې هغه ئی فاعل من جار الکبر مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په برئی پورې.برئی صفت مشبه (ضمیر د هو پکښی دې هغه ئې فاعل) صفت مشبه سره دخپل فاعل او سره دمتعلق نه شبه جمله خبر دمبتداء مبتداء سره دخپل خبر نه جمله اسمیه خبریه.

﴿۱۲﴾- اَلدُّنْیَاسِجْنُ الْمُؤْمِنِ وَجَنَّةُ الْكَافِرِ (مسلم)

[تخریج:مشکواة،ص:۴۳۹،س:۱۵،عن ابیهریرة رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ دنیا مؤمن دپاره قید خانه ده.اوکافر دپاره جنت دې.

**تشریح**۞ دنیا مؤمن دپاره دقید خانې پشان ده ځکه چه هغه ددې دنیانه وتل او اخرت ته تلل غواړی.اوهمیشه په دنیا کښې اوسیدل نه غواړی.اوهم په دنیا کښې هرقسمه خوندونه حاصلول نه غواړی. ددې په مقابله کښې دنیا دکافردپاره جنت دې.ځکه چه هغه داغواړی چه هم دلته ماته ټول لذتونه ملاوشی. اوټول راحتونه راته ملاوشی.ځکه چه کافرپه دنیا کښې دهمیشه اوسیدلو آرزوکوی.ددې وجې نه دنیا د مؤمن دپاره دقیدخانې په شان ده اوکافر دپاره دجنت په شان ده.

**لغوی اوصرفی تحقیق**۞ ددنیا معانې په حدیث نمبر۱ کښې تیرې شوی دی.دسجن معنی جیل خانه ده.ددې جمع سُجُون راځی.دنصر ینصر د باب نه.جنت مفرددې.ددې جمع جنان راځی او جنات راځی ددې معنی باغ او باغچه ده.کافردنَصَرَ یَنصُر نه اسم فاعل صیغه ده.ددې ډیرې معانې راځی❶ ناشکری کونکې ❷ دایمان مقابل ❸ تیاره شپه❹ سمندر❺ تورې وریځې❻زمیندار❼ پټ شوې مقیم.

**ترکیب**۞ (الدُّنیَا) مبتداء، سجن مُضاف،المؤمن مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف علیه جنت مضاف،الکافرمضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف. معطوف علیه سره دمعطوف نه خبر دمبتداء. مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۱۳﴾- اَلسِوَاكُ مَطْهَرَةٌ لِلْفَمِ وَمَرْضَاةٌ لِلرَّبِّ [تخریج:مشکواة،ص:۴۴،س:۲۶،عن عائشه رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ مسواك خُله پاکونکې دې او رب لره راضی کونکې دې.

**تشریح**۞ دمسواك لوئې فائدې دوه دی. ❶ دُنیوی❷ اُخروی.دُنیوی فائده ئې داده:چه غاښونه صفاوی.چاته دخُلې نه بدبوئی نه ورځی او دخُلې اومعدې دبیمارونه په امن کښې اوسیږي.

او اُخروی فائده ئې داده چه الله ﷻ دمسواك کونکی نه خوشحالیږی.

**سوال** برش کول څنګه دی؟

**جواب**:. برش کول جائزدی لیکن مسواك مسنون دې.هغه ثواب کوم چه حدیث کښې ذکردې چه مسواك کولوسره کوم مونځ اوکړې شی.نوِدَ اویا(۷۰) مونځونو ثواب ملاویږي.هغه دمسواك په موجودګئ کښې په مسواك کولوسره دې په برش باندې نه دې.الله تعالی خو دبخښنې بهانه غواړی. هغه خوپه لږ شان لرګې (مسواك) په خله کښې وهلوسره راضی کیږی.په یوحدیث کښې دی چه نبی کریم ﷺ به داودس په وخت اودَ مانځه په وخت اودَ خوب

نه دپاڅیدلو په وخت اودَ غاښونو زیړوالی په وخت اودَ خُلې دبدبویۍ په وخت کښې.مسواك کولو.

**دمسواك فائدې**۞ دَ ذکرشوو فائدونه علاوه څه فائدې نورې هم بیانولې شی.❶دمرګ نه علاوه دهر مرض شفاده❷ انسان زرنه بوډا کیږی❸ نظر تیزیږی ❹ دپُل صراط سختی اسانیږی، ❺معده قوی کیږی❻ دمرګ په وخت روح آسانۍ سره اوځی❼ په مظاهرحق کښی دیوحدیث په تشریح کښی لیکلی دی.چه دمسواك کولواویا(۷۰) فائدې دی.دټولونه وړه فائده ئې داده چه دمرګ په وخت کښې به ورته کلمه دشهادت یاده وی.اوپه افیموکښی اویا(۷۰) نقصانونه دی.دټولونه کم نقصان ئې دادې چه کلمه شهادت به ترینه دمرګ په وخت کښې هیریږی.اللهﷻ دې په پابندۍ سره دمسواك کولو توفیق مونږته رانصیب کړی.(امین ثم امین)

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ مسواك دنصر ینصر دباب نه مصدردې.ددې جمع سوك راځی (لکه کُتُب) مُطَهَّرَةٌ مصدر میمی هم وئیلې شی.په دې صورت کښی معنی به ئې داوی چه مسواك خُلې لره صفاکونکې دې.مِطهَرة هم وئیلې شی.په دې صورت کښی به یۍمعنی داسې شې چه مسواك دخلې صفاکولو آله ده.دغه شان دواړه صورتونه په مرضات کښی هم دی.فُمُ دفاپه درې واړو حرکاتو سره معنی ئې خوله ده.دا **لفظ په اصل وضع** کښی فَوه وو.ددې تثنیه (فمان اوفموان او فمیان راځی.ددې جمع افواه اوافمام ده.دلفظ رَب تحقیق دخطبې په تشریح کښی تیر شوې دې په (مِنْ كَلَامِ رَسُولِ رَبِّ الْعَلَمِينَ)کښی.

**ترکیب**۞السواك مبتداء مَطهَرة مصدر په معنی داسم فاعل په دې کښی هِیَ ضمیر دې هغه ئې فاعل لام جار فم ئې مجرور ،جارسره دمجرورنه متعلق په مَطهَرة پورې.مطهرة سره د فاعل او سره دمتعلق نه معطوف علیه.واوعاطفه.مرضاة مصدر په معنی داسم فاعل.دې کښی ضمیر دهِیَ دې هغه ئې فاعل.لام جار ،رب مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په مرضاة پورې.مرضاة سره دفاعل نه او سره دمتعلق نه معطوف.معطوف علیه سره دخپل معطوف نه خبردمبتداء.مبتداء سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه.

**﴿۱۴﴾- اَلْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلٰى** [تخریج: مشکواة،ص:۱٦۲،س:۲۰،عن ابن عمررض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ پورتنې لاس غوره دې د لاندې لاس نه.

**تشریح اوشان ورود**۞ حضرت ابن عمررض فرمائی چه نبی کریمﷺ په منبر باندې دصدقې باره کښی بیان کولو اودسوال نه بچ کیدلو ذکرئې فرمائیلو،اودَ (اَلْيَدُالْعُلْيَا خَيْر مِنَ اليدالسُّفْلى) وضاحت ئې فرمائیلو.هغه داچه د(اَلْيَدُ الْعُلْيَا) نه مراد خرچ کونکې اوورکولو والا لاس دې.اود (اليدالسُّفْلى) نه مراد اخستونکې او غوښتونکې لاس دې.ددې حدیث دشان ورود نه پس دا مسئله ښه پیژندل پکادی.چه چاسره دیوې ورځې دخوارك څښاك سامان وی بیا هغه څه

اوغواړي او ورته ورکړې شي نو دواړه گنهگاردي.په داسې صورت کښې اخستل اوورکول ناجائز دی.پاتې شود هديې والا صورت نو په دې کښې هديې اخستونکی دپاره جائزدی. اگرچه هغه يد سُفلى هم دې.ليکن غوښتونکې خونه دې.دلته د يَد سفلى نه مراد غوښتونکې لاس دې.بزرگانو ليکلي‌دی.چه هديه اخستونکی له پکاردی چه دپورته طرفه ئې واخلی ددې دپاره چه ديدسفلى مصداق ته نزدې هم ورنشی.بهرحال دسوال کولونه پرهيز پکاردې.او صدقې طرف ته تو جه ورکول پکاردی.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ د اَلْيَد معنی ده لاس.په اصل کښی يَدْيٌ وو.ددې تثنيه يَدَان ده او جمع ئې آيدی او يُدىّ ده او جمع الجمع ئې (اَيَادیُ) ده.عُليا او عَليا په ضمې اوفتحې سره هرهغه خيزته وائی چه او چت وي.خيردادضرب يضرب نه مصدر هم راځی او داسم تفضيل دپاره هم دااستعماليږی جمع ئې خِيُور راځي.دسفلى معنى ښکته او پاندې راځی.دا نصر ، سَمِعَ او کَرُمَ نه مستعمل دې.سفل سُفول او سِفَال وغيره ئې مصدرراځی.

**ترکیب**۞ اَلْيدُ موصوف العلياء ئې صفت.موصوف سره دصفت نه مبتداء خير اسم تفضيل په دې کښی هو ضمير دې هغه ئې فاعل.من جار(اَلْيَدُ السُّفْلَى) موصوف صفت.موصوف سره دصفت نه مجرور دجار.جارسره دمجرورنه متعلق په اسم تفضيل پورې.اسم تفضيل سره دخپل فاعل او سره دمتعلق نه خبر دمبتداء .مبتداء سره دخبر نه جمله اسميه خبريه.

﴿۱۵﴾- اَلْغِيْبَةُ اَشَدُّ مِنَ الزِّنَاءِ [تخريج:مشکواة،ص:٤١٥،س:٢١،عن ابی سعيد وجابر رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ غيبت زيات سخت دې د زنا نه.

**تشریح**۞کله چه نبی کريمﷺ اوفرمائيل چه غيبت زيات سخت دې د زنا نه،نو صحابه کرامو رض عرض اوکړو چه اې دالله رسولهﷺ! څنگه غيبت د زنا نه زيات سخت دې؟ وې فرمائيل چه سړې زنا اوکړی،بيا توبه اوباسی نوالله تعالی ئې معاف کوی.ليکن غيبت کونکې چه ترڅو پورې توبې سره دهغه چانه معافی اونه غواړی.چه دچا غيبت ئې کړې دې نو معاف کيږی نه.او غيبت په دې وجه هم دزنانه لويه گناه ده چه انسان خو اول غيبت گناه نه گنړی.او که گنړی ئې هم نو سپکه گناه ئې گنړی.حال دادې:چه غيبت لويه گناه ده.اوکله چه لويه گناه باربار کولې شی نو پخپله د زنا نه زياتيږی.دغيبت تعريف دادې: چه چاپسې پشې شا داسې خبره کول چه په هغه بده اولگی.دغيبت کونکی غيبت که چرته هغه چاته اورسی چه دچا غيبت ئې کړې دې.نوبيا که چرې معافی ئې اونه غوښته.او مړشو،نو ويره ده چه.دده نيکئ به هغه ته ورکړې شی چه دچا غيبت ئې کولو.او غيبت کول دمړمسلمان رور غوښه خوړل دی کومه چه حرامه ده.

**لغوی او صرفی تحقیق** ۞ (اَلغِیبَۃُ) په معنی دچا پسې شا خبره کولو ته وائی. دادضرب یضرب باب نه استعمال شوې دې. اَشَدُ. داسم تفضیل صیغه ده دضرب یضرب دباب نه په معنی دسختئ سره الزنا مصدردې. دضرب یضرب باب نه په معنی دزناکولو سره.

**ترکیب** ۞ (الغیبة) مبتداء اشدُ صیغه داسم تفضیل. من جار الزنا مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په اشد پورې. (اَشَدُّ) اسم تفضیل سره دخپل فاعل (چه هو ضمیر دې پکښې) اوسره دمتعلق شبه جمله خبر شو. مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۱۶﴾- اَلطُّهُورُ شَطْرُ الْإِيمَانِ (مسلم) [تخریج: مشکواۃ، ص: ۳۸، س: ۱۵، عن ابی مالك الاشعری رض مرفوعًا]

**ترجمه** ۞ صفائی نیم ایمان دې.

**تشریح** ۞ ددې حدیث دوه معانې دی. پاکوالئ او صفائی نیم ایمان دې یاد ایمان یوه حصه ده. ځکه چه دَ شطر دوه معانې دی: ❶ نیم ❷ په جُزکښې حصه، که دَ شطر معنی جُز واخستلې شی نو په دې کښې څه اشکال نشته. ځکه چه صفائی دایمان حصه ده، عقل ئې هم منی. لیکن که دَ شطرمعنی نیم واخستلې شی نو په دې کښې اشکال دې هغه داچه مونځ ته ئې نیم ایمان نه دی فرمائیلی. بلکه صفایئ ته ئې نیم ایمان وئیلی دی. ددې څه وجه ده؟

**جواب**: ❶ صفایئ ته ئې ځکه نیم ایمان اووئیلو چه صفایئ سره ظاهری پاکی حاصلیږی او ایمان سره باطنی صفائی راځی. اوهم دا دوه صفایانې مقصود وی. ❷ ایمان مرکب دې دتخلیه او تحلیه نه. د تخلیه معنی ده خپل ځان دګنده اخلاقونه صفاکول. او دتحلیة معنی ده خپل ځان ښو اخلاقوسره ښائسته کول، په اودس سره تخلیه راځی. ځکه چه په دې ګناه معاف کیږی او ایمان سره تحلیه کیږی. ځکه ئې دې ته نیم ایمان وئیلې دې.

**لغوی او صرفی تحقیق** ۞ الطهور دبَاب دَ کَرُمَ او نَصَرَ نه دمصدر صیغه ده چه لغوی معنی ئې هغه څیزده چه په هغې سره پاکی حاصلیږی. یعنی طاهر او مطهر دواړو ته طهور وئیلې شی. شطر مصدردې دکرُم دَ باب نه معنی ئې داده. ❶ جزء اوحصه ❷ نیم ❸ لرې والې ❹ طرف. هم په دې معنی باندې (فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ) راغلې دې. یعنی مسجد حرام طرف ته دلته مخکنې دوه معانې مراد کیدې شی.

**ترکیب** ۞ (اَلطُّهُورُ) مبتداء شطر مضاف. الایمان ئې مضاف الیه، مضاف سره دمضاف الیه نه خبر دمبتداء. مبتداءسره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۱۷﴾- اَلْقُرْآنُ حُجَّةٌ لَكَ أَوْعَلَيْكَ.

[تخریج: مشکواۃ، ص: ۳۸، س: ۱۷، عن ابی مالك الاشعری رض مرفوعًا]

**ترجمه** ۞ قرآن ستا دپاره حُجت دې یا په تا باندې حُجت دې.

**تشريح** که چرته دقرآن مطابق عمل دې،نو قرآن زمونږ دپاره حجت دې.او دليل دې او ذريعه دنجات ده.او که چرته خدائې مکړه عمل دقرآن خلاف دې.نوهم داقرآن به قيامت کښې زمونږخلاف دليل وی.په يوحديث کښی راځی چه قرآن يادولو نه پس هيرول ډيره لويه ګناه ده.په يويل حديث کښی دی چه دهغې مفهوم دادې.چه چا قرآن اونه لوستلو،بند ئې اوساتلو. نو په قبرکښی به په خُله باندې وهلې شي.اوکوم کس چه قرآن ډير لولی.نوپه قيامت کښی به قرآن مجيد دهغهٔ سفارش کوی.داقرآن هغه څيزدې چه په دې سره داللهﷻ نزديکت زر او زيات ملاويږی.امام احمدبن حنبلؒ په خوب کښې يوکم سل(۹۹) ځله دالله تعالی زيارت اوکړو.يوځل ئې دا سوال اوکړو.چه اې الله! ستا نزديکت کوم څيزسره ملاويږی؟ نوالله تعالی اوفرمائيل.قرآن کريم سره.بيائې تپوس اوکړو.چه پوهه سره اوکه بغير د پوهې نه؟ الله تعالی جواب ورکړو.چه سره د پوهې ئې لولې اوکه بغيرد بغير د پوهې نه.

**لغوی اوصرفی تحقيق** القرآن دفَتَحَ يَفتَحُ نه مصدردې.په معنی د کلام الله سره (حُجَّـةٌ)دنصر ينصر نه مصدردې په معنی ددليل او برهان سره.ددې جمع حُجَج اوحِجَاج راځی.

**ترکيب** القرآن مبتداء.حجة مصدر په معنی داسم فاعل،ل،جار،ك،مجرور.جارسره دمجرور نه معطوف عليه او حرف عاطف علی جارك مجرور.جار سره دمجرورنه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه متعلق په حجة پوری.حجة په معنی داسم فاعل سره دخپل فاعل نه او سره دمتعلق نه خبر مبتداء سره دخبر نه جمله اسميه خبريه.

﴿۱۸﴾- الْجَرَسُ مَزَامِيرُالشَّيْطَانِ (مسلم).

[تخريج:مشکوٰة،ص.۳۳۸،س:۱۸،عن ابی هريرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه** ټلۍ دشيطان شپيلۍ ده.

**تشريح** ټلۍ دشيطان شپيلۍ ده.چرته چه ټلۍ وی هلته شيطان خوشحاليږی.دې نه مراد هرهغه ټلۍ ده چه هغه بغير د ضرورته ټنګولې شی.په يو روايت کښی راځی چه يوه جينۍ حضرت عائشېؓ ته راغله چه هغې په خپوکښی جلاجل ګونګروګان اچولی وو(په دې کښی هم يوقسم ګونګرو وی) نو هغې ته ئې اووئيل چه: بهر اوځه! داسې ځائې ته فرشتې نه راځی. په يويل روايت کښی دی چه حضرت عمرؓ فرمائی چه ما دَ نبی کريمﷺ نه واوريدل چه دهر ګونګروسره يو شيطان وی.امام نووَی ددې وجه بيانوی،فرمائی چه جرس دناقوس په شان دې چه (د لرګی يا اوسپنې غټه ټکړه په وروکې ټکړې سره ټنګوی او غږوی) په دې وجه منع دې.ياپه دې وجه چه دادهغه معالقونه (ګونګروګانو) دې چه دهغې نه منع راغلې ده.چه دهغې آوازکښې کراهت دې.په دې وجه فرشتې نه راځی.ددې زيات تحقيق به په حديث نمبر(۱۳۸)کښی راشی (انشاءالله تعالی).

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ (اَلجَرَسُ) مصدردې دضرب یضرب دباب نه .ددې معنی ګونګرو،جرس او ګهړیال ده.جمع ئې اَجرَاس راځی.مزامیر جمع دمزمار ده ددې معنی ده شپیلۍ.

**ترکیب**۞ الجرس مبتداء.مزامیرالشیطان مضاف مضاف الیه خبر دمبتداء، مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۱۹﴾- اَلنِّسَاءُ حَبَائِلُ الشَّیْطَانِ (رزین) [تخریج:مشکواة،ص:٤٤٤،س:۱۷،عن حذیفة رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ ښځې دشیطان جالونه دی.

**تشریح**۞ ښځې دشیطان جالونه دی.سړوته خپل مخ ښائسته اوښکاره کوی.نوشیطان د سړیه زړه کښې واچوی چه دې سره خبرې اترې اوکړه.اودې طرف ته ښه اوګوره.اودې سره دوستی شروع کړه،وغیره.شیطان په ښځوکښې پټ شوې وی.هم دغه وجه ده چه یوحدیث کښې راځی چه جهنم کښې به ښځې زیاتې وی.(د بې پردګۍ اود غیبت په وجه) اوهم په دې وجه دښځو دفتنې نه بچ کیدو دپاره دحدیث نه دُعا ثابت ده.((اللهم انی اعوذُبك من فتنة النساء))

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ نساء جمع د اِمرَاَةٌ ده.اود امـراَةٌ نورې جمعې هم راځی.مثلا نِـسوَةٌ، نُسوَةٌ،نِسِیْن او نسوان وغیره.حبائل جمع دحبالـة ده.په معنی دَ جال او دام سره.یو لفظ حبل دنصرینصردباب نه مصدرپه معنی درسۍ.دهغې جمع حِبَال،اَحبَل،حُبُول او اَحبَال راځی.

**ترکیب**۞ (اَلنِّسَاءُ) مبتداء (حَبَائِلُ الشَّیطَان) مضاف مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه خبر دمبتداء. مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۲۰﴾- اَلطَّاعِمُ الشَّاكِرُ كَالصَّائِمِ الصَّابِرِ

(ترمذی) [تخریج:مشکواة،ص:۳٦۵،س:۲٦،عن ابی هریرة رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ خوړونکې شکرګزار د صبرکونکی روژه دار په شان دې.

**تشریح**۞ خوراك ښـاك والا سړې کـه شکرکوی.نو دده ثـواب دصبرکونکی روژه دارپـه شان دې.یعنی څومره ثواب چه دغـه روژه دارتـه ورکړې کیږی.هغومره دې خوراك اوښـاك کونکی تـه ورکړې کیږی. (اَلطَّاعِمُ الشَّاكِرُ)مقیس دې.او(اَلصَّائِمُ اَلـصَّابِرُ) مقیس علیـه دې.کوم چه قیاس کړې شی هغې ته مقیس وائی.اوپـه کوم چه قیاس اوکړې شی هغې تـه مقیس علیـه وائی.دلتـه طاعم شاکر مقیس دې داقیاس کولې شی په صائم صابر باندې.په دې وجه صائم صابر مقیس علیه دې.اودمقیس علیه دپاره شرط دادې چه دهغې دپاره نص وی.یعنی قرآن یا حدیث کښی دهغې اصل موجودوی نو چونکـه دصائم صابر دپاره حدیث کښی راغلی دی چه ډیرثواب دې.اوددې ادنی صبردادې چه د روژې مـاتوونکو څیزونونـه بچ شی،لهذا دَ مقیس یعنی دطاعم شاکرپه هم

دغه ثواب دي ځکه چه صائم د لوږې په وجه ژړا فریاد نه کوی. اوخوراك كونكې ناشكرى نه کوی.

**لغوی اوصرفی تحقیق**۞ (اَلطَّـا عِـمُ) دسمع دباب نه داسم فاعل صیغه ده په معنی دخوراك كونكى الشاكراوالصائم دنصر ينصر نه داسم فاعل صیغې دی.الصابر دضرب باب نه اسم فاعل دي.

**ترکیب**۞ الطاعم موصوف الشاکر ئې صفت موصوف سره دصفت نه مبتداء.ك جارالصائم موصوف الصابرصفت.موصوف سره دصفت نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابت پورې.ثابت اسم فاعل دهوضمیر پکښې دي هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه خبر دمبتداء. مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۲۱﴾- اَلْاِقْتِصَادُفِی النَّفَقَةِنِصْفُ الْمَعِيْشَةِ

(بیهقی) [ تخریج:مشکواة،ص: ٤٣٠،س: ٢٥،عن ابن عمر رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ په اخراجاتوکښې میانه روی کول د ژوند تیرولو نیمه حصه ده.

**تشریح**۞ په خرچه کښې میانه روی ساتل پکاردی.صرف د تنخوا زیاتولو فکرنه دی کول پکار.بلکه هم په دغه تنخواه کښې دخرچ پوره کولوکوشش پکاردې.هم دا نیم ژوند دی اودَ ژوند تیرولو نیمه حصه ده.اودا ډیره دَ تجربې طریقه ده.ځکه چه څومره تنخواه زیاتیږی نو هغومره دمال حرص هم زیاتیږی.

**لغوی اوصرفی تحقیق**۞ الا قتصاد دباب افتعال نه دمصدر صیغه ده.داپه لازمی بابونوکښې د ضرب یضرب نه راځی.په معنیٰ دمیانه رویٔ اختیارولوسره.(اَلنَّفَقَةُ)دا دانفاق اسم دې په معنی دخرچ ددې جمه نفقات اوانفاق راځی.یولفظ دي نَفَق په معنی دسُری سره ددې جمع انفاق راځی.نصف دنَصَرَ يَنصُرُ نه مستعمل دې.دالفظ په تثلیث دنون سره دې.ددې جمع انصاف راځی.المعیشة. ضرب یضرب نه مصدردي په معنی دژوندې پاتې کیدلواو دژوند ذریعه.

**ترکیب**۞ الاقتصاد مصدر ،فیجار ،النفقة ئې مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شو په مصدر پورې مصدرسره دخپل متعلق نه مبتداء (نِصْفُ الْمَعِيْـشَةِ) مضاف مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه خبر مبتداء.مبتداسره دخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۲۲﴾- وَالتَّوَدُّدُاِلَى النَّاسِ نِصْفُ الْعَقْلِ (بیهقی)

[تخریج:مشکواة،ص: ٤٣٠،س: ٢٦،عن ابن عمرمرفوعًا]

**ترجمه**۞ اوخلقو سره محبت کول نیم عقل دې.

**تشریح** خلقوسره محبت کول پکاردی اودانیم عقل ځکه دې چه کله سړې خلقو سره محبت کوی نودجنګ جهګړو، کنځلو او فسادونونه بچ وی.او خلقوسره په داسې طریقه ملاویدل چه دجنګ جهګړو وغیره نه بچ اوسی.هم دانیم عقل دې.پوره عقل هغه وخت وی کله چه په دین باندې پوره پوره عمل کونکې شی.خلاصه داشوه چه دبندګانو حق اداکول نیم عقل دې. اودالله ﷻ حقونه اداکول په دې سره عقل پوره کیږی.

**لغوي اوصرفي تحقیق:** تودّد دباب تفعل نه مصدردې په معنی دمحبت کولو سره.الناس اسم دې اودانسان جمع ده.نصف په تثلیث دنون سره دې.ددې جمع انصاف ده په معنی دهر څیز نیم.دعقل درې معانې دی❶روحانی نورچه په هغې سره دغیرمحسوس څیزونوادراک کیږی.❷زړه❸ دیت.جمع ئې عقول راځی.

**نکته** یوداسې حدیث اوښایئ چه په هغې کښې نهه ځله لفظ دنصف ذکروی؟ هغه هم دادې.

**ترکیب** واؤ عاطفه،التودّد مصدر،الی جار.الناس ئې مجرور،جارمجرور متعلق شوپه مصدر پورې.مصدرسره دخپل متعلق نه خبر دمبتداء،مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه

(۲۳)وَحُسْنُ السُّؤَالِ نِصْفُ الْعِلْمِ .

[تخریج:مشکواۃ،ص: ۴۳۰،س: ۲۶،عن ابن عمر رضی اللہ عنہ مرفوعًا]

**ترجمه** ښۀ تپوس نیم علم دې.

**تشریح** دزادالطالبین په بعضو نسخوکښې دا جمله شته اوپه بعضوکښې نشته.لیکن په اصل کتاب مشکوۃ کښې داجمله شته دې.اوداحدیث په مشکوۃ کښې په حواله دبیهقی سره موجوددې.اوداد نصف والا درې واړه جملې په یوحدیث کښې ذکردی.ددې مطلب دادې چه ښه سوال کول پکاردی.او فضول سوال نه دی کول پکار.اوددې ویرې نه چه خلق به څه وائی.سوال پریخودل نه دی پکار.په دې حدیث کښې ئې داستفتاء طریقه ښودلې ده چه سوال اواستفتاء واضحه پکاردی.

**لغوي اوصرفي تحقیق** حسن وئیلې شی ښائست او ښکلی والی ته.ددې جمع خلاف قیاس محاسن راځی.اویو لفظ حَسَن دې.کوم چه دصفت صیغه هم ده.اودنصر ینصر نه دمصدر صیغه هم.او دحسن جمع حِسان اوحُسان راځی.اودا دکَرُمَ د باب نه هم استعمال شوې دې. سُوال دفتَحَ یَفتَحُ دباب نه مصدردې،باقی تحقیق ددې تیرشوې دې.دنصف معنی هم اوس تیره شوه.العلم مصدرې دباب د سمع یسمع نه،ددې معانې دیو څیز دحقیقت ادراک یقین او پیژندل دی.ددې جمع علوم راځی.

**ترکیب**۞ حسن مضاف.السوال مضاف اليه،مضاف سره دمضاف اليه نه مبتداء.نصف العقل نصف مضاف العقل مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه.

﴿۲۴﴾- التَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ، كَمَنْ لَا ذَنْبَ لَهُ

[ تخريج:مشكواة،ص:۲۰۶،س:۲٤،عن عبدالله بن مسعودؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ دګناهونو نه توبه ويستونکي دهغه سړي په شان دي.چه هغهٔ دپاره هيڅ ګناه نه وی.

**تشريح**۞ دتوبې معنى داده چه په تير شوؤګناهونو باندې ډيري پښيمانتيا سره معافي اوغوښتلې شي.اوپه راتلونکي وخت کښې دګناهونو نه دبچ کيدلو پخه اراده اوکړی.اود ګناهونونه ځان ساتي. بيا خدائې مکړه که چرته توبه ماته شي نوبيا دې توبه اوباسی.که بيا ماته شي نوبيا توبه اوباسی.په يومنټ کښې د زړه داخلاصه توبې سره دسلو کالو ګناهونه معاف کيږی. په توبه کښې روسته والې کول بالکل نه دی پکار.څه پته لګی چه مرګ کله راځی.اودګناهونو نه ځان ساتل پکاردی.دګناه په وخت هم مرګ راتلې شی.نو بهرحال توبه کونکې دې داسې جوړيږی.لکه چه ګناه ئې نه وی کړی.اودا دالله ﷻ ډير لوې انعام دې دلته لفظ دذنب راغلې دې.چه ددې معنى عام طوريه وړوګناهونوسره کيږی.نومطلب دادې چه وړه ګناه هم کول نه دی پکار(ځکه چه هغه باربار کولو سره لويه ګناه جوړيږی) ليکن که خدائې مکړه وړه ګناه هم اوشی نوسمدستی توبه کول پکاردی.او دګناهونونه پاك صفا کيدل پکاردی.اوداسې جوړيدل پکاردی .لکه چه ګناه ئې نه وی کړې.او حقيقت دادې چه داسې يوه ګناه نشته کومه چه پريښودې نشی،او دهغې نه پخه توبه اونه شی ويستلې.

**لغوی اوصرفی تحقيق**۞ (اَلتَّائِبُ) داسم فاعل صيغه ده.دنصر ينصر دباب نه استعمال شوې ده. ددې ډيرمصدرونه راځی.(تَوْبًا و تَوْبَةً و تَابَةً و مَتَابًا وتَتوِبَـــةً) ذنب مصدر دې دضرب او نصر دَباب نه معنى ئې ګناه ده ددې جمع ذنوب راځی.اوجمع الجمع ئې ذنوبات راځی او يو لفظ دې ذنب په فتحې دنون سره په معنى دلکئی.ددې جمع اذناب ده.

**ترکيب**۞ (اَلتَّائِبُ) اسم فاعل،په دې کښې هُوَ ضمير ددې فاعل شو.من حرف جار الذنب مجرور.جار سره دمجرور نه متعلق په التائب پورې.التائب سره دخپل فاعل او متعلق نه مبتداء.ك حرف جار.من موصوله لاَ دنفی جنس.ذنب ددې اسم.لَ جار،ه ضميرمجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په موجـوْدٌ محذوف پورې.موجودٌ اسم مفعول .په دې کښی هو ضمير دې هغه ددې نائب فاعل شو.اسم مفعول سره دنائب فاعل نه خبر.لا لنفی الجنس سره دخپل اسم اوخبرنه جمله اسميه خبريه صله شوه.موصول سره دصلې نه مجرورډجار.جارسره د مجرور نه متعلق په ثابت پورې ثابت اسم فاعل

دیکښې هُوَ ضمیردې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دخپل فاعل نه او دمتعلق نه خبر دمبتداء. مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبر یه شوه.

﴿۲۵﴾- اَلْكَيِّسُ مَنْ دَانَ نَفْسَهُ وَعَمِلَ لِمَا بَعْدَ الْمَوْتِ وَالْعَاجِزُ مَنْ اَتْبَعَ نَفْسَهُ هَوَاهَا وَتَمَنّٰى عَلَى اللّٰهِ

[تخریج:مشکواة:ص:۴۵۱ ، س:۱۵ ، عن شداد بن اوس مرفوعًا]

**ترجمه** هوښیارسړې هغه دې.چه دخپل نفس خیال اوساتي (بدله ورکړی) اوعمل اوکړی. دهغه څیز دپاره کوم چه دمرګ نه روسته دې.بیوقوف هغه دې.چه هغه خپل ځان دنفس خواهشاتو پسې اولګوی.او آرزوپه الله تعالی باندې کوی.

**تشریح** عقل مند او هوښیار هغه دې.څوك چه په خپل نفس باندې غالب راشی.او نفس دالله ﷻ دحکمونو دپاره فرمانبردارجوړکړی.اووخت په وخت ئې خیال اوساتی.او نفس ته بدله ورکوی ددې دپاره چه ګناهونونه بچ پاتې شی او دمرګ دپاره تیارې اوکړی.او بې وسه او بیوقوف هغه دې چه دنفس ناجائز خواهشات هم پوره کوی.او بغیر دنیکئ کولونه دالله ﷻ نه دا امید ساتی.چه زه به اوبخښلې شم.

**سوال** د(اَلْكَيِّس) معنی ده،،عقلمند،،.ددې په مقابله کښې (بَلِيْدٌ) په معنی د بې وقوف راتلل پکاروو.نو عاجز ولې راغې؟

**جواب**:.چونکه بې وقوفئ سره عجز لازم دې په دې وجه ئې عاجز لفظ کیخوده.او دغه شان په حدیث کښې دبدڅیز ذکرکم کیږی.په دې وجه ئې بلید ذکرنه کړو.

**لغوی او صرفی تحقیق** اَلْكَيِّسُ په تشدید دیاء سره او په کسرې دیاء سره په معنی دپوهې راځی ښه سوچ او پوهې والا،ددې جمع اکیاس اوکَیِّسی راځی.دا دضرب یضرب دباب نه استعمال شوې دې.او یولفظ کیس دې.چه هغه مصدردې.چه دهغې دا معانې دی.❶ عقل ❷ پوهه❸ هوښارتیا❹ فکر❺جماعت ❻ بخشش❼ په کارونو کښې پوهیدونکې.(کِيَاسَةً) ئې هم مصدرراځی.اوبل لفظ کِیس دې په معنی دتهیلئ او بټوې سره،ددې جمع اکیاس او کِیَسَة راځی .دان دضرب یضرب نه په معنی دبدله ورکولو او ذلیل کولوسره.نفس دنصرد باب نه مصدردې په معنی دروح لوونې سره.که چرته دنفس نه مراد روح وی نو بیا دامؤنث دې لکه (خَرَجَتْ نَفْسُهُ)او که نفس نه مرادسړې وی نو بیا دامذکردې لکه(عِنْدِیْ خَمْسَةَ عَشَرَ نَفْسًا) ددې جمع اَنفُس او نفوس راځی.بل لفظ دې نفس په فتح دفاء سره.ددې معانې دادی ❶ دهوا چپه ❷ ساه❸ مهلت ❹ ګنجائش❺ فراخی.ددې جمع اَنفَاس راځی.عَمِل دباب دسمع نه ماضی ده.په معنی دکارکولو،محنت کولو خپلې ارادې سره،ددې جمع اعمال ده.په فعل او عمل کښې فرق د(اِنَّمَا الاَعمَالُ بالنِّیات) په حدیث کښې تیر شوې دې الموت مصدر دې.دنصر ینصر دباب نه په معنی دمړکیدلوسره.بیاکوم مرګ چه په قتل سره وی هغې ته

الموتُ الاحمر وائی. اوکوم چه طبعی یا اچانك راشي هغې ته(اَلْمَـوتُ الاَبـيَض)وائی. او کوم مرګ چه په تیزندئ سره راغلې وی هغې ته المَوتُ الاَسودُوائی. (اَلعَـاجزُ)دضرب او سمع نه اسم فاعل صیغه ده په معنی دعاجزه کیدلو او طاقت نه لرلوسره. ددې دا مصادر راځی: (عَجْزاً، عُجُوْزاً، عَجَزَانا، مَعجِزاً، مَعجِزَةً اومَعجَزَةً) بل لفظ اَلعَجز دې. ددې معنی توره ده. اود اَلعَجَــز او اَلعِجز معنی ده روستنئ حصه. کوناتې. ددې جمع عواجز راځی. یو بل لفظ دې عَجُــوز ددې جمع عَجُــز او عَجَــائز راځی. ددې د شپیتونه زیاتې معانې دی.____ مثلاً ❶ بوډئ. ❷ شراب❸ مصیبت ❹کشتئ ❺ اسپه ❻ بجو(مړی خورځناور) ❼ زمرې❽ غـوائی❾اوښه❿ شرمخ (۱۱) لړم (۱۲) مرګ وغیره وغیره. اتبع داد باب افعال نه دماضی واحدغائب صیغه ده. ددې مجرد د سَمِعَ یَسمَعُ نه راځی. اود مجردونه ددې مصادر تبعا او تباعا او تباعة راځی.

**ترکیب**۞ الکیس مبتداء من موصوله. دان فعل دې ضمیر دهوپکښی دې هغه ئې فاعل. نفس مضاف مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول بهِ شو. فعل سره دفاعل اوسره دمفعول بهِ نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه. واوحرف عاطفه عمل فعل ضمیردهوپکښی دې هغه ئې فاعل. ل جار. ما. موصوله بعدمضاف الموت مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول فیه شو دفعل مقدر یثبت، یثبتُ فعل سره دخپل فاعل هو ضمیر نه اومفعول فیه نه صله دموصول. موصول سره دصلې نه مجروردجار. جارسره دمجرورنه متعلق په عمل پورې. عمل فعل سره دهو ضمیرفاعل نه اوسره دمتعلق نه معطوف. معطوف علیه سره دخپل معطوف نه صله دمن. من موصوله سره دخپلې صلې نه خبر دمبتداء. مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه واوعاطفه. العاجز مبتداء من موصوله. اتبع فعل په دې کښی دهو ضمیر دې هغه ئې فاعل. نفس مضاف هوضمیر مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول اول. هواها مضاف مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه دویم مفعول شو. فعل سره دخپل فاعل او سره ددواړو مفعو لینونه معطوف علیه. واو حرف عاطف، تمنی فعل ضمیر دهوپکښیدې هغه ئې فاعل. علی جار لفظ اللهﷻ ئې مجرور. جار سره دمجرورنه متعلق شو تمنی پورې. فعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه معطوف. معطوف علیه سره دخپل معطوف نه صله دموصول موصول سره دصلې نه خبر دمبتداء. مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف شو. معطوف علیه سره دخپل معطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۲۶﴾- اَلْمُؤْمِنُ مَاْلَفٌ وَلَاخَيْرَفِيْمَنْ لَايَأْلَفُ وَلَايُؤْلَفُ

[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۲۵ ، س:۹ ، عن ابی هریرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ مسلمان دمحبت ځائې دې. په هغه سړی کښې خیرنشته چه نه هغه محبت کوی اونه دهغهٔ سره محبت کولې شی.

**تشریح**۞ مسلمان دمحبت ځائې دې. یعنی ده سره محبت او نرمئ سره اوښه اخلاقوسره معامله پکارده که څه خبره ورته کوې نوپه خندا سره ئې کوه، په مینه ئې ورته کوه. دغصې اظهار مکوه. په یو بل حدیث کښی راغلی دی چه کله تاسوخپل مسلمان رورسره ملاویږئ

نوپه فراخه تندی ورسره ملاویږئ.یعني په خندا وسره ملاوشه.داسې ورسره مه ملاویږه چه مخ اوتندی دې ورته ګونجې کړې وی.ورپسې ئې صفا بيان اوفرمائيل.چه داسې سړې چه هغه نه دچا سره محبت کوی اونه ده سره څوك محبت کوی نوپه ده کښې څه ښيګړه اوخير نشته.يعني انسان له سخت طبيعته اوسيدل نه دی پکار.دهر سړی د مرتبې او درجې مطابق توقې هم کول پکاردی.ديو بزرګ نه چا تپوس اوکړو چه آيا صحابه کرامو﷡ به هم خندل؟ نووې فرمائيل.چه صحابه کرامو به دومره خندل چه په يوبل دپاسه به ور پريوتل.دغفلت خندا سره زړه مړکيږی.دصحابوﷺ خندا دغفلت نه وه.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ دمالف معنی ده خوښ اومحبوب څيز.ددې جمع مَالف راځی.داد سَمِعَ يَسمَعُ دباب نه استعمال شوې دې.او ددې نه دې: اُلفَةٌ (دوستی او محبت) او تاليف (کتاب او مؤلف (مصنف) مَالف داسم ظرف صيغه ده.اواَلف(يوزر)او اَلِف(د حروف تهجی رومبې حرف)

**ترکيب**۞ المؤمن مبتداء.مَالفٌ ئې خبر.مبتداسره دخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.واوْ(استينافيه لَالنفی الجنس) خيرددې اسم فی.جار،من موصله (لَايَاْلف) فعل په دې کښې ضمير دهُوَ چه هغه ئې فاعل.فعل سره دفاعل جمله فعليه خبريه معطوف عليه واو عاطفه (لَايوْلَف) فعل ضمير دهُوَپکښې دې هغه ئې نائب فاعل.فعل سره دخپل نائب فاعل نه جمله فعليه خبريه معطوف معطوف عليه سره دخپل معطوف نه جمله معطوفه صله دموصول چه مَنْ دې.موصول سره دخپلې صلې نه مجرور دجار.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابت پورې.ثابت اسم فاعل په دې کښې ضمير دهودې هغه ئې فاعل .اسم فاعل سره دخپل فاعل او سره دمتعلق نه خبر شو د لا لنفی الجنس دپاره.لا لنفی‌الجنس سره دخپل اسم او خبر نه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۲۷﴾- اَلْغِنَاءُ يُنْبِتُ النِّفَاقَ فِيْ الْقَلْبِ كَمَا يُنْبِتُ الْمَاءُ الزَّرْعَ

(بيهقی)[ تخريج:_ مشکواۃ: ص:۴۱۱، س:۴ ، عن جابر﷛ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ ګانا(لوبه) په زړهٔ کښې نفاق پيداکوی.داسې لکه څنګه چه اوبه زرغونوی فصل لره.

**تشريح**۞ لوبې وئيلو سره په زړه کښې نفاق پيداکيږی.او دامشبه ده اومشبه بهِ روستو ده.لکه څرنګه چه اوبه فصل زرغونه وی.دغه شان په زړه کښې نفاق زياتيږی.لوبې وئيل اولوبې اوريدل په شَريعَت کښې ناجائزدی.او حرام دی، اوګناه کبيره ده.اود ګناه کبيره باربار کولو سره ايمان په خطره کښې پريوځی.چه چرته ضائع نه شی.څکه چه حديث شريف کښې راځی. چه بنده کله ګناه اوکړی.نوپه زړهٔ باندې تور ټاکې لګولې شی.اوکله چه انسان باربار ګناه کبيره کوی.نو ښکاره خبره ده چه زړه به ئې تورشی اودايمان نه به لاسونه اووينځی.مخکښې دنفاق شکل وو.اوس به حقيقی نفاق راځی.په دې وجه هره موسيقی اوهرقسمه ګانې اولوبې اوهر يو فضول خبرې وئيلو او اوريدلونه پرهيز پکاردې.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ (اَلغِنَاء) په قصر او مد دواړو سره په معنی دلوبې او سندرې.بل لفظ غنی دې او اَلغَنَاء په معنی دمالدارئ سره،غَنِیٌّ معنی ئې مالداره،جمع ئې اغنیاء راځی. ددې باب سمع یسمع دې (غَنِیَ الرَّجلُ) په معنی دنکاح کولو.ینبت دباب افعال نه دمضارع واحدغائب صیغه ده.اوددې مجرد نصرینصرنه استعمال دې.ددې معنی ده زرغونول او پیداکول.بل لفظ دې نَبتٌ ددې جمع نُبُوتٌ راځی.اومعنی ئې سبزی ده اوالنبات ئې مصدردې دنصر ینصر نه.کوم څیز چه دزمکې نه راؤ ټوکیږی.النفاق مصدردې.په مجرد کښې دباب نصر نه،او په مزیدو کښی دباب مفاعل نه،په مجردو کښی ددې معنی ختمیدل او کمیدل دی.او په مزیدو کښی ددې معنی په زړه کښی کفر پټول دی.یو بل لفظ دې نَفَقٌ په معنی د سوری.جمع ئې انفاق راځی.او بل لفظ دې نَفَقَةٌ په معنی دلګښت سره.ددې جمع نفقات او نفاق او اَنفَاق راځی،القلب په معنی دزړه او عقل سره.ددې جمع قلوب راځی اودا دسمع، نصر اوضرب نه استعمال شوې دې.که چرته نصراوضرب نه راشی نوددې معنی ده په زړه باندې وهل.او که سمع نه راشی نوددې معنی ده الټه شونډو والا.بل لفظ قلیب دې په معنی دکوهی.اوبل لفظ قِلِّیب دې په شد سره په معنی دشرمخ اوزمری.الماء په معنی‌داوبو.ددې اصل موهٌ دې.او تصغیر ئې مُوَیۃٌ دې.اوددې جمع میاه او امواه راځی.الزرع دفتح دباب نه مصدردې.اومعانی ئې دادې❶ پټې❷ اولاد❸کرل او تخم اچول.جمع ئې زُرُوع راځی اوزُرعَه تخم ته وائی.

**ترکیب**۞ الغناء مبتداء ینبت فعل په دې کښی هو ضمیردې هغه ئې فاعل.النفاق مفعول به فی جار القلب مجرور دجار.جار سره دمجرورنه متعلق اول شو دفعل.ك حرف جار،ما موصوله.موصول سره دصلې نه مجروردجار.جار سره دمجرور نه متعلق ثاني شودفعل.فعل سره دخپل فاعل اوسره دمفعول بهٖ نه او سره ددواړومتعلقونه جمله فعلیه خبریه خبرد مبتداء.مبتداء سره دخپل خبر نه جمله اسمیه خبریه.

﴿۲۸﴾- اَلتُّجَّارُ يُحْشَرُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فُجَّارًا إِلَّا مَنِ اتَّقَى اللّٰهَ وَبَرَّ وَصَدَقَ

[تخریج:_ مشکواۃ: ص:۲٤٤ ، س:۱، عن عبیدبن رفاعه رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ سوداګر به دقیامت په ورځ جمع کولې شی د بدکاروپه حالت کښې،مګرهغه چاچه پرهیزګاری اوکړه اونیکی ئې اوکړه او رښتیا ئې اووئیل.

**تشریح**۞ سوداګر به قیامت کښی بدکارجوړکړې شوی اوچتولې شی.البته هغه سوداګرچه هغوی دحرامونه ځان ساتی اوپه قسمونوکښی رښتونې وی.او رښتیاوائی.نوهغه به په قیامت کښی دنبیانو سره، صدیقینوسره او شهیدانوسره اوچتولې شی.لکه څنګه چه په راتلونکی حدیث کښی راروان دی.اوهغه به پخپله هم دنیکانو نه وی ددې حدیث نه صفا

معلومیږي چه کم ناپ کول اوکم تلل ډیره لویه ګناه ده.اول خوقسمونه خوړل نه دي پکار. اوکه خوړلي ئي وي نو دهغې پوره کول هم پکاردي او د دوکانداریٔ چلولو دپاره د دروغو قسمونه هم نه خوري.

**لغوي او صرفي تحقيق** التجار جمع دتاجر ده،او تِجَارٌ او تُجُرٌ هم د تاجر جمع راځي.داد نصر ينصردباب نه استعمال شويدي دفعل مضارع مجهول دجمع مذكر غائب صيغه ده.معنى ئې داده چه جمع به كړي شي.هم ددې نه دې حشرات الارض يعني دزمكې چينجي مينجي. حشرات جمع دحشرة ده (اِتَّقـى يَتَّقِـي اِتِّقـاءً) دباب افتعال نه دې په معنى دپرهيزګارئ اختيارولو.اوددې مجرد دباب دضرب نه راځي.وَقي،يَقِي،وِقَايَة په معنى دحفاظت كولو او بچ كولو.برَّ دضرب نه دماضي واحد غائب صيغه ده په معنى داطاعت كولو،ښه سلوك كول، صفت ئې بردې جمع ئې ابراررائي،يو لفظ دې اَلبَرُ.دا دالله ﷻدنومونونه يونوم هم دې.او ددې معنى اوچه زمكه هم راځي.ددې جمع برور راځي.او بل لفظ دې اَلبِـرّ په معنى ❶ داطاعـت،❷ هديـه،❸ صـلاحيت،❹ رښتيـا،❺ زړه،❻ د لومبـړې بچـې،❼ مـړه (منګكورې)❽ غنـه مـړه.اوبـل لفـظ اَلبُـرُّ دې داجمع ده.واحد ئې بُرة راځي په معنى دغنمو.صدق دنصر باب نه دماضي واحد غائب صيغه ده.ددې مصدرونه داراځي(صِـدْقًا اوصَدْقًا اومَصدوقَةًاوتَصدَاقًا) بل لفظ دې صدقة په معنى دخيرات ددې جمع صدقات ده.او بل لفظ دې صداق اوصَداق په معنى دمهر.ددې جمع اَصدقه اوصُدُوق راځي هم ددې نه دې صداقة په معنى درښتوني دوستئ.او هم ددې نه دې اَلـصِّدْق په معنى د ❶رښتيا،❷ فضيلت،❸ صلاح،❹ سختي،❺ مضبوطي.

**تركيب** اَلتُّجَـار مبتداء،يُحشَرُونَ فعل،په دې كښي هُوَ ضمير ددې ذوالحال.يوم القيامة مضاف مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول فيه.فجارحال.ذوالحال سره دخپل حال نه مستثنىٰمنه،الا حرف استثناء.من موصوله.اتقى فعل فاعل.فعل سره دفاعل معطوف عليه،واؤعاطفه برفعل ضميردهو پكښي دې هغه ئې فاعل.فعل سره دفاعل معطوف اول. واؤ عاطفه صَدَقَ فعل ضمير دهوپكښي دې هغه ئې فاعل.فعل سره دفاعل معطوف ثاني. معطوف عليه سره دخپلودواړومعطوفونه جمله معطوفه مستثنى،مستثنى منه سره دخپلې مستثنى نه نائب فاعل.فعل سره دخپل نائب فاعل نه اوسره دمفعول فيه نه جمله فعليه خبريه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۲۹﴾- اَلتَّاجِرُ الصَّدُوْقُ الْأَمِيْنُ مَعَ النَّبِيِّيْنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَاءِ

[ تخريج:_ مشكوٰة: ص:۲۴۳، س:۲۳، عن ابي سعيدؓ مرفوعًا]

**ترجمه** امانت دار رښتوني سوداګريه نبيانو او صديقينو اوشهداؤ سره وي.

**تشريح** ۞ په تيرشوی حديث کښې دبد سوداګر بدی بيان شوې وه.اود ښه سوداګرصفت طرف ته اشاره وه.اوس په دې حديث کښې صفا ذکردی.چه څوك صحيح سوداګر وی.امانت داروی او رښتونې هم وی. دهوکه بازنه وی.هغه به په قيامت کښې ښه محشرکښې وی.يعنی هغه به پخپله نيك وی.اويه محشرکښې به ياد شهيدانو سره وی،يا صديقينو سره،اويا به دنبيانو سره وی.دهر سوداګر درجه ده.څومره چه ئې نيکۍ زياتې وی په تجارت کښې به ئې هغومره درجه زياتيږی.په قيامت کښې به اخری درجه داوی،چه دغه سوداګر به دحشرپه ميدان کښې دپيغبرانو سره اوچتولې شی.

**لغوی او صرفی تحقيق** ۞ اَلتَّاجِرُ ددې تحقيق په مخکښې حديث کښې تيرشوې دې (اَلصَّدُوق) ډير زيات رښتيا وئيلو والا.دمبالغې صيغه ده.اوددې ماده صدق په وړاندې حديث کښې تيره شوې ده.(اَلاَمِينُ) په معنی ❶دهغه سړی چه هغهٔ سره امانت کيخودې شی.❷ هغه سړې چه هغه چاسره امانت کيږدی. ددې جمع اَمنَاء ده.(اَلنَّبِيِّنَ) جمع ده د نَبِیٌّ.د نبی اونبوهٔ معانې دادی❶ پيغمبر❷ پيغمبری،(اَلصِّدِّيقِينَ)جمع دصديق ده په معنی د ډير زيات رښتيا وئيلو والا.(شُهَدَاءُ) جمع دشهيد ده.د شين فتحې سره هم راځی او کسرې سره هم.معانی ئې دادی❶حاضر❷ په ګواهی کښې امانتدار❸هغه ذات چه دهغه دعلم نه څه څيز پټ نه وی❹ دالله ﷻ په لاره کښې وژلې شوې.که چرته دادسمع باب نه راشی.نومعنی ئې حاضرده.اوکه چرته دکرم باب نه راشی نو بيا ئې معنی ګواهی ورکول دی.هم ددې نه شاهد په معنی دژبې دې. ددې جمع (شَهْدٌ و شُهودٌ و اَشهَادٌ) ده.

**ترکيب** ۞ (التاجر) موصوف الصدوق ئې صفت اول الامين ئې صفت ثانی.موصوف سره ددواړو صفتونو نه مبتداء،مع مضاف(اَلنَّبِيِّين)معطوف عليه واو عاطفه(الصديقين)معطوف اول.واو عاطفه الشهداء معطوف ثانی.معطوف عَليه سره ددواړومعطوفونه مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه خبرد مبتداء. مبتداء سره دخپل خبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿ ۳۰ ﴾- آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ

(بخاری فی الامانة)[تخريج:_ مشكوٰة: ص:۱۷، س:۱٤، عن ابی هريرة رض مرفوعًا]

**ترجمه** ۞ دمنافق درې نخښې دی.کله چه هغهٔ خبره اوکړه نودروغ ئې اووئيل اوکله ئې چه وعده اوکړه نوهغه ئې ماته کړه،اوکله چه هغهٔ سره امانت کيخودې شو،نوهغهٔ خيانت اوکړو.

**تشريح** ۞ دمنافق درې غټې نخښې دادی.چه کله هم خبره کوی نو دروغ وائی.اوکله چه هم وعده کوی نو وعده خلافی کوی اوکله چه هم هغه امانت دځان سره کيږدی نوخيانت کوی.

**سوال** منافق هغه دې چه په زړه کښې کفرساتی.منافق مسلمان نه وی.نودا مطلب شوچه دروغ ويونکې او امانت کښې خيانت کونکې.غرض داچه هره کبيره ګناه کونکې مسلمان نه

دي حالانکه حديث کښي راځي چه صرف کلمه شريف ويونکي مسلمان دي او کله خوبه ضرور جنت ته لاړشي. او څوك چه منافق وي هغه خوبه جنت ته نه ځي. غرض داچه آيا کبيره گناه کونکي دايمان نه اوځي؟

**جواب**: کبيره گناه کونکي دايمان نه نه اوځي بلکه ايمان ئې کمزوري کيږي. دلته گناه ذکر ده ددي مطلب دادي چه دداسي کارونو کونکي دمنافق په شان گرځي.

**دحديث د معتزله دليل دي** هغوی دا وائي چه کبيره گناه کونکي دايمان نه اوځي او هميشه هميشه دپاره دجهنم حقدار جوړيږي مونږ ددي جواب دا ورکوو چه ايمان نه مراد کامل ايمان دي معنی ئې داده چه کبيره گناه کونکي د کامل ايمان نه اوځي کمزوري مؤمن جوړيږي يعنی دهغه ايمان کمزوري کيږي.

**لغوی اوصرفی تحقيق** آية دا اسم دي په معنی دعلامت. ددي دوه جمعي راځي ❶ آی ❷ آيات. المنافق: هغه څوك چه په زړه کښی کفرکونکي وي. باقي ددي مادي تحقيق په حديث نمبر [۲۱] کښي تير شوي دي. ثلث دامصدر دي د نَصر دباب نه، ثُلثا ئې هم مصدر راځي. ددي معنی ،،دري،، ده. اوهم ددي نه دي (الثُلثُ والثُلُثُ) په معنی دريمي حصي ددي جمع (اثلاث) راځي. او هم دي نه دي الثلث چه معنی ئې داده چه داوښي دريم بچي. حَـدَّثَ داد باب تفعيل نه دماضي واحد غائب صيغه ده په معنی دبيانو لو ❷ خبرور کول ❸ روايت کول. ددي مجرد دباب د نصرنه استعمال شوي دي. په معنی دواقع کيدلو. هم ددي نه دي الحدث ښه خبرو اترو کولو والا. اوهم ددي نه دي الحدث په معنی د ❶ نوي څيز ❷ دسنت نه خلاف ❸ په دين کښي نوي خبره ❹ غټ اودس ماتي. ددي جمع احداث راځي. هم ددي نه دي احاديث دالفظ احاديث ددريو مختلفو لفظونو جمع ده ❶ (احدوثة) خبره اوقصي ❷ حديث نوي ❸ حديث خبر كذب دا دباب ضرب نه دماضي واحد غائب صيغه ده. ددي گنړ مصادرراځي (كَذِبًا وكِـذْبًا وكَذِبَةً و كِذْبَةً وكِذَابًا وكِذَّابًا) په معنی د ❶ دروغ وئيل ❷ په قصد سره غلط خبرور كول هم ددي نه دي (اُكْذُوبَةٌ) په معنی ددروغو. جمع ئې اكاذيب ده هم ددي نه كذوب راځي. په معنی دلوئي دروغژن. جمع ئي (كُذُبٌ او كَذَبَان) ده. وعدَ دادضرب باب نه دماضي واحدغائب صيغه ده ددي مصادر راځي (وَعْدًا وعِدَةً ومَوعِدةً و مَوعِدًا ومَوعِدَةً) ددي معنی ده وعده كول. هم ددي نه [illegible] معنی دوعدي وخت ياځاي. جمع ئې مواعيد ده. الوعد مصدردي. [illegible] راځي. اودبعضو په نزدوعود راځي، أخلف داد باب افعال نه دماضي [illegible] صيغه ده اوددي مجرد دنصر باب نه هم راځي اود سمع نه هم. داخلف لغوی معنی دبوی بدليدل ياخرابيدل ده. بيا دموقعي مطابق استعماليږي لکه (اَخلَفَ الثَّـوبَ) په معنی د(جامو ته تکړي) گنډلو (اَخلَفَ لاَهْلِه) دخپلو خلقودپاره اوبه راويستل (اَخلَفَ وَعدَه وبوَعْدِه) وعده خلافي كول. دلته ددي حديث هم دامعنی ده. دلته دري الفاظ دي. ❶ اَلْخَلفُ دي په معنی ديوي ډلي کومه چه دبلي ډلي نه روستووي ❷ الخلف دي په معنی د ❶ وعده نه پوره [illegible] شوي نه خلاف كول. خلف دخليف جمع ده ❸ اَلخلف دي په معنی د ❶ مختلف

❷دسپرلی واښه❸ داوښې دغلانزې سر.دخلف جمع اخلاف راځی.(اُوْتمِنَ دَاَمَانَتٌ) نه دې.ددې معانې په حدیث ❸کښې تیرې شوې دې.خانِ دنصر باب نه دماضی واحد غائب صیغه ده ددې مصادرراځی خَوانًا اوخِیَانَة اومَخَانَة اوخَائِنَة په معنی دامانت کښی خیانت کول. ددې نه دي اَلخَانُ په معنی ددوکان،سرائې.ددې جمع (خَانَاتٌ) راځی.اوددې نه (خُـوَانٌ او خِـوَانٌ) په معنی د دسترخوان ددې جمع اَخونة او خُونٌ راځی.

**ترکیب**۞ (اٰيَةُ المُنَافِقِ) مضاف مضاف الیه مبتداء،ثلث مبدل منه.اذاحرف شرط،حدث فعل هو ضمیر ئې فاعل.فعل سره دفاعل شرط کذب فعل هوضمیر ئې فاعل.فعل سره دفاعل جزاء. شرط سره دجزاء معطوف علیه.واؤحرف عاطفه اذا شرطیه وَعَدَ فعل هوضمیر ئې فاعل.فعل سره دفاعل شرط،(اَخلَفَ) فعل هم ضمیر ئې فاعل فعل سره دفاعل جزاء.شرط سره دجزانه معطوف اول.واو حرف عاطفه اذا شرطیه (اُوْتمِنَ) فعل هو ضمیر ئې نائب فاعل فعل سره دخپل نائب فاعل نه شرط.خان فعل هوضمیر ئې فاعل.فعل سره دفاعل جزاء دشرط.شرط سره دجزاء نه معطوف ثانی،معطوف علیه سره دخپلو دواړو معطوفونو بدل.مبدل منه سره دبدل نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۳۱﴾- اَلْكَبَائِرُ الْاِشْرَاكُ بِاللّٰهِ وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ وَقَتْلُ النَّفْسِ وَالْيَمِيْنُ الْغَمُوْسُ (بخاری)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۷، س۲، عن عبدالله بن عمرو رض]

**ترجمه**۞ گناه کبیره الله تعالی سره شریك جوړول دی،اود موروپلار نافرمانی کول دی.او نفس قتلول دی او دروغ قسم خوړل دی.

**تشریح**۞ په دې حدیث کښی بعضې لوئې لوئې گناهونه شمارکړې شوی دی.دټولونه لویه گناه داده چه دالله تعالی سره څوك شریك کړې شی.اودویمه داچه دمور پلار نافرمانی اوکړې شی.یعنی مور پلاروائی چه مونځ کوه اوهغه ئې نه کوی اوموروپلارورته وائی چه دا اوکړه او هغه ئې نه کوی.البته که دچا موروپلار داوائی چه گیره کټ کړه نودلته به دهغوی نشی منلې. د((لَاطَاعَةَ لِمَخلُوْقٍ فِـی مَعْـصِيَةِ الْخَالِقِ)) په وجه،غرض داکه په یوجائزکارکښې دمور پلار نافرمانی کوی نودا لویه گناه ده.او دریمه لویه گناه په دې حدیث کښی دا ده.چه څوك په قصد سره بغیر دڅه شرعی وجې نه قتلوی.

**سوال**: ښکارکول څنگه دی.په دې کښی قصد سره قتل کولې شی؟

**جواب**: دحلالو څناوروښکار جائزدې اوهغه دخوراك دپاره کولې شی اودا دڅه مقصد دلاندې ښکار کولې شی.البته کوم څناورچه حلال نه دی نوپه هغې کښی د ضرر رسونکو څناورو قتل جائزدې.

**سوال**: دمیږی وژل څنگه دی؟

**جواب**: بغیر د سخت ضرورت نه میږې وژل جائزنه دی.

**سوال** کوم میرې چه دخپولاندې راشي دهغې څه حکم دې؟

**جواب**: ترڅوچه کیدې شي خیال سره تلل پکاردي.باقي الله تعالی پخپله ددوی حفاظت کوی. دخپولاندې ډیرکم میرې مره کیږي.اوځلورمه لویه ګناه په دې حدیث کښې د دروغو قسم دې.د دروغو قسم خوړلوباره کښې په احادیثوکښې ډیر وعیدونه ذکردي.دا ډیره لویه ګناه ده.دقسم درې قسمه دی. ❶ یویمین لغو.کوم چه دتیرې شوې زمانې باره کښې وی.اوپه خپل خیال کښې بنده ریښتونې وی.ددې حکم دادې چه نه پرې ګناه شته اونه کفاره. ❷ دویم یمین غموس.چه داهم دتیرې شوې زمانې باره کښې وی لیکن په خپل خیال کښې بنده دروغژن وی.ددې حکم دادې چه ګناه ده کفاره پرې نشته. ❸ دریم یمین منعقده دې چه په دې کښې د راروانې زمانې باره کښې وعده کولې شی ددې حکم دادې که قسم ئې پوره نه کړونو کفاره به ورکوی دقسم کفاره داده چه یاخو غلام آزادکړي.یالسومسکینانوته دوه وخته په مړه ګیډه روټې ورکړي.یاورته جامې ورکړي.یایو مسکین ته لس ورځې تقریبا د دوُوسیرو غنمو یاد اوړوقیمت ورکړي.اوکه داهم نشي‌کولې نو دیو قسم ماتولو دپاره دې درې روژې اونیسی.اوکه ډیرقسمونه ئې مات کړي‌وی نوپه دغه حساب سره به هرڅه کوی.

**سوال** آیا غټ ګناهونه هم دادی کوم چه په دې حدیث کښې دی که نوروی نوولی ئې ذکرنه کړل؟

**جواب**: ❶ کبیره ګناهونه خوډیر زیات دی.لیکن په کومه موقع باندې چه ئې داحدیث بیان کړې دې.نو نبی کریمﷺ په دغه موقع باندې هم دومره مناسب ګڼړلې دي. ❷ **جواب** دادې چه دا لوئې ګناهونه دی.چه دې ته (اَکبَرُ الکَبَائِر)وائی. ❸ **جواب** دادې چه داځلور لوئ ګناهونه معلومیږي.مثلا شراب څکل،غلا کول اوزناکول وغیره داهم لوئې ګناهونه دی.

**لغوی او صرفی تحقیق**: (اَلکَبَائِرُ جمع دکَبِیرَةٌ)ده.اوکبیرات ئې هم جمع راځی.کبیرة دکبیر مؤنث دې په معنی دلوئ.دکبیرجمع(کِبَار،او کُبَرَاءٌ) راځی.داد(نَصَرَ،سَمِعَ او کَرُمَ)نه استعمال دې.ددې معنی ده دچانه لوئې کیدل.ددې دامصادرراځی.(کِبرًا ومَکبَرًا وکُبرًا و کَبَارَةً) ددې نه دې (کِبرٌ کِبرَةٌ،او کِبرَةٌ)په معنی د بوډا والی.او لویه ګناه اودې نه دې کِبر په معنی د کفراوشرك.اوددې نه دې کُبر په معنی دډولکی جمع ئې کِبَارٌ او اکبار دې.اَلاِشرَاك داد باب افعال مصدردې. ددې مجرد دسمع باب نه راځی.ددې مصادردادی (شَرَکًا وشِرکًا وشَرکَةً)شَرکَةً په معنی د شریکیدلوددې نه دې الشرك په معنی دجال اودام سره.ددې جمع(شُرُك اواَشرَاك) راځی.او ددې نه دې الشِرَاك په معنی د(بوټ دتسمې) ددې جمع هم شرك راځی لیکن اشراك نه راځی. ددې په ځائې الشراك جمع اُشرُك راځی.دلفظ الله تحقیق په بِسمِ اللّهِ کښې تیرشوې دې. دعقوق معنی ده نافرمانی.عقوق دنصرنه هم راځی.په دغه وخت کښې به ئې معنی شلول وی.اوعقوق دسمع نه هم راځی دې وخت کښې به ئې معنی چودل وی.ددې نه دې عقیقه په

معنی دنوی پیداشوی ماشوم ویښته.دخوراك څښاك ایخودلو لوخی،نهر،هغه ګډه یابیزه کومه چه دپیدائش په اوومه ورځ د ویښتو خرئیلو په وخت حلاله کړې شی والدین تثنیه ده. ددې مفردوالددې په معنی دپلار ددې جمع والدون راځی.هم ددې نه دې (وَالِـدَةٌ) په معنی دمور.جمع ئې (وَالِدَاتٌ) راځی او هم ددې نه دې (وَلَدٌ و وُلد و وُلْدٌ و وِلْدٌ) په معنی دبچی مذکر اومؤنث اوتثنیه اوجمع ټولوته شامل دې.قتل دادنصر باب نه مصدردې په معنی دقتلول او وژلوسره.اوتقتالا ئې هم مصدرراځی.اوهم دې نه لفظ قتیل دې په معنی دمقتول مؤنث مذکر دواړودپاره.اود(قَتِیل جمع قتلی اوقُتَلَاء اوقَتَالی) راځی.اوهم ددې نه القِتل دې په معنی د ❶ دوست❷ دشمن❸ برابر❹ مثل.اوهم ددې نه دې اَلْقَتلُ په معنی د ❶ نفس❷ قوت، دنفس تحقیق په وړاندې حدیث نمبر۲۵ کښې تیرشوې دې.الیمین په معنی دقسم.ددې جمع(اَیمن اواَیمَانٌ) راځی.اوهم ددې نه دې یمنی ښې طرف یاښې اندام.غموس دادصفت مشبه صیغه ده.اودا دضرب باب نه استعمال شوې دې په معنی دغوپې وهلو.الیمین الغموس د دروغو قسم،دغموس جمع غمس راځی.هم ددې نه دې الغموس مصیبت کښې اچونکې معامله.اوهم ددې نه دې لیل غمیس تیاره شته اوهم ددې نه دې غماسة ایلئ جمع ئې غُماس راځی.

**ترکیب**❁ (الکَبَائِر) مبتداء (الاشـراك) مصدر،باجار لفظ اللّٰہ ﷻ مجرور،جارسره دمجرورنه متعلق په الاشراك پورې معطوف علیه.واوعاطفه،عقوق الوالدین مضاف مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف اول.واؤحرف عاطفه.قتل النفس مضاف مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف ثانی.واؤعاطفه.الیمین موصوف.الغموس ئې صفت. موصوف سره دخپل صفت نه معطوف ثالث.معطوف علیه سره دخپلودریو معطوفونه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخپل خبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

**اَلْبِرُّ حُسْنُ الْخُلُقِ وَالْاِثْمُ مَاحَاكَ فِي نَفْسِكَ وَكَرِهْتَ أَنْ يَطَّلِعَ عَلَيْهِ النَّاسُ** (مسلم)

[تخریج:ـ مشکواة: ص:۴۳۱، س:۱۱ عن نواس بن سمعانؓ مرفوعًا]

**ترجمه**❁ نیکی داخلاقو ښه کیدل دی.اوګناه هغه ده.کومه چه ستاپه زړه کښې راشی اوته ئې ناخوښه ګنړې.چه خلق په دې باندې خبرشی.

**تشریح**❁ ددې حدیث شان ورود دادې.چه نواس بن سمعانؓ دنبی کریم ﷺ نه دنیکئ په باره کښې تپوس اوکړوچه نیکی څه څیز دې؟ نونبی ﷺ ورته په جواب کښې اوفرمائیل چه نیکی داخلاقو ښهٔ کیدل دی یعنی رذیلو(ګنده اخلاقو) نه زړه بالکل صفاوی.او اخلاق حمیده (ښو اخلاقو) سره زړه ښائسته وی یعنی ښه اخلاق په زړه کښې وی.او بداخلاق د زړه نه اوباسی.

نودا نیکی ده.اوګناه هغه ده چه ستا په زړه کښې وينخلی،یعنی شك او شبه پیداشی.او په زړه کښې اطمینان پاتې نه شی چه پته نشته داڅنګه کاردې.اودویم علامت دنیکۍ پیژندلو دادې چه تـه خوښه نکړې داخبره چه خلق دې خبردارشی هغوی تـه پتـه اولګی.ستا دکار، اوهغوی دا اووائی چه دې څه کوی.داحدیث دصوفیاؤ اود لوئې درجې سالکینو دپاره دې چه په دې کښې دزړه شك اولړ شان تَرَدُّد تـه ګناه وئیلې شوې ده.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ د (اَلبِرّ) تحقیق په حدیث (٢٨) کښې تیرشوې دې.حُسن په معنی د ښائست اوجمال سره.جمع ئې خلاف قیاس محاسن راځی.دادنصر اوکرم نه استعمال شوې دې هم ددې نـه دې.اَلحَسَنُ دامصدردې په معانی❶ د مرونـد سره نزدې هډوکې❷اوچتـه غونډۍ،هم ددې نه دې الحسنة.نیك کار، ښیګړه،نیکی.اوهم ددې نـه دی دفعـل تعجب درې صیغې (مااَحسنه وَاَحسِن بِه وحَسُنَ) اوهم ددې نه دې حُسنی ❶ ښه کار❷ ښه انجام❸ دالله ﷻ دهیان فکرسوچ ❹ شهادة جمع ئې حُسنَیَات ده.دالخُلق لغوی معنی طبیعت،عادت طبعی اوخوئ ده.ددې جمع اخلاق ده.دادنصر،سمع اوکرم نه استعمال دې په معنی د پیداکولو.هم ددې نه دې الخلقة په معنی دفطرت او هیئت.اوهم ددې نـه دې اَلخَلَق په معنی د زوړ،وائی چه: ثوب خلق،دادمؤنث مذکر دواړو دپاره استعمالیږی.اوهم ددې نـه دي الخَلیق په معنی دمناسب او لائق،وئیلې شی چه هُوَخَلِیـقٌ بِه،چه هغه ددې لا ئق دي کامل اخلاقـو والا دې.

د(خَلیقٌ جمع خُلُقٌ اوخلقاء) راځی.دالاثمُ تحقیق په حدیث❼کښې تیرشوې دې.حَاكَ دادنصر باب نه دې،په معنی دشك کولو،حَوکًا و حِیَاکَةً وحیاکـًا ئې مصادر دی او هـم ددې نـه دې. مَحْوَکَةٌ پـه معنی دجنګ اوجګړې سره.اوهم ددې نـه دې محاکة په معنی د پریکولو سره محاوره ده چه (مااحاك) سَیفُهُ چه دهغه تورې پریکول اونکړه.دصدر لغوی معنی❶ دهرڅیز مخامخ اوچته حصه ❷ سینه❸ دهرڅیزشروع❹ دهرڅیز تکړه،دادَ نصر اوضرب د باب نـه استعمال دې.ددې(صَدراً اومَـصدراً) مصادر راځی.په معنی دواپس کیدلو.هم ددې نـه دې صادر (واپس کیدلووالا)ددې اطلاق اکثر دګودرونـه واپس کیدونکی باندې کیږی.ددې په مقابله کښې لفظ دې وارد(اوبوته راتلونکې) هم ددې نه دې صدارةً د وزیراعظم عهده.اوهم ددې نه دې صَدْرَةٌ اوصَدرِیَّةٌ په معنی دواسکټ.اوهـم ددې نـه دې.المصدرُ ځائې د راتلو،جمع ئې مصادرراځی.هم ددې نـه دې مُصَدَّرٌ پلنې سینې والا.کَرِهَ داد باب د سَمِعَ نه دې چه ددې مصادر(کَرْهًا وکُرْهًا وکَرَاهَةً وکَرَاهِیَةً ومَکرَهَةً ومَکرُهَةً) راځی پـه معنی دنـه خوښولو.دا دکرم باب نه هم استعمال دې په معنی دبد شکله.هم ددې نـه دې اَلکَرهُ وَ الکُـرهُ پـه معنی دانکار سره.اوددې نه دې الکره په معنی دقبیح اوهم ددې نـه دې اَلکَرَاهَةُ پـه معنی دسختې زمکې

اوهم ددې نه دې المكروه په معنى دناخوښه څيز. يطلع دا دمضارع دواحد غائب صيغه ده دباب افعال نه په معنى دپوهيدلو، داپه مجردوكښې دباب د نصر سمع اوفتح نه استعمال شوې دې په معنى د راختلو اوښكاره كيدلو. ددې مصدر (طُلُوعًااومَطلَعًااومَطلِعًا) راځي. ددې نه دې اَلطلعُ په معنى دمقدار، اوددې نه دې اَلطِلعُ په معنى دمار اوددې نه دې اَلطالِعُ په معنى دږومبئ شپې مياشت اوددې نه دې (اَلمَطلَعُ اواَلمَطلِع) په معنى د❶ مشرق❷ پوړئ❸ دحفاظت ځائې. اودمَطلَعُ اومَطلِعُ جمع مطالع راځي. دالناس تحقيق په حديث(۲۲) كښې تيرشوې دې.

**تركيب**۞ البر مبتداء حُسنَ مضاف الخلق مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه خبر دمبتداء. مبتداء سره دخبر نه جمله اسميه خبريه معطوف عليه. واو حرف عاطفه الاثم مبتداء ما موصوله حاك فعل ضمير دهوپكښې دې هغه ددې فاعل فى جار صدر مضاف كَ مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه مجرور دجار. جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې. فعل سره دخپل فاعل اوسره دمتعلق نه جمله فعليه خبريه معطوف عليه. واو حرف عطف كَرِهت فعل كَ ضمير پكښې دې هغه ئې فاعل. آن ناصبه مصدريه يطلع فعل عليه جار مجرور. جارسره دمجرور نه متعلق په فعل پورې الناس ئې فاعل. فعل سره دخپل فاعل اوسره دمتعلق نه جمله فعليه خبريه په تا ويل دمصدرسره مفعول شو. فعل سره دفاعل نه اوسره دمفعول نه جمله فعليه خبريه معطوف. معطوف عليه سره دخپل معطوف نه صله دما موصوله. موصول سره دخپلې صلې نه خبردمبتداء. مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه معطوف. معطوف عليه سره دمعطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۳۳﴾- اَلْخَلْقُ عَيَالُ اللّٰهِ فَاَحَبُّ الْخَلْقِ اِلَى اللّٰهِ مَنْ اَحْسَنَ اِلٰى عَيَالِهٖ

(بيهقي)[ تخريج:ــ مشكواة: ص:۴۲۵، س:۱۳، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ مخلوق دالله تعالى تعلق داران دى. پس په مخلوق كښې الله تعالى ته هغه سړې زيات محبوب دې. څوك چه دهغهٔ تعلق دارانو سره ښهٔ سلوك اوكړي.

**تشريح**۞ مخلوق دالله ﷻ خاندان دې. نودالله تعالى په نزد به هغه څوك زيات خوښ وى. څوك چه دخلقو سره او دټول مخلوق سره د ښه نه ښه سلوك كوى. صرف انسانانوسره ښه سلوك كول مرادنه دى بلكه ټول مخلوق سره ښه سلوك كول مراد دې. چه په هغوى كښې انسانان دټولونه مخكښې دى. او درجه په درجه دهريوخيال ساتل ضرورى دى. په يوحديث كښې دى. چه په تاسو كښې دټولونه ښه دې هغه كس چه هغه خپل كوروالو سره ښه وى.

**لغوى او صرفى تحقيق**۞ د(اَلخَلقُ) تحقيق په وړاندې حديث كښې تيرشوې دې (عِيَالٌ عَيـِّلٌ) په وزن د جيِّد جمع ده. اودا دضرب د باب نه استعمال دې. اوددې مصدرونه داراځي (عَيْلًا و عَيْلَةً وعُيُوْلًا ومَعِيْلًا) په معنى دمحتاج كيدلو. ددې نه دې (اَعَائِــلُ) په معنى دكوردكسانوجمع ئې

عیائل راځی.ددې نه دې (رَجُل مُعَیَّلٌ) (اهل وعیال والا) اَحَـبُّ دضرب دباب نه داسم تفضیل صیغه ده په معنی دمحبت کولو.دادنصراوکرم نه هم مستعمل دی.هم ددې نه دې (اَلْمُحَبَّـةُ) یو خوښ څیز ته دطبعیت میلان ددې نه دې اَلْحُب په معنی د عاشق دوستی.ددې جمع احباب اوحبان اوحبیبة اوحُب اوحُبُوب دی.ددې نه دې اَلْحُب دامصدردې په معنی دمنګی یا چاټی.ددې نه دې الحب په معنی ددانې سره جمع ئې حبوب راځی.ددې نه دې الحبة محبوب، محبوبه.دباقی الفاظو تحقیق تیرشوې دی.

**ترکیب** (اَلْخَلْقُ) مبتداء.عیال مضاف لفظ اللهﷻ ئې مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.فاتفریعیه احب صیغه داسم تفضیل مضاف اَلْخَلْقُ مضاف الیه.الی حرف جار لفظ الله ئې مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په احب پورې.اَحَب سره دخپل مضاف الیه اوسره دمتعلق نه مبتداء.من موصوله احسنُ فعل هوفاعل الی جار عیال مضاف ه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور دجار.جار سره دمجرور متعلق په فعل پورې.فعل سره دخپل فاعل اوسره دمتعلق نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول.موصول سره دصلې نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۳۴﴾- اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهٖ وَيَدِهٖ

[ تخریج:_ مشکواة: ص:۱۵، س:۲، عن ابی هریرة رضی الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه** مسلمان هغه دې.چه دهغهٔ د ژبې اولاس نه مسلمانان محفوظ وی.

**تشریح** کوم سړې چه په ژبه یالاس سره چاته تکلیف ورکوی.هغه کامل مسلمان نه دې.کامل مسلمان به هغه وخت وی چه کله یومسلمان لره په ژبه چیرچاړسره تنګ نه کړی.اونه ئې په لاس سره تنګ کړی.ددې حدیث نه دانه معلومیږی چه څوك په خپوسره تنګول کوی هغه کامل مسلمان دې.ځکه چه دخپې ذکر پکښې دسره شته هم نه.داځکه چه دژبې اولاس ذکر کول د ډیراستعمال په وجه دی.او معنی دحدیث داده.چه په هریواندام سره یومسلمان تنګول داسلام دتهذیب نه خلاف دی.بیائې ژبه وړاندې ذکرکړه ددې ❶ یومبئ وجه داده چه ژبې سره چیر چاړ زیات کیږی. ❷اودویمه وجه داده چه د ژبې چیر سره ډیر ژور زخم جوړیږی. اولاس وغیره سره وهلې شوې زخمی شوې ځائې جوړیږی. لیکن د ژبې نه اوریدلې شوې خبره په زړه کښې ناسته وی هغه زخم زرنه ښه کیږی.لکه چه شاعر وئیلی دی.

جراحات السنان لها التیام :: و لا یلتام ما جرح اللسان

دشعر ترجمه اومطلب دادې چه د نیزو زخمونه ښه کیږی.لیکن کوم چه ژبې زخمی کړې دې.دهغې ډکیدل نشته.

**لغوی او صرفی تحقیق** المسلم داد باب افعال نه داسم فاعِل صیغه ده.ددې جمع المسلمون راځی.په معنی ددین اسلام اتباع کونکې.ددې مجرد دسمع دباب نه استعمال شوی دی په

معنى دخلاصى موندلو سره ددې نه دې السلام په معنى دملاقات په وخت کښې دعاء. اوددې نه دې الاسلام په معنى ددې چه دالله ﷻ په وړاندې بغير د دليل نه منل.اوددې نه دې السلم په معنى دصلح کوئنکى، وائى چه:(اَنَا سِلْمٌ لِمَنْ سا لَمَنِيْ وَحَرْبٌ لِمَنْ حَارَبَنِيْ) چه زه صلح کونکې يم دهغه چا سره چه هغه ماسره صلح کوى، اوزه جنګ کونکې يم دهغه چاسره چه څوك ماسره جنګ کوى.دلسان تحقيق په خطبه کښې تيرشوې دې.اوديد تحقيق په حديث(۱۴)کې تيرشوې دې.

**ترکيب**۞ (المسلم) مبتداء.من موصوله سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ فعل من جارلسان مضاف ه مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه معطوف عليه.واو حرف عطف يدمضاف،ه مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه معطوف. معطوف عليه سره دمعطوف نه مجروردجار.جارسره دمجرور نه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل نه اوسره دمتعلق نه جمله فعليه خبريه صله دموصول.موصول سره دصلې نه خبر.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۳۵﴾- وَالْمُؤْمِنُ مَنْ أَمِنَهُ النَّاسُ عَلٰى دِمَائِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ

[تخريج:_ مشکواة: ص:۱۵، س:۳، عن ابى هريرة رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ مؤمن هغه دې چه دهغه نه خلق محفوظ وى.په خپلو وينوباندې اوپه خپلومالونوباندې.

**تشريح**۞ کامل مؤمن هغه دې چه دهغه نه خلق تنګ نه وى.دخلقو بدنونه اوعزت او دهغوى مال محفوظ وى.دا دحديث يوه ټکړه ده.دايو اوږد حديث دې کوم چه (دالْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ) إلخ، نه شروع کيږى.اوپه (وَالْمُهَاجِرُمَنْ هَجَرَالْخَطَايَا وَالذُّنُوب) باندې ختميږى.دې پسې پيوست دوه ټکړې نورې هم دى.يوه(اَلْمُجَاهِدُمَنْ جَاهَدَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ) ده،او بله (اَلْمُهَاجِرُ)...إلخ، ده.

**لغوى او صرفى تحقيق**۞ د(اَمِنَ) ماده حديث نمبر(۳) کښې اودالناس په حديث نمبر(۲۲)کښې تحقيق تير شويدې.د ماء جمع دمٌ ده.دَمٌ په اصل کښې دَمَيٌ وو.اود بعضوپه نزد دَمَوٌ وو.ل کلمه حذف کړې شوه.او کله داپه ميم سره بدل کړى شد سره ئې وائى.دَمٌ ددې تثنيه دمان او دميان اودموان استعماليږى.اود دمٌ تصغير دُمَيٌّ دې.اودنسبت دپاره(اَلدَمِيٌّ اوالدَّمَوِيٌّ) ويلى شى.اموال جمع دمال ده په معنى ددولت.دا د نصر دباب نه استعمال شوې دې.مصدر ئې (مَوْلاً اومَوْلاً) دى په معنى دډيرزيات ماندارکيدل ددې نه دې (اَلْمَالِيَّة) په معنى دشاهى خزانې دولت. (اَلْمولة) (جولاګى) [illegible] راجع [illegible].

**ترکيب**۞ واوحرف عطف [illegible] مبتد [illegible] من موصوله.امن فعل [illegible] مفعول به الناس فاعل على جار،دمائهم مضاف [illegible] مضاف اليه مضاف [illegible] سره دمضاف اليه نه معطوف عليه.واوعاطفه أموالهم مضاف مضاف [illegible] مضاف سره دمضاف اليه نه معطوف معطوف عليه سره د معطوف نه مجروردجار.جارسره

دمجرور نه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل نه اوسره د متعلق نه صله دموصول.موصول سره دصلې نه خبر.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

**﴿۳۶﴾- وَالْمُجَاهِدُمَنْ جَاهَدَنَفْسَهُ فِيْ طَاعَةِاللّٰهِ**

[تخریج:ـ مشکواة: ص:۱۵، س:٤، عن فضاله رض مرفوعًا]

**ترجمه** اومجاهدهغه دې څوك چه دالله تعالی په اطاعت کښې خپل نفس سره جهاد اوکړی.

**تشریح** حقیقي اواصلي مجاهدهغه سړې دې کوم چه دالله تعالی په اطاعت کښې دخپل نفس سره جهاد اوکړی یعنی دنفس هرخواهش اونه منيځکه چه دنفس اکثرخواهشات بد وی.که چرې دالله ﷻ اطاعت پاتې کیږی نو بالکل دې دنفس نه مني.ځکه چه دانسان دشمنان دوه دی یونفس او دویم شیطان.کله ئې شیطان دهوکه کوی اوکله نفس.دې دواړوسره دومره جهادکول چه دګناهونونه بچ شی دا فرض عین دی.ټول خلق مجاهدین دی.څوڅوك د دنیا په سامان ګټلوکښې مجاهددې.څوك د دفتر ډیوټي ورکوی دنفس مخالفت کوی.اوڅوك دوکانداری کوی.نفس سره جهادکوی.اوڅوك څوکیداری کوی اود نفس مخالفت هم کوی. خو افسوس چه دا هرڅه دخیټې دپاره او ښځې او بچو دپاره کولې شی. دا جهاد دنفس سره جهاد کولوسره بدلول پکاردی.اودالله تعالی په اطاعت کښې مضبوطیدل پکاردی.چه دنفس د دهوکې نه بچ پاتې شې.

**لغوی او صرفی تحقیق** (اَلْمجَاهد) دَ باب مفاعل نه داسم فاعل واحد مذکر صیغه ده.په معنی دجهاد کولو والا.دباب مفاعَل یو اصل خاصیت دادې چه د دواړو طرفونو نه وی.یعنی د مجاهد معنی داده.دې به دهغه سره جنګیږی اومخالفت به ئې کوی.اوهغه به ده سره جنګیږی اومخالفت به ورسره کوی.دلته جهاد دنفس سره دې.نفس یوڅه وایی اومجاهدبل څه وائی.ددې مجرد زیات ترد فَتَحَ نه راځی.په معنی دډیرکوشش کولو.ددې نه ده (اَلْجُهْدُ وَالْجَهْدُ وَالْمَجْهود) په معنی دطاقت اواستطاعت اوددې نه دې (اَلجِهَادُ) په معنی ددین د حفاظت دخاطرنه اود(اِعْلاَءِ کَلِمَةُ الله) دپاره جنګ کول اوددې (الجِهَاد) په معنی هغه سختې زمکې چه څه نه زرغون کوی.اَلجَهید په معنی دښه واښووالا ځائې.طاعَة دا دنصر دباب نه استعمال شوې دې په معنی داطاعت کولو او فرمانبردارکیدلو.ددې نه دې(المَتطَوِّع اوالمطَوِّع) په معنی دواجباتواوفرائضونه علاوه نور نیك عملونه په طور دنفلو اداکونکې.

**ترکیب** واومستانفه المجاهد مبتداء من موصوله جاهد فعل دې کښې هوضمیردې هغه ئې فاعل نفس مضاف،ه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجار.جار سره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه اوسره دمتعلق نه جمله

فعلیه خبریه صله دَمَن موصوله.موصول سره دصلې نه خبردمبتدا ءمبتدا ء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۳۷﴾- وَالْمُهَاجِرُمَنْ هَجَرَالْخَطَايَاوَالذُّنُوْبَ

[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۵، س:۵ عن فضالة مرفوعًا]

**ترجمه**۞ او مهاجرهغه سړې دې چاچه ټولې غلطۍ اوټول ګناهونه پریخودل.

**تشریح**۞ حقیقی مهاجرهغه دې چه هغه ټول ګناهونه مکمل طور باندې پریخودې وی.بیا خدائې مکړه که اوشی نو فوراً پخه توبه اوباسی.دهجرت قسمونه په حدیث نمبر[۱] کښی تیرشوی دی.یوهجرت دیوځائې نه بل ځائې ته کیږی اوبل هجرت دګناهونونه نیکو طرف ته کیږی.اوهم دا دلته مراددې اودا اصل هجرت دې ځکه چه دیوځائې نه بل ځائې ته هجرت چه څوك کوی بنده خو هغه دې دپاره کوی چه هلته دې اطاعت نشی کولې.اوکوم ځائې چه سړې اوسیږی اواطاعت نشی کولې.دهغه ځائې نه هجرت فرض وی.بهرحال اصل هجرت دګناهونو پریخودل دی.په دې وجه هریوه ګناه پریخودلو سره دهجرت ثواب هم اخستل پکاردی.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ دهجرت تحقیق په حدیث نمبر[۱] کښی اود (ذُنُـوْبٌ) تحقیق په حدیث نمبر(۲۴) کښی تیر شوې دې.الخطایا جمع ده ددې مفردخطیئة دې.اود (خَطِیئَةٌ) جمع خطیئات هم راځی.دادسمِعَ دباب نه استعمال شوې دې.په معنی دغلطئی کولوسره.ددې نه دې (الخطْ والخَطَاء) په معنی دګناه سره. دبعضوپه نزد بغیرداراديې نه ګناه کولوته خطاوئیلې شی.دامادہ دفتح دباب نه هم راځی.

**ترکیب**۞ واؤمستانفه المهاجر مبتداء من موصوله هَجَر فعل ضمیردهُوَیکښی.دې هغه ئې فاعل الخطایامعطوف علیه.واؤعاطفه الذنوب معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه مفعول بهٖ.فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول موصول سره دصلې نه خبردمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۳۸﴾- اَلْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلَى الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۳۲۷، س:۱۸ عن عمروبن شعیب عن ابیه عن جده مرفوعًا]

**ترجمه**۞ ګواهی په دعوه کونکی باندې ده.اوقسم په هغه چادې په چاچه دعوه شوې وی.

**تشریح**۞ په دې حدیث کښی د فقهې ډیر لوئې اصول بیان کړې شوی دی.هغه داچه دعوی کونکی باندې لازم دی چه هغه ګواهان پیش کړی.نوهله به دهغه څیز شمارلې شی اودعوی به ئې منلې شی ګنی نونه به شمارلې کیږی.مثلا زیدوائی چه دا سائیکل زما دې اوخالد وائی چه دا سائیکل دده نه دې نو اوس به زید ګواهان راولی.کم نه کم دوه ګواهان. که چرې

زید ګواهان راوستل.نو شرعًابه دا سائیکل دزید وی.او که چرې ګواهان ئې رانه وستل نود خالد نه به قاضی قسم اخلی. که چرې خالد قسم اوخوری او اووائی چه دا سائیکل د زید نه دې.نوبیا به قاضی دخالد په حق کښی فیصله کوی.اصول هم دادی چه څوك انکارکوی لکه په (دې مثال کښی‌خالددې) هغه به روستو قسم خوری.په یو روایت داسې هم دی چه (اَلْبَيِّنَةُ عَلَى‌الْمُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلَى مَنْ اَنْكَرَ) په دې حدیث کښی دویم سرې ته منکر وائی اوپورته چه په کتاب کښی کوم حدیث دې.دې لحاظ سره هغهٔ ته مدعی علیه وئیلې شی.

**سوال** داځنګه معلومه شوه چه مدعی څوك دې اومدعی علیه څوك دې؟ مدعی هم دا وائی، چه دا څیز زما دې،او مدعی علیه هم دا وائی.چه دا ددهٔ نه نه دې،زما دې،نو تعین به څنګه کیږی؟

**رومبې جواب**: څیز چه دچا په قبضه کښی وی هغه مدعی علیه دې اومنکردې.دده خلاف دویم ته مدعی وئیلې شی.

**دویم جواب**: .مدعی هغه دې چه هغه په جګړه کښی نشی مجبورکولې.که چرې هغه معامله پریږدی نوختمه به شی.اومدعی علیه هغه دې چه کهٔ هغه معامله پریږدی نوپه هغه باندې به زورکولې شی.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ (اَلْبَيِّنَةُ) په معنی د ❶ شهادت ❷ دلیل اوحجت داداباب دضرب نه دې (بَانَ،يَبِيْنُ،بَيْنًا) په معنی د ❶ ښکاره کیدل❷ جداکیدل.دې نه دې (تَبَايُن) په معنی ❶ تضاد ❷ فرق❸ انتشارهم ددې نه دې البیان په معنی ددرپوټ یعنی جمع ئی بیانات راځی،مدعی په معنی ددعوه کونکی.مدعی علیه په معنی دهغه چاچه په چادعوی شوی وی.(ملـزِم) ددې نه دې دعوی په معنی دمقدمې کیس داداباب دنصر نه استعمال شوې دې.ددې تحقیق حدیث نمبر۴ کښی تیرشوې دې اودیمین تحقیق په حدیث نمبر۳۱ کښی تیرشوې دې.

**ترکیب**۞ (اَلْبَيِّنَةُ) مبتداء علیٰ جار،لمدعی مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په ثابت پورې. ثابتة اسم فاعل ضمیر د هِیَ پکښې دې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دخپل فاعل نه اوسره دمتعلق نه خبردمبتداء .مبتداءسره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه.واوٴعاطفه الیمین مبتداء علی جار المدعی اسم مفعول په دې کښی ضمیر دهودې هغه ئې نائب فاعل. علی جاره مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په اسم مفعول پورې.اسم مفعول سره دخپل نائب فاعل نه اوسره دمتعلق نه مجروردجار.جار سره دمجرورنه متعلق په ثابتة پورې.ثابتة اسم فاعل ضمیر دهی پکښی دې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دخپل فاعل اوسره دمتعلق نه شبه جمله خبردمبتداء.مبتداءسره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دخپل معطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۳۹﴾- اَلْمُؤْمِنُ مِرْاٰۃُ الْمُؤْمِنِ

[تخریج:_ مشکواۃ : ص:٤٢٤ ، س:١١ ، عن ابی هریرة مرفوعًا]

**ترجمه** مسلمان دمسلمان آئینه ده.

**تشریح** ددې حدیث ډیر مطلبونه دی.① رومبی مطلب (کوم چه په یوبل حدیث کښی دې) دادې چه په تاسوکښی یومسلمان دبل مسلمان رور دپاره شیشه ده.که چرې یو مسلمان په عیب کښې اووینئ.نو تاسوله پکاردی چه دهغهٔ نه دهغهٔ عیب لرې کړئ.یومسلمان بل مسلمان ته ګوری.نوکله چه دهغهٔ عیب اووینی.نو څومره چه کیدې شی.دهغهٔ عیب لرې کول پکاردی.لکه څنګه چه په شیشه کښی دننه انسان خپل شکل ګوری نوناخوښه څیزدخپل مخ نه لرې کوی.نوهم دغه شان دبل دپاره هم شیشه جوړیدل پکاردی.② دویم مطلب دادې چه انسان له دومره نیك جوړیدل پکاردی چه بل سړې ده ته اوګوری پخپله نیك جوړشی.لکه څنګه چه شیشې ته په کتلوسره انسان خپل ځان صحیح کوی.اوشیشه خاموشه وی اوپخپله صحیح وی دغه شان هرانسان له پکاردی چه بغیر دځه شهرت کولونه خپل ځان داسې صحیح کړی چه نورخلق پخپله ددهٔ په لیدلوسره صحیح شی.

**لغوی او صرفی تحقیق** مِرآة مفرددې.ددې جمع (مَرَآیَا اومَـرَاءِ) راځی په معنی د آئینې سره، ددې نه دې (اَلمَرْءُ ) په معنی دسړی،ددې جمع رِجَال راځی (مِنْ غَیْرِ لفظه) لکه دَ(اِمْرَأة) جمع چه (مِنْ غَیْرِ لفظه) نساءٌ راځی.

**ترکیب** (المؤمنُ) مبتداء (مِرْآةُ) مضاف.المؤمن مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه خبر. مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

وَالْمُؤْمِنُ اَخُوالْمُؤْمِنِ یَکُفُّ عَنْهُ ضَیْعَتَهٗ وَیَحُوْطُهٗ مِنْ وَّرَآئِہٖ

[تخریج:_ مشکواۃ: ص:٤٢٤، س:١١، عن ابی هریرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه** اومسلمان دمسلمان روردې منع کوی دهغهٔ نقصان،اوحفاظت کوی دهغهٔ شاته.

**تشریح** داحدیث او تیرشوې حدیث دواړه یودی.یعنی په یوه موقع کښی نبی کریمﷺ ارشاد فرمائیلی دی.ددې حدیث دعبارت مطلب دادې چه مسلمان دمسلمان دپاره روردې.هغه به دخپل وسه پورې دنقصان نه بچ کوی.اوجائیداد به ئې بچ ساتی.اوکله چه هغه نه وی،دهغهٔ په غیرموجودګئ کښی دهغهٔ حفاظت کوی.دهغهٔ د ښځې اود بچو یادَ نورو څیزونو حفاظت به کوی هم دا دې دمؤمن شان. داسې نه چه هروخت خپل فکر وی اودبل چا خیال ورسره نه وی د نورو خیال ساتل اوهغوی ته ترجیح ورکول،هم دا روروَلی او قربانی ده.

**لغوي او صرفي تحقيق**۞ (اَخُو) په معنی د ① رور ② دوست ③ ملګرې. دغه شان د (اَلاَخُ) د (اَلاَخُ اوالاَخُو) هم دغه معاني دی. ددې تثنيه اخوان ده. اوجمعې ئې دادي: (اِخْوَةٌ وَاُخْـوَةٌ واِخْـوَانٌ وَاُخْوَانٌ وَاُخُونٌ وَاَخَاءٌ) بعضو په اخوان اوباقی نوروجمعوکښې دافرق کړې دې چه اَلاِخْـوَانٌ دهغه اَخٌ جمع ده کوم چه دنسبي رورمعنی ورکوی. ددې نه دې اَلاُخْتٌ په معنی دخور. جمعه ئې اَخَوَاتٌ راځي. اودا دنصر دباب نه استعمال شوې دې په معنی درور يا دوست جوړيدل (يَكُفُّ) دا دنصر دباب نه دمضارع واحد غائب صيغه ده. كفا او كفافه ئې مصدر دی. په معنی دلاس اودكف سره. جمع ئې (اَكُفٌّ او كُفُوْفٌ او كُفٌّ) راځي. هم ددې نه دې الكِفَةُ په معنی د ـ ① هريو غونډی څيز ② منګې چه د اوبونه ډك وی. اوددې نه دې (اَلْكُفَّةُ) په معنی دڅه څيزغاړه او جائې (طرف) سره. ددې نه دې (مَاكَافَـــةٌ) كوم چه دعمل نه بندونكي وی. صيغة دادضرب نه مصدردې. ددې نور مصدرونه هم راځي (ضيعًا وضَيْعًا وضَيَاعَةً) په معنی دخرابيدلو اوتباه كيدلو اود بې كاره كيدلو سره (الضَيْعَةُ) په معنی دجائيداد سره هم راځې اود پيشې هم راځي يَحُوطُ دا دنصر دباب نه دمضارع واحد مذكر غائب صيغه ده (حَوْطًا وحِيْطَةً وحِيَاطَـــةً) ئې مصادر راځي. په معنی دحفاظت كولو سره ددې نه دې. (اَلْحَائطُ) په معنی د ① ديوال ② باغ. د (حَائِطٌ جمع حِيْطَـــانٌ اوحِيَـــاطٌ) دی. او ددې نه دې الْمُحِيطُ يعنی ددائري احاطه كونكې. وَرَآء په معنی د ① روستو ② وړاندې ③ نوسې ـ داد فتح دباب نه استعمال دې. ددې معنی ده لرې كول.

**تركيب**۞ واوعاطفه (الموْمن) مبتداء، اَخُو مضاف (اَلْمُوْمَن) مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه خبر اول. يَكُفُّ فعل، دې كښې ضمير د هُوَ دې هغه ئې فاعل. عن جار، هٗ ئې مجرور. جار سره دمجرور نه متعلق په فعل پورې. ضيعت مضاف. هٗ ئې مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول به. فعل سره دخپل فاعل اومفعول به نه اوسره دمتعلق نه جمله فعليه خبريه معطوف عليه. واوعاطفه يحوطُ فعل هوضمير ئې فاعل مِن جار ورائهِ مضاف مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه مجروردجار، جارسره دمجرور نه متعلق په فعل پورې. فعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه معطوف، معطوف عليه سره دمعطوف نه خبر ثاني دمبتداء. مبتداء سره د دواړو خبرونو نه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۴۰﴾- اَلْمُؤْمِنُوْنَ كَرَجُلٍ وَّاحِدٍ اِنِ اشْتَكٰى عَيْنُهٗ اِشْتَكٰى كُلُّهٗ وَاِنِ اشْتَكٰى رَأْسُهٗ اِشْتَكٰى كُلُّهٗ

(مسلم) [تخريج:ـ مشكواة: ص:۴۲۲، س:۵، عن نعمان بن بشير رضـ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ مسلمانان د يوسړی په شان دی. كه دده سترګه خوږشی نوټول بدن ئې خوږيږی. اوكه دده سر بيمارشی نوټول بدن ئې بيماروی.

**تشريح**۞ مسلمانان ديوسړی داندامونوپه شان دی. داخو جمله خبريه ده. خوپه معنی دجملې انشائې ده اومطلب دادې چه شئ تاسو ديوسړی داندامونو په شان. چه كله ديوسړې د سترګې

شکایت کوی.یعنی خوږشی نودهغه ټول بدن ته تکلیف وی.او اثر ورته رسیږی.اوکه چرې دانسان په سرکښی تکلیف وی نوهم په ټول بدن باندې اثروی اوبنده آرام غواړی.نوهم دغه شان که یومسلمان رورته تکلیف وی نوپه ټولوباندې دهغې اثرکیدل پکاردی.یعنی فکر ئې کول پکاردی.دلته تشبیه په همدردئ کښی ده چه هریوسره دهمدردئ سلوك کول پکاردي.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ رَجُل په معنی دبالغ سړی.ددې په عربئ کښی معانې تیرې شوی دی یعنی (مذَکَّرٌ مِنْ بَنِیْ اٰدَمَ جَاوَزَمِنْ حَدِالصِّغرِ اِلی حــدِاْلکِبْر) داد باب دسمع نه راځی په معنی د پیدل تللوسره اود نصرنه هم راځی په معنی دخپې باندې وهلوسره.دسمع باب نه ددې مصدر رَجَلاً راځی اوباب دنصر نه ددې مصدررَجلاًراځی.ددې نه دې الرِّجْــل په معنی دخپې سره. جمع ئې اَرجُل راځی.د اَلرَّجُل نورې معانې هم دی.ـــمثلاً ❶ پرتوګ ❷ سپین ساده کاغذ) ❸دسړی اودس ماتې ❹ ډیر اوده کیدلو والاسړې.لکه رِجــل چه په معنی دخپې دهغې جمع (اَرجُلٌ) ده.اوکه نورې معانې ئې واخستلې شی نوبیاددې جمع (الرِّجَالُ)ددې نه بالغ سړې دې.ددې ډیرې جمعې راځی (اَرَاجِلُ ورَجَلَاتُ ورَجْلَةٌ ورَجَلَةٌ) ددې نه دې مِرجَل په معنی دـــ ❶دیګچی❷ ګومنځ ددې جمع مَرَاجِلُ ده.واحد په معنی دیوسره.داد باب دضرب نه استعمال دې.ددې مصادر دا راځی(وَحْدًا ووُحوداً ووَحْدَةً ووَاحِدَةً ووَحَادَةً) په معنی دیو کیدلو.ددې نه دې تَوحِیْــدٌ په معنی دیوجوړه ولوسره.ددې نه دې الاحد په معنی دیو،بې مثله،بې نظیر.

**نکته**۞ لفظ احد صرف په دوؤ موقعو کښی دَ واحد په شان معنی ورکوی❶دالله ﷻ په صفت کښی وائی(هوَالْوَاحَدُ وَهوَالاَحَدُ )❷وائی (اَحَدٌ وَعِشْرُونَ وَوَاحِدٌ وَعِــشْرُوْنَ) لفظ احد په اصل کښی خودمذکر دپاره دې.لیکن کله کله دمؤنث دپاره هم راځی لکه په قرآن کریم کښی چه دی (لَسْتُنَّ كَاَحَدٍمِنَ النِّسَآءِ) نوپه داسې موقع باندې دڅیز معنی ورکوی.داحد تانیث احدی دې.ددې نه دې يَومُ الاَحَد(د اتوارورځ) جمع ئې آحادده.

**نکته**۞ **په احد او واحد کښی یو خاص فرق**۞ دلفظی معنی په لحاظ سره د دواړو ترجمه په یوسره کولې شی.لیکن دفرق کولو دپاره دلفظ احد په معنی کښی داهم شامل دی چه هغه دترکیب او تجزیې نه اودتعداد اودڅه څیزسره مشابهت اومشاکلت نه پاك وی.یعنی هغه دیویا ډیرومادونه نه وی جوړشوې اونه په هغې کښی دتعداد امکان وی اونه دڅه څیز مشابه وی.الله ﷻ واحد هم دې اواحد هم دې.په دې کښی دهغه خلقو

**جواب** کیږی کوم چه دالله ﷻ په باره کښی تپوس کوی چه هغه دسروسپینونه جوړدې یادڅه جوهرنه جوړدې.په لفظ احد کښی ددې جواب اوشو.د(اشْتَکَى) معنی ده بیمارکیدل دادباب دنصرنه استعمال شوې دې. (شَکَی،یَــشْکُوْ،شَکْویً،وشَکْوًاوشِکَایَةًوَشَکَاوَةً وَشَــکِیّةً) په معنی

دشکایت کولو.عینٌ داد ضرب دباب نه مصدردې.ددې ډیرې زیاتې معنی دی.څنې معانې ئې دادی.❶ ښاروالا❷ دکوروالا ❸ بد نظرکول ❹ جاسوس❺ جماعت ❻ جهنډه ❼ د اوبو چینه ❽ نمر ❾ هر موجوده څیز ❿ ښه څیز.ددې نه دې العینة په معنی دښه مال.ددې نه دې اَلعَین په معنی دشنې غوا.عَین مؤنث دې.اوددې جمعې داراځی.(اَعْیُنٌ،عیون،عیون او اَعْیَانٌ)اوجمع الجمع ئې اَعینات ده.

**نکته**۞ عیون د عَین په فتحې سره داپه ظاهره دعـینٌ جمع معلومیږی.حالانکه دادځه څیزجمع نه ده.بلکه عیون پخپله مفرددې په معنی دبدنظرسره ددې جمع عَین اوعُیُن راځی.د کُـلٌ دا معانې دی❶ ټول ❷ هریو.دا داسې اسم دې کوم چه ډیرو افرادو لره ګیرولو دپاره یاد واحد اجزا عام کولودپاره مقرر شوې دې.د کل لفظ مفرد او مذکردپاره استعمالیږی.داضرب دباب نه استعمال شوې دې.(کَلَّ یَکِلُّ کَلّاً وَکِلَّةً وَکُلُوْلاً وَکَلاَلَةً وَکُلُوْلَةً وَکَلاَلاً) په معنی دستړی والی.ددې نه دې کلاله په معنی ❶ ستړی والی❷ هغه څوك چه دهغه پلار اواولادنه وی❸هغه سړې چه دهغه نسبی رشته دارنه وی.هم ددې نه دې (کُلِّیَّـاتٌ) په معنی دهغه مفهوم کوم چه په ډیرو افرادو باندې صادق وی.رَاسٌ دازیات تر دکرم اوضرب دباب نه استعمال دې.اودفتح نه هم استعمالیږی.په معنی سردار کیدلو.(رَاسًاورَاسَةً) ئې مصدرراځی.(اَلرَّاسٌ)په معنی دسرجمع ئې رُؤسَاء راځی.

**ترکیب**۞ (اَلْمؤمِنُون) مبتداء.ك جار رَجُل موصوف واحد ئې صفت.موصوف سره دصفت نه مجرور دجار.جارسره دمجرور نه متعلق په (ثَابِتُونَ) پورې.(ثَابِتُوْنَ) اسم فاعل هم ضمیر پکښې دې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دخپل فاعل نه اوسره دمتعلق نه خبردمبتداء.مبتداء سره دخپل خبر نه جمله اسمیه خبریه مبین.ان حرف شرط(اشْتَکی) فعل.عین مضاف ه ئې مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه فاعل.فعل سره دفاعل شرط(اشْتَکی) فعل.کل مضاف ه ئې مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه جزاء.شرط سره دخپلې جزاء نه جمله شرطیه جزائیه معطوف علیه.واؤعاطفه ان حرف شرط اشتکی فعل.راس مضاف ه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه فاعل.فعل سره فاعل شرط.اشتکی فعل.کل مضاف.ہُ.مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه فاعل،فعل سره دفاعل نه جزاء. شرط سره دخپلې جزانه جمله شرطیه معطوف.معطوف علیه سره دخپل معطوف نه جمله معطوفه بیان د(مُبَیَّنْ.مُبَـیِّنْ) سره دخپل بیان یامبین نه جمله بیانیه شوه.

﴿۴۱﴾-اَلسَّفَرُ قِطْعَةٌ مِنَ الْعَذَابِ يَمْنَعُ أَحَدَكُمْ نَوْمَهُ وَطَعَامَهُ وَشَرَابَهُ فَإِذَا قَضٰى أَحَدُكُمْ نَهْمَتَهُ مِنْ وَجْهِهِ فَلْيُعَجِّلْ إِلَىٰ أَهْلِهِ (بخاری ومسلم)

[ تخریج:_ مشکوٰة: ص:۳۳۸، س:۲۷، عن ابیهریرةرض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ سفر دعذاب یوه ټکړه ده. منع کوی په تاسوکښې هریو دخپل خوب نه،اودخپل خوراك نه، او دخپل څکاك نه، پس کله چه پوره کړی په تاسوکښې هریو خپل حاجت دهغې د موقعې نه، نوهغهٔ له پکاردی چه په جلتۍ سره خپل کورته واپس راشی.

**تشریح** د(قطعةٌ منَ العَذَاب) مطلب دادې چه سفر یو دتکلیف ځیزدې.ځکه چه په سفر کښې خوب نه پوره کیږی.اوپه خوراك څکاك کښې‌هم خلل راځی.لهذا سفرکول نه دی پکار.البته که ضرورت وی نوبیا تکلیفونه برداشت کول پکاردی.اوکله چه ضرورت ختم شی.یادکوم کار دپاره ئې چه سفرکړې وو.دهغه کارنه فارغ شی.نوکورته په راتلو کښې وخت تیرول پکارنه دی.ځکه چه دکورهم حقوق وی اوپه خپله دمسافرهم خپل معمولات وی.

**سوال** دسفرنه ممانعت دتکلیف په وجه دې اونن صبا په سفرکښې تکلیف نه وی.لهذا نن صبا ممانعت نه دې پکار،بیاولې ممانعت دې؟

**اول جواب**: دسفرنه ممانعت دتکلیف په وجه دې اوهغه تکلیف چه څنګه په مخکښې زمانه کښې ووُ.اوس هم شته دې.چه په خوب اوخوراك،څکاك کښې خلل راځی.البته په سفرکولو کښې به مخکښې زمانه کښې زیات تکلیف ووُ.اوس لږکم تکلیف وی.نواصل ځیزاوعلت دادې چه په خوراك څکاك اوځملاستو پاسیدو کښې تکلیف هغه شان وی.لکه څنګه چه په مخکښې زمانه کښې ووُ.د سفرکولو دنن صبا سهولتونه په هغه زمانه کښې ښکاره نه وو. لیکن پټ وو.ځکه چه قرآن مجید کښې دی.(وَيَخْلُقُ مَالاَ تَعْلَمُونَ)یعنی اوالله تعالی به پیدا کوی داسې سورلۍ چه اوس تاسوهغه نه پیژنئ.نو دا آیت کریمه په نبی کریمﷺ باندې نازل شو.نودهغه وخت نه هغه ټولې سورلۍ په دې کښې داخل دی کوم چه هغه وخت کښې نه وې.

**دویم جواب**: حکم داکثرو خلقو په اعتبارسره دې.اکثرو خلقوته سهولیات نه ملاویږی.

**دریم جواب**: دادې چه منو چه نن صبا په سفرکښې سهلتونه شته.لیکن څومره چه په کورونو کښې سهولتونه وی دهغې په اعتبارسره نن صباهم سفردعذاب یوټکړه ده.

**فائده** دسفرکولونه ږومبې انسان له دوه ځیزونه غورځول پکار دی.اول غصه چه په ټول سفر کښې ده ته نزدې هم رانشی اوکه داسې نه وی نو د سفر مزه به ئې خرابه شی.لکه څرنګه چه مشاهده ده.دویم آرام غوښتل مثلاً په سفرکښې‌داوئیل چه خوراك ښه ملاویدل پکاردی، سیټ دانه هغه پکاردې.دضرورت هریوځیز سمدستی حا صلیدل پکاردی.ارام طلبي په سفر کښې هیڅکله نه ده پکار،نوبیا به سفرمزې سره تیرشی.اوکه داسې نه وی نو بیا به مزه نه وی لکه څنګه چه مشاهده ددې تائید (مرسته) کوی.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ (اَلسَّفر) په معنی د① مزل پوره کولو② دنمر پریوتلونه روستو وخت.
ددې جمع اَسفارٌ ده.اود نصرَ اوضرب نه استعمال شوې دې.مصدر ئې (سَفَرًا وسَفَارَةً وسُفُورً)
دی.په معنی دسفر دپاره وتل.ددې نه دې. اَلسِّفْرُ په معنی دلوئې کتاب جمع ئې اسفارراځی.
ددې نه دې اَلسُّفْرُ ده.په معنی دداغ چه دانسان په بدن باندې وی.جمع ئې سُفُور ده.ددې نه
دې سفیر په معنی د دؤو قومونو کښې صلح کوونکې قطعة په معنی دټکړې دادفتح دباب
نه استعمال دې په معنی دپریکولو،ددې نه دې (القَطْعُ) په معنی دهغه چاچه اواز ئې منقطع
شی.اوددې نه دې (اَلقِطَع) خپلولی پریکونکې،ددې نه دې القطعُ د وُنې پریکړې شوې حصه.
اوددې نه دې (اَلقُطْعُ ) دخیټې درد او پیچش اوددې نه دې (القَاطِعُ) بندولو والا.(سیفٌ قــاطع)
تیره توره.قاطع الطریق (غل،ډاکو) جمع ئې (قَطْعٌ اوقُطَّاعٌ ) راځی.
اَلعَذَابُ:① هرهغه څیزچه هغه انسان دپاره سبب دتکلیف وی ② تکلیف ③ سزا ،ددې جمع
اَعذِبَةٌ ده.د باب دسمعَ، کَرُمَ او ضَرَب نه استعمال شوې دې.په معنی د خوږوالی، خوشګوار
کیدل،هم ددې نه دې العَذَاب، دا مصدردې.په معنی د① ګندګی (ډیران) ② ډکې ③ د وُنې
ښاخونه (څانګې) ④ دتلې پارسنګ یمنع دفتح دباب نه دمضارع واحد مذکر غائب صیغه
ده په معنی دمحروم کولو.ددې نه دې اَلمنعُ په معنی د کُنی کبر جمع ئې (مُنُوع) راځی.نَومٌ دا
مصدردې.دنصر دباب نه.نیام هم مصدرراځی.معانې ئې دادی:① اوده کیدل ② دخوب
جوته ③ مړکیدل.اونومٌ د نائم جمع ده اودنائم جمع (نُیَّام اونُوَّام) وغیره دی.ددې نه دې النومة
په معنی د① ډیر اوده کیدلووالا ② ناخبره ③ غیرمشهور.طعام دادسمع دباب نه مصدر
دې اوطعماً هم مصدرراځې په معنی څکل اودفتح نه مستعمل دې.دې وخت کښی ئې معنی
داده.چه په مړه خیټه خوراك خوړل.ددې نه دې الطعــم په معنی دخوند سره جمع ئې طُعُومٌ
ده.اوددې نه دې الطُعمَةُ دخوراك طریقه.اوددې نه دې الطعام په معنی دخوراك جمع ئې اطعمـــة
ده.اوجمع الجمع ئې اَطعِمَات ده.په معنی دغنمو.ددې نه دې اَلطُعَــامِی خوراك خرڅونکې. او
ددې نه دې اَلمطعام ډیرمیلمه دوست،او ددې نه دې اَلمَطعُوم په معنی د____ ① خوراك ②
تیکه.__ شراب په معنی دڅکلو هرڅیز،جمع ئې اَشرِبة ده.دا دباب دسمع اونصر نه مستعمل
دې.(شُرْبًا.شَرْبًا.شِربًا.مَشْرَبًا اوتَشْرَابًا) ئې مصادرراځی ددې نه دې اَلــشَّرَبَة کوم چه په یوځل
اوڅکلې شی.ددې نه دې الشربةُ په معنی د___ ① زیات څکل ② دګرمئ زیاتیدل.③
تنده،قَضٰ دادضرب دباب نه دماضی واحد مذکرغائب صیغه ده (قَضَاءاوقَضْیَةً اوقَــضیَّةً) ئې
مصادرراځی.په معنی دفیصلې کولو.ددې نه دې القاضی په معنی دشرعی حاکم جمع ئې
قُضَاة راځې.اوددې نه دې قَضیِة په نزد منطقیانوچه دهغې ویونکی ته دروغژن یارښتونې
ونیلې شی.نَهمَة دامصدر دې.د (دسمع.فتح.اوضرب)باب نه په معنی د① حاجت ② سخت
خواهش.ددې نه دې اَلنِهَام لوهار.اوددې نه دې اَلنُهام په معنی د① ګونګی ② راهب.جمع ئې

نُهُم راځي.وجهاً دامصدردي دكرم اوضرب نه په معني د① مخ ② اراده اونيت ③ هغه كار چه دانسان هغې ته توجه وي.④نوع،قِسم. اَوجُهٌ ووُجُوهٌ واُجُوهٌ ئې جمع راځي.ددې نه دې وجاهت،داهم مصدردې په معنى دمرتبې اوعزت.اوددې نه دې وجيهة په معنى دقوم سردار (فَلْيَعْجَلْ) دا دامر غائب صيغه ده.دسمع دباب نه استعمال دې (عَجْلاً وعَجَلَةً) ئې مصادر دي. په معنى دتندئ كولو .ددې نه دې العجل په معنى دسخى جمع ئې (عجول اوعَجْلَةً وعَجَال) ده ددې نه دې العجلة په معنى د① جلتئ ② دسامان اوړلو ګاډي ③ سپك والې (كمزورتيا) ④ خَتيه.ددې نه دې العجول په معنى دمرګ.اهل دامصدردې دنصر ضرب اوسمع دباب نه. او اُهُولاً ئې هم مصدر راځي په معنى د① خاندان ② خپلوان.ددې جمع (اَهْلُوْنَ وآهَالٌ)او(اَهَالٌ واَهْلاَتٌ وآهْلاَتٌ) راځي ددې نه دې اهلاً وسهلاً په معنى د پخيرراغلې،اصل كښې داكلام داسې دې (صَادَفْتَ اَهْلاً لاَغُرْبًا وَوَطِئْتَ سَهْلاً لاَوَعْرًا)يعنى تا دخپل كور والا خلق بيا موندل نه پردي.اوپه نرمه زمكه راغلې نه په سخته زمكه.اوددې نه دې اهيلة په معنى دقابليت.اوددې نه دې (اَلْاَهْلِيٌّ) په معنى دكورنى ښاروى.

**تركيب**۞ السفر مبتداء قطعة موصوف من جار العذاب ئې مجرور.جار سره دمجرور نه متعلق په ثابت پورې داصفت شو.موصوف سره دصفت نه خبر اول.يمنع فعل هوضمير پكښې دې هغه ئې فاعل.احدمضاف كم مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول اول.نوم مضاف ه مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه معطوف عليه.واوعاطفه طعامه معطوف اول.واوعاطفه شرابه ئې معطوف ثانى.معطوف عليه سره دخپلو دواړو معطوفونه مفعول ثانى.فعل سره دخپل فاعل اوسره ددواړومفعلونه جمله فعليه خبريه خبرثانى.مبتداء سره دخپلو دواړو خبرونو نه جمله اسميه خبريه شوه.فاء تفريعيه.قضى فعل.احدمضاف.كم ئې مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه فاعل.نهمة مضاف ه ئې مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه ئه مفعول به.من جار وجه مضاف ه ئې مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مجرور دجار.جارسره دمجرور نه متعلق په فعل پورې.فعل سره دخپل فاعل او مفعول او متعلق نه شرط.فاء جزائيه.ليعجل فعل امر.ضمير دهو پكښې دې هغه ئې فاعل الى جار. اهل مضاف،ه مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په فعل امر پورې.فعل امر سره دخپل فاعل اوسره دمتعلق نه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله شرطيه شوه.

## نَوْعٌ اٰخَرٌ مِنْهَا

﴿۴۳﴾- **قَفْلَةٌ كَغَزْوَةٍ** [تخريج:_ مشكواة: ص:۳۳۳، س:۱۹، عن عبدالله بن عمرو رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ واپس كيدل (دجهاد نه) دجهاد په شان دي.

**تشریح﴾** کله چه مجاهد جهاد دپاره ځی.نوښکاره خبره ده که چرې نیت دده صحیح وی نو ډیر زیات ثواب دې.نونبی ﷺ اوفرمائیل لکه څنګه چه په تلو کښی ثواب دې په واپس راتلو کښی هم دغه هومره ثواب دې.په واپس راتللو کښی دامه ګنړئ چه اوس دجهاد دثواب نه محرومه شوم.ځکه چه واپس ځو.نه بلکه واپسی دتللو تتمه ده.په واپسئ کښی هم پوره ثواب دې.هرکله چه په واپس تلوکښې ثواب دې.نو دتللوپه وخت او هلته به څومره ثواب وی.غرض داچه جهاد دپاره د وتلونه پس هیڅ یو وخت دثواب نه خالی نه تیریږی.دجهاد ډیر فضیلت په احادیثو کښی راغلې دې.په یو حدیث کښی راځی چه یوه ورځ په جهاد کښی څوکیداری کول ددنیا نه او څه چه په دنیا کښی دی دټولونه بهتردی.په یو بل حدیث کښی دی چه دمجاهد دپاره به په جنت کښی سل درجې وی.دهر دوؤدرجو په مینځ کښی به دومره فاصله وی څومره چه دزمکې اواسمان تر مینځه ده.په یوبل حدیث کښی دې چه کوم سړی دزړه په اخلاص سره شهادت اوغوښتلو نوهغه اګرچه په کور کښی خپله بستره باندې ولې مړنه شی.هغه ته به دشهیدثواب ورکړې کیږی.

**لغوی او صرفی تحقیق﴾** (قَفْلَةٌ) په معنی دواپسئ،دا دباب د نَصَر اوضَرَبَ اوسَمِعَ نه استعمال شوې دې په معنی دسفرنه دواپس راتلوسره(قَفْلاً اوقَفَلاً اوقُفُوْلاً) ئې مصادرراځی.ددې نه اَلقُفْلُ په معنی دقلف سره.ددې جمع(اَقْفَالٌ اوقُفُوْلٌ اواَقْفُلٌ) ده.ددې نه دې القفــل په معنی د وُنې وُچه حصه غزوة په معنی ❶یوجنګ❷یوه حمله جمع ئې غزوات ده.داد نصر دباب نه مستعمل دې.په معنی دطلب کولو،قصدکولو.ددې نه دې اَلغَزَاةُ په معنی د① مهم② حمله جمع ئې غزواتٌ ده.ددې نه دې غَازِیٌ.جنګ کولو والا.

**ترکیب﴾** قفلة مبتداء،ك،جار.غزوة ئې مجرور جار سره دمجرور نه متعلق په ثابتة پورې.ثابتة اسم فاعل په دې کښی ضمیر دهی دې ددې فاعل دې.اسم فاعل سره دخپل فاعل نه اوسره دمتعلق نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخپل خبر نه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۴۴﴾- **مَطْلُ الْغَنِيْ ظُلْمٌ** (رواه الشیخان) [تخریج:ــ مشکواة: ص:۲۱۵، س:۲۷، عن ابی‌هریرة رضی الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه﴾** د امیر ټال مټول کول ظلم دې.

**تشریح﴾** یوسړې چه قرض واخلی بیا مالداره شی نو دائن یعنی قرض ورکونکی سره ټال مټول کوی.یعنی باربارداوائی: چه دربه کړم.دربه کړم لیکن ورکوی ئې نه صرف ټال مټول کوی نوداظلم دې اوزیاتې دې په قرض ورکونکی باندې ځکه چه هغه عاجزخپل حق غواړی.دې ئې بیاهم نه ورکوی.دظلم تعریف دادې:(وَضْعُ كُلِّ شَيْءٍ فِيْ غَيْرِ مَحَلِّه)یوځیز(دخپل ځائې نه) په بل ځائې کښی ایخودل ظلم دې.مثلا پیزارپه سرایخودل.دلته هم هغه مال کرم

چه ده ته راغلې دې اودې مالداره شو.نو اوس هغه مال چه ده قرض اخستې وؤهغه خپل ځائې ته نه رسوی یعنی قرض ورکوُنکی ته قرضه نه واپس کوی نوداظلم دې.

**فائده** ددې حديث نه ① یوه فقهی مسئله راؤوتله چه بغیر دضرورت نه قرض اخستل نه دی پکار. ځکه چه کله ضرورت وؤ نو قرضه ئې واخستله بیا ضرورت پوره شو.یا مالدار شوه نو وخت په کښې تیرول اوټال متهول کول ظلم دې اونا جائزه ده.نومعلومه شوه چه بغیر د ضرورت نه قرضه ناجائزه ده.② دویمه فقهی مسئله دا راؤوتله.که چرې څوك قرض اوغواړی نوورکول پیۓ پکاردی.③ دریمه فقهی مسئله دا راؤوتله.چه قرض واپس کولو کښې جَلتی پکار ده.

**لغوی او صرفی تحقیق** (مَطْلٌ) داد نصر دباب نه مصدردې په معنی دټال متهول کولو.ددې نه دی اَلْمَطَّالُ په معنی د ❶ د اوسپنې ویلې کولو والا❷ ډیر ټال متهول کولووالا.الغــنی په معنی مالدار. دولت مند.جمع ئې اغنیاء راځی.داد سَمِعَ نه مستعمل دې.باقی تحقیق ددې مادې په حدیث (۲۷)کښی تیر شوې دې.ظلم دامصدر دې دباب نــصر،سَمِعَ نه په معنی د ❶ دیوځیز غلط استعمال❷څه ځیز بې ځایه کیخودل❸ شرارت❹ دحق کمې.ددې نه دې (اَلظُّلْمَــةُ وَظُلُمَــةُ) په معنی د شپې تیاره.جمع ئې (ظُلَمٌ اوظُلُمَا تٌ اوظُلَمَاتٌ)ددې نه دې اَلظُّلْمُ په معنی دقمری میاشتې آخری درې شپې.ددې نه دې اَلظَّلم په معنی دواورې سره.ددې نه دې ظالمجمع ئې (ظَالِمُوْنَ وظُــلاَّمٌ وظُلْمَةٌ) ده.ددې نه دې الظَّلَم په معنی د ❶ وجود ❷ بدن❸ غر جمع ئې ظلوم راځی.

**ترکیب** (مَطْلُ) مضاف (اَلْغَنِیُّ) مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء ظُلْمُ ئې خبر شو مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۵۴﴾- سَيِّدُالْقَوْمِ فِي السَّفَرِخَادِمُهُمْ (بیهقی)

[ تخریج:ـ مشکواة: ص:۳٤۰، س:۲۲، عن سهل بن سعد رض مرفوعًا]

**ترجمه** د قوم سردار په حالت د سفرکښې دهغوی خدمت کونکې وی.

**تشریح** دقوم مشرله پکاردی چه هغه په سفرکښی دقوم خدمت اوکړی.دیو جماعت امیردې یا صدر دې نوهغۀ له پکاردی چه هغه په سفرکښې دخپل جماعت ښه پوره خدمت اوکړی. ددې حدیث دویم مطلب عالمانو داهم لیکلې دې چه څوك په سفر کښی خدمت کوی هغه به دهغوی سرداروی.

**فائده** ددې حدیث نه فقهی مسئله دا راؤوتله.چه سفرکښی هریو له پکاردی چه دبل خدمت اوکړی.غصه اوآرام غوښتل دځان ته نزدې هم نه پریږی.ددې تفصیل په حدیث نمبر ٤۲ کښې تیرشوې دې.

**لغوی او صرفی تحقیق** سید په معنی دسردار جمع ئې (اَسيَادٌاوسَادَةٌاوسَيَائدٌ) داد نصر دباب نه استعمال دې (سِيَادَةً و سَيْدُودَةً وسُودًا) وغيره ئې مصادرراځي.القوم دا دنصر دباب نه مصدر دې.قَوماًاوقِيَاماً وقَومَةً وقَامَةً ئې مصدرراځي.په معنی د① اودريدلو② دتللو نه بنديدل.ددې نه دې القوم دخلقو يوه ډله.جمع ئې (اَقْوَامٌ واَقَاوِمُ واَقَائِمُ واَقَاوِيْمُ) راځي.ددې نه دې قومة په معنی درکوع نه پس نيغ اودريدلو سره.ددې نه دې (اَلقِيَامَةُ) په معنی دمرګ نه پس دوباره ژوندی کيدلوسره ددې نه دې اَلقِيْمَةُ په معنی دقيمت سره جمع ئې قِيَم راځي.ددې نه دې (اَلاقَامَةُ اواَلْمُقَامَةُ) په معنی داقامت سره.ددې نه دې (اَلتَّقوِيْمُ) په معنی دوختونو نقشه.ددې نه دې (اَلْمُقِيْمُ اواَلْمُقَامُ) وغيره.خادم دا داسم فاعل صيغه ده.دنصر اوضرب دباب نه.اودصفت صيغه هم ده.ددې جمع خُدَّام ده.معنی ئې خدمت کولو والاده(خِدْمَةٌ اوخَدْمَةٌ) ئې مصادرراځي په معنی دخدمت کولو.ددې نه دې الخدمة په معنی دوخت.اوددې نه دې اَلْخِدمَةُ په معنی د ① پنډۍ ② دخلقو دائره.هم ددې نه دې خَادَمِيَّةٌ په معنی دنوکرئ.ددې نه دې خَدِيم په معنی د نوکر،غلام.هم ددې نه دې مخدُومٌ په معنی د آقا ، مولا.ددې نه دې اَلمَخدَمُ په معنی دهغه آس چه په خپه باندې ئې سپين داغ وی.مونث ئې خَدَمَاء دې.

**ترکیب** سيد مضاف القوم مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه ذوالحال في جار السفر ئې مجرور.جار سره دمجرورنه متعلق په کائناپورې.اسم فاعل سره دخپل فاعل نه (چه هوضميردې) اوسره دمتعلق نه حال.ذوالحال سره دحال نه مبتداء خَادمُ مضاف.هم مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه خبر.مبتداء سره دخبرنه جملہ اسميه خبريه شوه.

﴿٤٦﴾- حُبُّكَ الشَّئَ يُعْمِىْ وَيُصِمُّ.

[تخريج:_ مشکواة: ص:٤١٨، س:١٦، عن ابی الدّرداءؓ مرفوعًا]

**ترجمه** ديو څيز محبت تالره ړوند او کوڼ کوی.

**تشريح** کوم څيز سره چه انسان محبت کوی.نودهغې په عيب باندې نظر نه ساتی.دهغې دټولو عيبونو نه خپل ځان ړونداوکوڼ ساتی.په دې وجه الله تعالی سره محبت کول پکاردی. اودبنه څيز يادښه انسان سره محبت کول پکاردی.بيا دهغې دعيبونونه ړوند اوکوڼ کيدل پکاردی.دمحبت تقاضا داده.چه دمحبوب په اشاروباندې هم دخپل ځان قربانولو دپاره تيارشی.اودهغهٔ حکمونه خو هروخت پوره کوی.الله تعالی سره زمونږ محبت دې.نودهغه په ټولو حکمونو باندې عمل کول پکاردی.

**لغوی او صرفی تحقيق** دحُب معنی اوتحقيق په حديث نمبر٦ کښی تير شوې دې.الشئُ دا دفتح دباب نه مصدردې(مشيئة ومشاءة ومشائيةً) مصادرراځي.معنی① اراده کول② غوښتل

ده.ددې نه دې الشئ په معنی د ① څیز ② کوم څیز چه پیژندلې شی اودهغې خبر ورکړې شی.ددې نه دې (اَلشِیئَةُ) په معنی د ارادې یُعمی دادباب افعال نه مضارع واحد غائب صیغه ده.اوپه مجردوکښی سَمِعَ نه ډیر استعمالیږی اودضرب نه هم.معنی ئې ړوند کیدل دی. مصدر ئې دمجرد نه عمیًا راځی.اوکه عَمَایَةً راشی.نوبیا ئې معنی ① سرارکول ② ګمراه کیدل.ددې نه دې اَلعُمیٌ په معنی دړوند جمع ئې عَمُون ده.ددې نه دې الاعمی په معنی دړوند جمع ئې (عُمیٌ وعُمیَان واعمَاءٌ) دی.یُصِمُّ دادباب افعال نه دمضارع واحد غائب صیغه ده اوپه مجردوکښی نَصر اوسَمِعَ نه استعمال شوې دې (صَماً وصَمَمًا) ئې مصدرراځی.په معنی دکونړکیدلوسره.ددې نه دې الصمام په معنی د دشیشې نچه.جمع ئې (اَصِمَّةٌ وَالصِمَامَةُ) راځی ددې نه دې الصم په معنی دسخت مصیبت سره.نکته اَصَم دمضاعف دویم نوم دې.

**ترکیب** حُب مصدرمضاف.ك.ضمیر فاعل مضاف الیه .الشئ مفعول به.مصدرسره دخپل فاعل اوسره دمفعول به نه شبه جمله مبتداء .یُعمِیفعل هوضمیر ددې فاعل.فعل سره دخپل فاعل نه معطوف علیه.واؤ عاطفه یُصِمّ فعل هوفاعل.فعل سره دفاعل معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه خبردمبتداء.مبتداءسره دخپل خبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۴۶﴾- طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيْضَةٌ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ (بیهقی وابن ماجه)

[ تخریج:_ مشکواة: ص:۳۴، س:۱۵، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه** علم حاصلول هرمسلمان باندې فرض دی.

**تشریح** هرمسلمان نارینه اوزنانه دپاره ددین ضروریات پیژندل.دومره فرض عین دی چه هغې سره دورځې شپې راپیښیدونکې مسئلې حل شی.اوعالم جوړیدل فرض کفایه دی.دغه شان جهاد فرض کفایه دې.ترڅو پورې چه دوخت بادشاه دجنګ اعلان اونکړی.اودغه شان دقاریانو نه لوستل اوقاری جوړیدل هم فرض کفایه دی.دغه شان علم الوقف زده کول هم فرض کفایه دی.یعنی چه په یوه علاقه یوکس فرض اداکړی.نوفریضه به اداشی هغې ته فرض کفایه وائی.ددین اسلام ضروری مسئلې ټولې په بهشتی زیور(اوپه جنتی کالی) کښی ملاویږی.

**فائده** په دې حدیث کښی لفظ دمسلمَةٌ نشته.اوپه صحیح احادیثوکښی داثابت نه دی.البته خامخا مُراددی.په دې وجه به په لیکلو کښی دمُسلِمة لفظ نه شی لیکلې.په معنی اومفهوم کښی به دا خامخا راځی ځکه چه دهر مسلمان ښځې دپاره هم ددین علم (یعنی ددین ضروریات) زده کول فرض عین دی.بیا نن صباپه سکولونو اوکالجونو باندې داحدیث لیکل جائزنه دی.ولې چه هلته خودفرض عین درجه کښی هم ښودل نه کیږی.

**لغوي او صرفي تحقيق** العلم مصدردې دنَصَرَضَرَبَ اوسَمِعَ دباب نه .دنَصَرَ اوضَرَبَ نه ددې معنی نښه لګول دی.اودسمع نه ددې معنی ده حقیقي علم موندل.اوپیژندل اویقین کول. العلم په معنی د ❶جهنډه ❷ دقوم سردار ❸ دکپړو ګلکاري ❹ علامت اونخښه ❺اوچت غر. جمع ئې اعلام ده.العِلمُ په معنی ❶ پیژندل❷ دڅیز دحقیقت ادراك کول.ددې جمع علوم راځي.ددې نه دي اَلعلِمُ په معنی دعالم.فریضة په معنی د❶ فرض❷ زکوة❸ مقررشوې حصه. جمع ئې فرائض راځي.داد ضرب اوکرم نه استعمال شوې دې.په معنی دفرض کولو اومقرر کولو .(فَرَاضَةً وفُرُوضًا وَفَرضًا) ئې مصادر راځي.ددې نه دي الفَرضُ په معنی دالله ﷻ په بندګانو باندې مقررشوې قانون جمع ئې فُرُوضْ راځي.ددې نه دي الفُرضُ په معنی دپریکولو.او الفـراضُ په معنی دکپړې اوالفَارِضُ په معنی دچاق اوزوړ.دفارض جمع فُرض راځي.دکُلَ لفظ تحقیق په حدیث (۴۱)کښې تیر شوې دې.اودمسلم لفظ تحقیق په حدیث (۳۴) کښې تیر شوې دې.

**ترکیب** طلب العلم مضاف مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء (فریـضه) په معنی د(مفروضة). (مفروضة)اسم مفعول په دې کښې ضمیر دهِيَ دې هغه ئې نائب فاعل.علی جارکل مضاف مسلم ئې مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور دجار.جارسره دمجرورنه متعلق په اسم مفعول پورې.اسم مفعول سره دخپل نائب فاعل اوسره دمتعلق نه خبردمبتداء.مبتداء سره دخپل خبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۴۷﴾- مَاقَلَّ وَكَفٰى خَيْرٌمِّمَّا كَثُرَوَاَلْهٰى (رواه ابونعیم)

[تخريج:_ مشكواة:٤٤٥، س:٧، عن ابي الدّرداءؓ]

**ترجمه** کوم څیزچه کم وی اوپوره شي.غوره وی دهغه څیزنه کوم چه زیات وی او غافله کړي

**تشریح** کوم څیز یاکوم مال چه کم وی اوګزاره پرې اوشي هغه بهتروی دهغه څیزنه کوم چه زیات وی اودالله تعالی نه غافل کونکې وی.حاصل داچه قناعت کول پکاردی.یعنی په لږ څیز باندې صبرکول پکار دی.ځکه چه عام طورباندې داسې کیږی چه چاسره مال زیات وی. نوهغه په آرام کښې نه وی.هروخت ورسره فکر وی.اوڅومره چه ورسره مال زیاتیږی هغومره ئې فکر زیاتیږی.ددې خلاف صبر کونکی ته ډیرآرام وی دخپل وسه پورې د مال زیاتولوپه ځائې دخرچ کمولو کوشش پکاردې.

**لغوي او صرفي تحقيق** (قَلَّ) دباب دضرب نه دماضي واحد مذکرغائب صیغه ده (قِلاً او قُلاً او قِلَّةً) ئې مصدرراځي.په معنی دکمیدلو.ددې نه (القِـلُّ)په معنی دوروکی دیوال.اوددې دې (اَلقِلُّ وَالقُلُّ) په معنی دلږ.اوددې نه دې (القلیـــل) په معنی د① کم ② مانده(کمزورې).ددې جمع (قلیلون) راځي.او(اَقلاَء)او(قُلُلٌ او قُلُلون) هم راځي.ددې نه دې القُلةُ په معنی ① دتولونه

اوچته حصه ② دخلقویوجماعت③ لویه چاټي ④ وړه کوزه.ددې جمع (قُلَلٌ اوقِلاَلٌ) راځي. ددې نه دې القلة په معنی دکمی.جمع ئې قِلَل ده کفی دباب دضرب نه دماضی مطلق واحد غائب صیغه ده. کِفَایَةٌ ئې مصدردې.په معنی دکافي کیدلو.ددې نه دې (اَلکَفیُ والکُفیُ والکِفیُ) په معنی دهغه څه چه ضرورت پرې پوره شي.ددې دې مکافاة په معنی داحسان بدله کښې احسان کول.یاددې نه په زیات خیزسره بدله ورکول.دکَثُرَ تحقیق مقدمه کښې تیرشوې دې.الهی دباب نه افعال نه دماضی مطلق واحدغائب صیغه ده په معنی دغافل کولو.په مجردوکښې دنصراوسمع نه استعمال شوې دې.دنصرنه ددې مصدر لهوا په معنی دلوبې کولو راځي.اوسمع نه مصدر لها راځي په معنی دمحبت کولو.

**ترکیب**۞ ماموصوله.قلّ فعل هوضمیر ئې فاعل فعل سره دفاعل معطوف علیه.واوعاطفه. کفی فعل هُوَضمیر ئې فاعل.فعل سره دفاعل معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه صله. موصول سره دصلې نه مبتداء.خیرٌ اسم تفضیل ضمیر دهُوَ ئې فاعل.مِن جار ماموصوله.کَثُرَ فعل.ضمیر دهُوَ فاعل فعل سره دفاعل معطوف علیه.واوعاطفه.الهی فعل هوضمیر ئې فاعل.فعل سره فاعل معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه صله دموصول.موصول سره دصلې مجرور دجار.جارسره دمجرور نه متعلق په اسم تفضیل پورې.اسم تفضیل سره دخپل فاعل اوسره دمتعلق نه خبر دمبتداء. مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۴۹﴾- أَصْدَقُ الرُّؤْيَا بِالْأَسْحَارِ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۳۹۷، س:۱۴، عن ابی سعیدرض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ دټولونه زیات رښتونې خوب د پیشمنی (د وخت) وی.

**تشریح**۞ د شپې آخری دریمې حصې والاخوب یعنی کوم خوب چه سحَر دپیشمنی په وخت سړې اووینی.هغه دټولونه زیات رښتونې وی.لیکن قطعي اوحُجت بیاهم نه وی چه سړې دې داخیال اوکړی چه داخوب مې دپیشمنی په وخت لیدلې وؤ.لهذا په دې باندې عمل کول ضروری دی.نه، کوم خوب چه دشریعت دیوې قاعدې خلاف وی.که هغه ئې دپیشمنی په وخت ولې نه وی لیدلې. هغه مردود دې.ددې حدیث مطلب دادې چه کوم خوبونه زیات صحیح وی په هغې کښې داخبره ده.چه هغه دټولونه زیات ریښتونې دپیشمنی والا خوب دې.خوب که دشرعی اصولو مطابق وی نو په هغې باندې عمل کول صرف مستحب دی. فرض یا واجب نه دی.دپیغمبرﷺ نه علاوه دبل چاخوب دلیل نه دې.

**فائده**۞ دخوب درې قسمه دی: ① یو داچه دورځې خیالات وی.ددې خوب څه تعبیرنه وی ② شیطانی خیالات ③ ښه خوبونه کوم چه دشریعت خلاف نه وی.دخوب تعبیر ویستل یو جدافن دې.هرسړې دخوب تعبیر نشی ویستلې.اونه هرسړی ته ښه خوبونهٔ خودل پکاردی

**لغوی او صرفی تحقیق** الرؤیا په معنی دخوب جمع ئې (رویٰ ورَأیٰ او رَایًا) راځي.دباب دفتح نه،الرجلُ په پرپوس باندې وهل.ددې نه دې.الرئة په معنی دپرپوس،جمع ئې رئات اورئون راځي.الاسحار په معنی دسحرنه لږ وړاندې وخت.داجمع ده اوواحد ئې سَحَر دې.دادفتح باب نه استعمال دې په معنی د① پرپوس باندې وهل ② دهوکه ورکول ③ جادوکول.اوسمع نه هم استعمال شوې دې په معنی دسحروختي راتللو.ددې نه دې السحرُ په معنی ① هرهغه څیز چه دهغې په حاصلولو کښې دشیطانی نزدیکت نه کاراخستلې شی② فساد ③ چل بازی ④ دروغ دربښتیاؤ په شکل کښې ښودل.ددې جمع (اَسحَارٌ او سُحُورٌ) ده اوددې نه دې ساحرپه معنی دعالم سره،جمع ئې (سَحَرَةٌ اوسَحَارٌ او(ساحرون) ده.اوددې نه دې(السحار)په معنی دجادوګر،ددې نه دې السحُورَة په معنی د پیښمنی خوراك،ددې نه دې مَسحُورٌ په معنی د خراب شوی خوراك.

**ترکیب** اصدق مضاف الرؤیا مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء. باجار. اسحار مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په ثابتٌ پورې.ثابت اسم فاعل.هُوَ ضمیر ئې فاعل. فعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۴۸﴾- طَلَبُ كَسْبِ الْحَلَالِ فَرِيْضَةٌ بَعْدَ الْفَرِيْضَةِ (بیهقی)

[تخریج:_ مشکوٰة: ص:۲٤۲، س:۲٤، عن عبدالله رض مرفوعًا]

**ترجمه** حلال ګټه حاصلول فرض دی (د باقی) فرضونه پس.

**تشریح** حلال ګټه حاصلول دمونځ ،روژې،زکوة نه پس یوفرض دې.لیکن په هغه سړی باندې چه دهغه دګټې دپاره بل څوك ذمه دارنه وی.که چرې بل څوك ئې ګټی.اوده ته ئې ورکوی نوددې سړی دپاره جُدا ګټه کول فرض نه دی.کله چه بل څوك نه وی.نو ددهٔ دپاره حلال ګټه کول فرض دی ځکه چه دا دتقوی اصل اوبنیاد دې.څو پورې چه دصحیح ګټې نه اونه خوری.ترهغه وخت پورې هغه متقی نشی جوړیدلې.

**نکته** دحدیث الفاظ دادې (طلب کسب الحلال فریضة بعد الفریضة) دا ئې اونه فرمائیل چه (طلب کسب الحلال فریضة علی کل مسلم) لکه څنکه چه ئې دعلم په باره کښې فرمائیلی دی چه هر مسلمان باندې زده کول فرض دی.دلته د(علی کل مسلم) نه وئیلو وجه صرف داده.که بل څوك ئې ګټی او ورکوی.نوده دپاره جدا ګټل فرض نه دی.اوکه داسې نه وی نوفرض ده لکه چه اوس تیرشول.

**لغوی او صرفی تحقیق** دطلب تحقیق په حدیث نمبر ٤٧ کښې تیر شوې دې کسب دامصدر دې دباب دضرب نه په معنی دګټلو.ددې نه دې (اَلکسبَة اَلکَسبَة) په معنی دګټې.ددې نه دې ابوکاسب په معنی دزمری.الحلال په معنی دجائز دا دنصر دباب نه هم استعمال شوې دې.په دې

صورت کښې به ددې مصدر حَلاً راځي.اوددې معنی به دپرانستلو وي.اوکه چرې دا دباب دضرب نه راشي.نو بیابه ئې مصادر حَلاً او(حَلَلاً اوحُلُولاً) راځي.نومعنی به ئې کوزیدل وي.اوکه دسمع نه راشي نوددې مصدربه حَلَلاراځي.بیا به ئې معنی وي په ځپه یاګیتۍ کښې سستوالي.بهرحال دامادہ ددریو بابونونه استعمالیږي.دفریضة تحقیق په حدیث (۴۷)کښې تیر شوې دې.

**ترکیب** طلب مضاف کسب مضاف الیه مضاف.الحلال مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه بیامضاف الیه،طلب مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء.فریضة موصوف بعدمضاف الفریضة مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول فیه شو دثَّابِتَة، ثابِتَة اسم فاعل هِیَ ضمیر پکښې دې هغه ئې فاعل اسم فاعل سره دځپل فاعل اوسره دمتعلق نه شبه جمله صفت دموصوف.موصوف سره دصفت نه خبر.مبتداء سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿ ۵۰ ﴾- خَیْرُکُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهُ (بخاری)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۸۳، س:۲۱، عثمان رض مرفوعًا]

**ترجمه** په تاسو کښې دټولونه غوره سړې هغه دې څوك چه قرآن زده کړي اودا بل ته اوښائي.

**تشریح** قرآن زده کول چه ددین په ضروریاتو باندې عمل اوکړې شي فرض عین دی.مثلاً صحیح الفاظو سره مونځ کښې قرآن لوستل فرض دی.البته باقي تجوید زده کول فرض کفایه دی.اوقرآن زده کول اوبیا ئې نوروته ښودل هم فرض کفایه دی.یعنی عالم جوړیدل فرض کفایه دی.قرآن یادول اوحفظ کول فرض نه دی بلکه مستحب دی.البته دکامل عالم جوړیدلودپاره حفظ کول پکاردی اوحفظ چه اوکړی دومره ئې یاد ساتل ضروری دی.څومره چه دحفظ کولو په وخت کښې یادوؤ.چونکه دقرآن الفاظ اومعانې دواړه مقصود دی.په دې وجه تلاوت سره په مطلب باندې دپوهیدلو کوشش هم پکاردې.

**لغوی او صرفی تحقیق** تَعَلَّمَ په معنی دعلم زده کولو.اوعَلَّمَ په معنی د بل ته دښودلو.تَعَلَّمَ دتفعُل دباب نه دې او عَلَّمَ دباب تفعیل نه. باقي تحقیق ئې په حدیث نمبر۴۷ کښې تیرشوې دې.القرآن دامصدردې.دباب د نصراوفتح نه اوقِرَاءَةً ئې هم مصدرراځي په معنی دلوستلو. ددې نه دې (القارئُ) په معنی عابد سره.جمع ئې قارئونَ اوقراءٌ راځي.اوددې نه دې قُرَّاءٌ په معنی دعابد جمع ئې (قرئون اوقراری)راځي.اوددې نه دې قَرَّاءٌ په معنی ښه طریقې سره لوستونکې.جمع ئې قراءُونَ راځي.هم ددې نه دې المُقرُوَّ وَالمَقری والمَقرُوءُ په معنی دهغه څیز چه اولوستلې شي.

**ترکیب** خَیرُ مضاف کُم مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء.من موصوله تعلم فعل ضمیر دهُوَ ئي فاعل القرآن مفعول به.فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه.واؤعاطفه عَلّم فعل ضمیر دهُوَ پکښي دي هغه ئي فاعل.ه.مفعول به. فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره د معطوف نه صله دموصول.موصول سره دصلې نه خبر،مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه

﴿۵۱﴾- حُبُّ الدُّنْيَا رَأْسُ كُلِّ خَطِيْئَةٍ (رزین)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۴۴، س:۱۶، عن حذیفہؓ مرفوعًا]

**ترجمه** د دُنیا محبت د هرې گناه جرړه ده.

**تشریح** ددنیا محبت د هرې گناه جرړه ده.یعنی چه کومه گناه هم سړې کوی.هغه ددنیا دمحبت په وجه کوی.چه دهغهٔ په زړه کښې دنیا ناسته ده.یعنی ددې محبت نه ئې زړه ډک دې.د دنیا معنی داده چه کوم څیز دالله تعالی نه غافل کړی.او هره گناه دالله تعالی نه دغفلت نه روستو کیږی.او غافله کونکې دنیاده.معلومه شوه چه (په انسان باندې) هرقسمه گناه کونکې دنیاده.لهذا دهرې گناه جرړه دنیا شوه.ددنیا محبت ډیره لویه گناه ده.څوپورې چه سړې زړه ددې نه صفانه کړی ترهغه وخته پورې دهغه اصلاح نه کیږی.

**لغوی او صرفی تحقیق** دحُبِّ تحقیق په حدیث نمبر۶ کښې اود(الدّنیا) تحقیق په حدیث نمبر① کښې اود(رأس)اود(کُلّ) تحقیق په حدیث نمبر۴۱ کښې اودخطیئة تحقیق په حدیث نمبر۳۷ کښې تیرشوې دې.

**ترکیب** حُبِ مضاف الدنیا مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء.راس مضاف کُل مضاف الیه دمضاف.خطیئة مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه بیا مضاف الیه سره دمضاف نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخپل خبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۵۲﴾- اَحَبُّ الْأَعْمَالِ إِلَى اللّٰهِ أَدْوَمُهَا وَإِنْ قَلَّ (بخاری ومسلم)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۱۰، س:۱۲، عن عائشةؓ مرفوعًا]

**ترجمه** (دټولو نه) زیات خوښ اعمال دالله په نزد هغه دی کوم چه همیشه وی اگرچه کم وی.

**تشریح** عملونه اگرچه لږوی لیکن ښه ئې کړې وی.اوهمیشه ئې کوی دا الله تعالی ته ډیر زیات خوښ دی.په نسبت ددې چه عملونه ډیر کوی خوکله کله ئې کوی.همیشوالې پرې نه کوی نودا زیاتوالې دعملونو الله تعالی نه خوښوی.دمثال په طوریوسړې د ورځې سل (۱۰۰) رکعته مونځ کوی بیا ئې پریږدی.اوبل سړې روزانه دوه دوه رکعته نفل کوی اوپریږدی ئې نه،همیشه دپاره ئې خپل معمول جوړ کړې وی.نودا دویم سړې الله تعالی ته ډیرمحبوب دې. په دې وجه عملونو کښې زیاتوالې په مزه مزه کول پکاردی.چه ورسره ورسره همیشوالې او دَوام هم باقی پاتې شی.

**فائده** دلته إن وصلیه دې.ددې معنی داوی چه إن وصلیه دخپل ذکرشوې جزاء ته هم شامل وی.اود ذکرشوې جزاء نقیض ته په طریق اولی شامل وی.دلته هم داسې دی چه کله الله ﷻ ته لږعمل همیشګۍ سره خوښوی.نو زیات اعمال په همیشه والی سره به په طریق اولی ورته خوښ وی.دعملونو زیاتوالې الله ﷻ ته هغه وخت خوښ دې چه په هغې کښی همیشوالې وی څنګه چه ان وصلیه دا اوخودل.

**لغوی او صرفی تحقیق** د أَحَبُّ تحقیق په حدیث نمبر ۶ اود اعمال تحقیق په حدیث نمبر① کښی په بِسْمِ اللّٰه کښی دلفظ دالله ﷻ،اودَ قَلَّ تحقیق په حدیث نمبر۴۸ کښې تیرشوې دې. أدوَمُها دا داسم تفضیل صیغه ده دنصر دباب نه،دَوْمًا او دَوَامًا او دَیمُومَةً ئې مصدرراځی په معنی د① ثابت پاتې کیدل ② ډیره موده پاتې کیدل ③ جاری اوسیدل.ددې نه دې (اَلدِّیْمَة) په معنی دهغه باران چه بریښنااوګړزارې پکښی نه وی اووریږی.جمع ئې (دِیَمٌ او دُیُوْمٌ) ده. ددې نه دې (الدائم) اسم فاعل په معنی دالله ﷻ سره او(ماءدائم) ولاړې اوبه.ددې نه دې اَلمِدْوَمُ او لِمدوَامُ په معنی دسمسۍ سره چه په هغې سره دکټوۍ جوش کینولې شی.

**ترکیب** (احب) اسم تفضیل مضاف الاعمال مضاف الیه الی جار لفظ الله ئې مجرور.جار سره دمجرور نه متعلق په اسم تفضیل پورې.احب صیغه داسم تفضیل سره دخپل مضاف الیه اومتعلق نه مبتداء أدوَم مضاف.ها ئې مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه خبر. مبتداء سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه شوه.واؤ مبالغه.ان وصلیه شرطیه .قلَّ فعل هو ضمیر پکښی دې هغه ئې فاعل.فعل سره دفاعل شرط(جزاء ئې محذوف ده) چه " فهو احب مادیم علیه ده" فاء جزائیه.هومبتداء.احب مضاف ماموصوله.دیم فعل مجهول هو ضمیر پکښی دې هغه ئې نائب فاعل.علیه جار مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په دیم پورې.دیم فعل سره دخپل نائب فاعل اومتعلق نه صله.موصول سره دصلې نه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله شرطیه شوه.

﴿۵۳﴾- اَفْضَلُ الصَّدَقَةِ اَنْ تُشْبِعَ كَبِدًا جَائِعًا (بیهقی)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۱۷۲، س: ۸، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه** ( دټولو نه) افضل صدقه داده چه ته خیټه مړه کړې د یو اوی ځیګر.

**تشریح** دصدقې خوډیر قسمونه دی.لیکن دټولونه غوره صدقه داده چه یواوږی سړی خیټه ډکه کړې شی.هسې خود صدقې ډیرحقداری دی.خودَ ټولونه زیات حقدارې هغه دې چه اوږې وی او غواړی نه.یو اوږی ځناور ته په خوراك ورکولو سره هم د صدقې ثواب ملاویږی. چا سره چه مال نه وی چه په هغې سره هغه صدقه اوکړی.نوپه بل حدیث کښی راځی چه په داسې صورت کښی چاته ښه خبره ښودل هم صدقه ده.

**فائده**۞ صدقه اوتبلیغ دا دوه کارونه داسې دی چه ددې دائره ډیره فراخه ده.چاته ښه خبره ښودل داتبلیغ هم دې اوصدقه هم ده.اوپه بوږډباندې څه نه څه ښه خبره لیکل صدقه هم ده اوتبلیغ هم دې.افسوس دادې چه بعضې خلق داګڼړی چه صدقه صرف مال سره کیدلې شی نودا غلطه ده.دغه شان دتبلیغ دائره هم محدودنه ده لکه بعض خلقو چه ګڼړلې ده.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ افضل په معنی د ،،فضل کښې زیاتیدل،،جمع تصحیح ئې (افضلون) اوجمع تکسیر ئې اَفَاضِل ده.دادنصر باب نه هم مستعمل دې.معنیٰ ده باقی پاتې کیدل او زیاتی کیدل اوسمع اوکرم نه هم استعمال دې په معنی دفضیلت خاوند.ددې نه دې (فضولی) په معنی ❶دبې فائدې څیزونو کښې مشغولیدونکې❷ د دوو کسانو په معامله کښې پخپله حصه اخستل .ددې نه دې فُضُولٌ کوم څیز چه په مال غنیمت کښې دتقسیم کولو نه پس باقی پاتې شی ددې نه دې (الفضیلة) په معنی د❶ صفت❷ زیاتوالې❸ په فضل کښې اوچته مرتبه جمع ئې (فضائل) ده.تَشبَعُ دباب افعال نه دمضارع واحد حاضرصیغه ده.اشباع ئې مصدردې.په معنی دخوراك سره مړول.ددې نه دې(اَلشِبَعُ او اَلشِبَعُ) په معنی ددومره خوراك کولو چه موړشی.اوددې نه دې (اَلشَّبَاعَةُ) د مړیدلونه پس پاتې شوې خوراك (کبد) په معنی دځیګراو اینې سره دا دباب دنصراو ضرب نه په معنی د سینه باندې دوهلو ده.دا لفظ په دریو طریقو وئیلې شی (کُبدٌ،کَبِدٌ،کِبْدٌ) د دریو واړو معنی یوه ده.جمع ئې (اَکبَاد او کُبُـود) راځی.دا درې واړه لفظونه مؤنث اومذکر دواړه طریقوسره استعمالیږی(جائعا)دادصفت صیغه ده په معنی داوږی.دنصر دباب نه استعمال شوې دې.جوعاً اومَجَاعَةً ئې مصدرراځی په معنی داوږی کیدلوسره.

**ترکیب**۞ (افضلِ) مضاف.الصدقة مضاف الیه أن ناصبه مصدریه.(تُشبِعَ) فعل.أنتَ فاعل کبداًموصوف جائعاً ئې صفت.موصوف سره دصفت نه مفعول به.فعل سره دفاعل اوسره دمفعول به نه په تاویل دمصدر سره خبردمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۵۴﴾- مَنْهُوْمَانِ لَایُشْبَعَانِ مَنْهُوْمٌ فِيْ الْعِلْمِ لَایُشْبِعُ مِنْهُ وَمَنْهُوْمٌ فِيْ الدُّنْیَا لَایُشْبِعُ مِنْهَا (بیهقی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۳۷، س:۲، عن انس بن مالك رضی الله عنه مرفوعًا]

**ترجمــه**۞ دوه حریصان کله هم نه مړیږی یوپه علم کښې حریص،چه ددۀ ددې نه خیټه نه ډکیږی.اویو د دنیا حریص چه ددۀ ددنیا نه خیټه نه ډکیږی.

**تشریح**۞ دوه لالچیان داسې دی چه ددوی کله هم خیټه نه ډکیږی.①یو لالچی دعلم دې.چه هغه داغواړی چه زۀ نورعلم حاصل کړم.علم خوسمندردې دعالم خود یوڅاڅکی په شان نسبت وی.علم سره چه دچا څومره زیات لالچ وی هغومره به هغه شوق سره زیات نه زیات علم حاصلوی لیکن خیټه به ئې بیاهم نه ډکیږی ځکه چه علم خودَ سمندرنوم دې.البته ددې

لالچ په وجه به ښه عالم جوړشي.اودا دده ښه لالچ دي.② په خلاف دهغه کس چه دنیا سره ئې لالچ وی چه پیسې اوګټم وغیره وغیره.دده هم چرې خیټه ښه نه ډکیږی.څه ئې ګټلی وی او نوره ئې زړه غواړی.غرض داچه دنیا پسې لګیدلې وی نو دا لالچ ډیر بد لالچ دې.جهنم ته بوتلونکې لالچ دې.الله دې ترې مونږ ټول په امان اوحفاظت کښې اوساتی.(آمین)

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ منهومان داصیغه داسم مفعول ده.ددې نه مراد دوه حریصان دی.ددې باقی تحقیق په حدیث نمبر۴۲ کښې په لفظ دنُهمَۃ کښې تیرشوې دې .د(یشبعان) تحقیق په تیرشوی حدیث کښې شوې دې.په دې حدیث کښې نوې لفظ نشته چه دهغې لغوی اوصرفی تحقیق اوکړې شی .

**ترکیب**۞ منهومان مبتداء (چونکه دانکره مخصوصه ده.په دې وجه ئې مبتداء ګرځول صحیح دی) لاَیشبعان فعل .په دې کښې الف ضمیر ئې فاعل.فعل سره دفاعل خبر.مبتداء سره دخبر نه جمله اسمیه خبریه مُفَسر.منهوم صیغه داسم مفعول.هُوَضمیر پکښې هغه ئې نائب فاعل. فی جار العلم مجرور.جار سره دمجرور نه متعلق په اسم مفعول پورې.اسم مفعول سره دنائب فاعل نه اوسره دمتعلق نه مبتداء لایَـشبَعُفعل هوضمیر پکښې هغه ئې فاعل،من جار، ه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې فعل سره دخپل فاعل اوسره متعلق نه خبر مبتداء سره دخپل خبر نه بیا خبر دمبتداء محذوف دپاره چه اَحَدُها دې.مبتداء سره دخپل خبرنه معطوف علیه (دوړاندې جملې ترکیب هم دغه شان اوکړئ) معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه تفسیر.مُفَسرسره دتفسیر نه جمله تفسیریه شوه.

﴿۵۵﴾- اَفۡضَلُ الۡجِهَادِ مَنۡ قَالَ كَلِمَةُ حَقٍّ عِنۡدَ سُلۡطَانٍ جَائِرٍ(ترمذی)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۳۲۲، س:۱۳، عن ابی سعدرض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ غوره جهاد دادې چه څوك اووائی حق خبره ظالم بادشاه سره.

**تشریح**۞ چونکه دبادشاه مخې ته ورتلل اوحق خبره کول ډیرمشکل وی اوزیات خلق دبادشاه په مخکښې حق خبره نۀ کوی.نن صبا خاصکر دبادشاه په وړاندې حق خبره کول ډیره زیات مشکل دی. دې وجې نه نبی کریم ﷺ دې حق خبرې ونیلوته افضل الجهاد یعنی غوره جهاد اوفرمایـه.دافـضل د لفـظ نـه دانـۀ معلومیـږی چـه هـم دا افـضل جهـاددې.بلکـه ددې نـه دا معلومیږی چه داهم افضل جهاددې.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: دافضل تحقیق په حدیث نمبر ۴۵ کښې اود اَلجهادپه حدیث نمبر۳۶ کښې تیرشوې دې.قال داد نصر دباب نه د ماضی مطلق واحدغائب صیغه ده.قَوۡلاً وَقَالاً وَقِيۡلاً وَقَوۡلَةً وَمَقَالاً وَمَقَالَةً ئې مصادر دی.په معنی د خبرې، کلام.هم ددې نه دې قول په معنی دلفظ،

خبرې اوکلام.جمع ئې اقوال،اوجمعُ الجَمع ئې اقاويل ده.هم ددې نه دې القـوّال په معنى د لوېې ويونكى.اوهم ددې نه دې التَقوَالَةُ په معنى د خورِكلام كولووالا. كلمةٌ مفرد دې.په معنى دلفظ.سره.ددې جمع كَلِمٌ راځي.عندَ اسم ظرف دې.دا ماده دباب نصر،او ضرب اوكرم نه مستعمل ده.په معنى د تجاوز كولوسره(حدنه تيريدل)،لرې كيدل.مائل كيدل.هم ددې نه دې العند په معنىد① زړه ② معقول.اوددې نه دې اَلعَندُ په معنى دطرف،غاړې.سلطان په معنى د① حجت اودليل ② قدرت ③ اقتدار ④ بادشاه.ددې ماده سَلِطَ ده په وزن دسمع مصدر ئې سَلَاطَةَ او سُلُوطَةَ راځي په معنى دژبې اوږديدل.جائر دنصرد باب نه داسم فاعل صيغه ده جوراً ئې مصدردې په معنى دظلم كولو.ددې نه دې الجوارپه معنى دګاونډ.او الجـوار په معنى د جورو اوبو.او جار په معنى دګاونډي.جمع ئې جيران راځي.

**تركيب**۞ افضل مضاف،الجهادئې مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مبتداء.من موصول.قال فعل ضميردهوپكښې دې هغه ئې فاعل.كلمة مضاف،حق ئې مضاف اليه مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول به،عندمضاف،سلطان موصوف،جائر ئې صفت، موصوف سره دصفت نه مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول فيه.فعل سره دخپل فاعل اوسره دمقولې (مفعول به) نه اوسره دمفعول فيه نه جمله فعليه خبريه صله دموصول. موصول سره دخپلې صلې نه خبر،مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۵۲﴾- لَغَدْوَةٌ فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ أَوْرَوْحَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا (بخاری ومسلم)

[ تخريج:۔ مشكواة: ص:۳۲۹، س:۱۶، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ يوسَحر په جهاد كښې تلل.يا يوماښام،بهتر دى د دنيا نه اوڅه چه په دنياكښې دى.

**تشريح**۞ په جهاد كښې د لړشان وخت لګولو ثواب دومره دې. چه دټولې دنيانه بهتردې اوپه دنياكښې چه څۀ هم دى.سره زر،سپين زر هيرې او جواهرات وغيره وغيره،ټولونه بهتردې. نوځومره وخت چه زيات اولګى نودهغې دثواب حساب نشى كيدې دلته خود صبا يا ماښام دوخت بيان دې يعنى دورځې نيمه اوله حصه په غدوة كښې شامله ده.اودروځې دويمه حصه په روحة كښې شامله ده.داحديث دجهاد ډيرلوئې فضيلت بيانوى.دغه شان دجهادنورهم فضائل شته دى.مثلا په بل حديث كښې داهم راځي چه يوه ورځ اوشپه په جهادكښې څوكيدارى كول ددنيااوڅۀ چه په دنياكښې دى ددې نه بهتره ده.هم په دې كتاب (زادالطالبين) كښې دجهادفضيلت په باره كښې په مختلفوځايونوكښې (حديثونه) راځي. يوحديث به من جهزغازيا...الخ راشي.اوبل من مات ولم يغز...الخ به راشي.جهاد ددين په غټو شعبوكښې يوه شعبه ده.دجهادنه انكاركونكې كافردې.اودجهادكيدلوپه وخت كښې كه چرې دتللو

طرف ته توجه اونکړی.یائې (دهغې په باره کښې) سوچ اونهٔ کړو.نوداسړې منافق دې.جهاد فرض کفایه ده.که چرې دوخت بادشاه اعلان اوکړی نوبیافرض عین کیږی.بهرحال دجهاد شوق اوجذبه هم دهر مؤمن په زړهٔ کښې کیدل پکارده.

**لغوی اوصرفی تحقیق**۞ غدوة مصدردې دنصر د باب نه.غُـدُوٌّ ئې هم مصدر راځی.په معنی د ـ① سحرتلل ② تلل مطلقا.غداً په معنی دصارسره هم مستعمل دې اسم ته رفع اوخبرته نصب ورکوی.دادسمع د باب نه هم مستعمل دې.غدا مصدردې په معنی دسحر دخوراك. دغدوةٌ جمع غدیٌ اوغدوٌ راځی.ددې نه دې الغداء په معنی دسحرخوراك جمع ئې اغدیة ده. اوغادی په معنی دزمری، سبیل.ددې معنی ده لاره یافراخه سرك.داپه مذکراومؤنث دواړو کښې استعمال دې.ددې جمع سبلٌ وسبلاً واسبلٌ واسبلةٌ وسبولٌ راځی.ددې نه دې سبیل الله په معنی د① جهاد② دعلم طلب ③ حج ④ هریودخیرحکم چه دهغې امرالله تعالی کړې وی.دا ماده دنصر دباب نه مستعمل ده.سبلا ئې مصدرراځی.په معنی دکنځلوکولو.روحة په معنی دماښام وخت کښې تلل یاراتلل، یاکارکول.دادنصردباب نه مستعمل دې.روحانې مصدرراځی ددې نه دې روح په معنی دروح.اوددې نه دې ریح په معنی دهوا.ددواړوجمع ارواح راځی.

**ترکیب**۞ ل ابتدائیه، غدوة موصوف.فی جار،سبیل مضاف.لفظ الله ئې مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتة پورې ثابتة اسم فاعل.هی ضمیرپکښې دې هغه ئې فاعل.فعل سره دفاعل اوسره دمتعلق نه شبه جمله صفت دموصوف موصوف.موصوف سره دصفت نه معطوف علیه.اوحرف عاطفه روحة معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه مبتداء.خیراسم تفضیل.من جار،الدنیا معطوف علیه واوعاطفه.ماموصول.فی جار.هامجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثبت پورې ثبت فعل سره دخپل فاعل نه (چه ضمیرد هُوَ دې) اوسره دمتعلق نه صله دموصول.موصول سره دصلې نه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په اسم تفضیل پورې.اسم تفضیل سره دخپل فاعل نه (چه هُوَ ضمیردې) اوسره دمتعلق نه خبردمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۵۷﴾- فَقِيهٌ وَاحِدٌ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنْ أَلْفِ عَابِدٍ (ترمذی)

[تخریج:ـ مشکواة: ص:۳٤ س:١٤، عن ابن عباس رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ یو فقیه زیات سخت دې په شیطان باندې د زرو عابدانو نه.

**تشریح**۞ دفقیه دوه مصداقه دی:① اول مجتهدکوم چه په خپلهٔ دقرآن اوحدیث نه د مسئلو راویستلو استعداد (قابلیت) لری.یادساتئ چه د مخکینو څلورو صدونه پس څوك مجتهد نن پورې نه دې راغلې.خو داده چه قیامت ته نزدې حضرت مهدی اوحضرت عیسی علیه السلام به

مجتهد جوړشوی راځی. یومجدد بل وی. اوهغه دهرې صدۍ دپاره جداجداراځی. ② بل لوئې عالم یعنی چه کامل مفتی هم وی. په هرصورت مطلب دادې چه یوفقیه یوطرف ته اویو زرعبادت گذاریل طرف ته، دازرعابدان شیطان ته دومره سخت نهٔ دی لکه څومره چه یوفقیه ورته سخت وی. یعنی شیطان ته زرعابدان دهوکه کول آسان دی په نسبت دیوفقیه، چه دده دهوکه کول ډیرمشکل دی دشیطان دپاره. وجه ئې داده چه فقیه دشیطان دهوکې ورکولونه خبرداروی. دې وجې نه دهغه په پنجره کښې نهٔ گیرېږی. په خلاف دعابدانو، چه دا غریبانان صرف په عبادت کښې اخته وی. دوی ته پته نهٔ وی چه شیطان به په دې طریقه دهوکه کوی. ددې دامطلب نه دې چه فقیه عبادت نهٔ کوی بلکه فقیه هم ښهٔ عبادت کوی. لیکن یوفضلیت داهم لرې دشیطان ددهوکې ورکولوطریقه هم پیژنی.

**لغوي اوصرفي تحقيق:** فقیه په معنی د ① عالم ② ذهین ③ د فقهې په علم پوهیدونکې ④ ډیرپوهه لروکې. ددې جمع فقهاء راځی. دادسمع اوکرم د باب نه مستعمل دې. د واحد تحقیق په حدیث نمبر ۴۱ اوداشدتحقیق په حدیث ۱۶ کښې تیرشوې دې. الشیطان په معنی د ① خراب روح ② هرسرکشه اونافرمان اگرکه په انسانانوکښې وی یاپیریانو یا څناورو کښې. ددې جمع شیاطین راځی. اودا دنصر دباب نه مستعمل دې. شطنا ئې مصدردې په معنی د ① مخالفت کول ② لرې کول ③ په رسۍ تړل. دالف تحقیق په حدیث ۵۶ کښې تیرشوې دې. عابدپه معنی دخادم (نوکر) دادنصر دباب نه هم راغلې په معنی د ① الله تعالی یوگنړل ② عبادت کول ③ خدمت کول. ④ ذلیله کول. اوکرم دباب نه هم راغلې دې په معنی دپلارنیکه نه په غلامۍ کښې راتلل. مصدرئې عِبَادَةٌ وعُبُودَةٌ وَعُبُودِيَّةٌ ومَعبَدًا وغیره راځی ددې نه دې عبداپه معنی د ① غلام، نوکر ② انسان. جمع ئې اَعبُد وعَبِیْدٌ وَاَعْبَادٌ وعُبدَانٌ وعِبدَانٌ راځی. اوجمع الجمع ئې اعابد اومعابدراځی. ددې نه دې مِعبَدپه معنی دبیلچې جمع ئې معابدراځی.

**ترکیب** ۞ فقیه موصوف ، واحد ئې صفت، موصوف سره دصفت نه مبتداء. اشداسم تفضیل، په دې کښې هو ضمیردې هغه ئې فاعل. علی جار، الشیطان مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق اول شود اشد. من جار، الف مضاف. عابدئې مضاف الیه، مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور دجار. جارسره دمجرورنه متعلق ثانی شوپه اشدپورې. اشداسم تفضیل سره دخپل فاعله اوسره د دواړومتعلقو خبر، مبتداء سره دخپل خبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۵۸﴾- طُوبٰى لِمَنْ وَجَدَ فِي صَحِيْفَتِهٖ اِسْتِغْفَارًا كَثِيْرًا (ابن ماجه)

[تخریج: مشکواة: ص: ۲۰۶، س: ۵، عن عبدالله بن بسر ؓ مرفوعًا]

**ترجمه** ۞ خوشخبری ده هغه کس دپاره چاچه بیاموندلوپه خپله اعمال نامه کښې ډیر زیات استغفار.

**تشریح** یعنې څوك چه استغفار زیات کوي بلکه استغفارخپل عادت جوړکړي نودهغه خوښول ګناهونه معاف کیږي اوکله چه مړشي اوعمل نامه اووینې نوهغه وخت به دومره خوشحاله شي چه دهغې څه حساب نشته اوس دازمونږدپاره زیرې دې چه مونږته داوس نه ښودلې شوي دي چه مونږ استغفار زیات کړوهغه خوشحالي اوزیرې حاصل کړو چه کوم به په زیات استغفارملاویږي په یوروایت کښې راځي چه نبي کریم ﷺ به روزانه سل ځل استغفار کولو ولې؟ زمونږدتعلیم دپاره ئې داسې کول چه مونږهم چه ځان ته اُمتیان وایو داسې عمل اوکړو.

**لغوي اوصرفي تحقیق:** طوبی په معنی د① زیرې ② پسخیدل ③ نیك بختي ④ خیر،دا د ضرب دباب نه استعمال دې (طِیبًا وَطَابًا وَطِیبَـةً وَتَطیَابًـا) ئې مصادر راځي په معنی د ښه کیدلو،او خوږکیدلو ددې نه دې الطیب په معنی دخوشبوئې جمع ئې اطیاب اوطیوب ده. ددې نه دې الطابة په معنی دشراب ددې نه دې الطیب په معنی دپاکیزه ښه ،اوحلال سره ددې نه موئنث طیبة دې ددې جمع طیاب اوطوبی دی وجد دباب ضرب نه دماضی مطلق واحد غائب صیغه ده په معنی دموندلو ددې نه دې وجدان په معنی دخپل شوق سره یوڅیز حاصلول صحیفة په معنی د① لیکلی شوی کاغذ② ورق (پاڼه) دلته مراد اعمال نامه ده. ددې جمع صَحَائف اوصُحُف راځي داپه مجردوکښې نهٔ استعمالیږي اوپه مزیدوکښې دتفعیل او افعال اوتفعل دباب نه استعمالیږي ددې نه دې الصحفة په معنی ددومره لوئې پیالې (کاسې) چه کم نه کم پنځه کسان ترې نه مړیدلې شي جمع ئې صحاف ده ددې نه دې الصحافة په معنی داخبارلیکلواوددې نه اَلْمُـصْحَفُ وَالْمُصْحَفُ وَالْمِـصْحَفُ په معنی د① کتاب ② مجلدکتاب ③ قرآن مجید ددې جمع مصاحف ده اِسْتِغْفَارًا دادباب استفعال نه مصدردې په معنی دګناهونو بخښنه غوښتل په مجرودوکښې دسمع اوضرب دباب نه استعمال دې په معنی دپټولو ددې نه دې الغفار والغفورپه معنی دډیربخښلووالا ددې نه دې اَلْغَفْرُ په معنی دغوا بچې اوددې نه دې اَلْغَفَرُ په معنی دهغه چاچه دهغه په څټ واړه واړه ویښته وي دکثیراً تحقیق په حدیث نمبر۴۸کښې تیرشوې دې.

**ترکیب** طوبی مبتداء ل جار ،من موصول،وجد فعل،هوضمیرئې فاعل،فی جار صحیفة مضاف،ه مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجار ،جارسره دمجرورنه متعلق په وجدپورې استغفارا موصوف کثیرا ئې صفت موصوف سره دصفت نه مفعول به فعل سره دفاعله اوسره دمفعول به نه اوسره دمتعلق نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول،موصول سره دصلې نه مجروردجار ،جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتة پورې(طوبی چونکه موئنث ده دې وجې نه متعلق به ئې هم موئنث وي،ثابتة اسم فاعل په دې کښې ضمیر

د هي دې هغه ئې فاعل،اسم فاعل سره دفاعل نه اوسره دمتعلق نه خبردمبتداء.مبتداء سره دخپل خبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

**﴿۵۹﴾- رِضَى الرَّبِّ فِي رِضَى الْوَالِدِ وَسَخَطُ الرَّبِّ فِيْ سَخَطِ الْوَالِدِ**

[تخريج:_ مشكواة: ص:۴۱۹، س:۳۵، عن عبدالله بن عمرو رض مرفوعًا]

**ترجمه** دالله تعالى رضامندي د پلار په رضامندئ كښې ده.اود الله تعالى ناراضګى د پلارپه ناراضګئ كښې ده.

**تشريح** الله تعالىﷻ هغه وخت راضي كيږي كله چه دايمان سره نيك اعمال هم وي.اوحقوق العبادهم صحيح وي.خاصكر موريلارسره چه په كوم كاركښې موريلار خوشحاليږي.په هغه كاركښې الله تعالىﷻ هم خوشحاليږي.قرآن كريم چه چرته دشرك نه د بيزاره كيدو ښودنه كړې ده نوهلته ئې داهم ښودلې دى چه دموريلارسره ښه سلوك كوئ.اف ورته هم مه كوئ. يعنى هره،(جائز) خبره ئې منئ.ددې نه معلومه شوه چه موريلارپه حقوق العبادكښې په خاصوكښې خاص دى.اوپه دې حديث اوپه نوروحديثونوكښې تصريح هم راغلې ده چه الله تعالىﷻ راضي كيږي هغه وخت كله چه پلار راضي وي.

**اشكال** ايادموردخفګان په صورت كښې الله تعالى راضي كيږي؟لكه څنګه چه دحديث د ظاهرنه معلوميږي،څكه چه دمورئې هډوذكراونكړو،

**جواب** ①: دموروذكر طبعًا راغلې دې.

**جواب** ②: دوالد په ماده كښې والده هم راځي.

**جواب** ③: دموروذكردنورورواياتونه معلوميږي.

**لغوى او صرفى تحقيق** رضى مصدردې دسمع دباب نه.اورُضِيَ وَرَضْوَانًاوَرِضْـوَانًا ئې مصادر راځي په معنى د راضي كيدلو او خوشحاليدلو.ددې نه دې الرضاء په معنى درضامندئ. او ددې نه دې الرضي په معنى د① عاشق ② كمزورې.درب تحقيق په مقدمه كښې تيرشوې دې اود والد تحقيق په حديث نمبر۳۱ كښې تيرشوې دې.سخط په معنى دناراضګئ اوغصې ددې هم معنى سُخُطٌ اوسَخَطٌ دى.دادباب د سمع نه مستعمل دې.ددې نه دې مسخوط په معنى دمكروه سره.

**تركيب**رضى مضاف الرب مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه مبتداء.فى جار،رضى مضاف،الوالد مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابت پورې.ثابت اسم فاعل .ضميردهوپكښې دې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دخپل فاعل نه اوسره دمتعلق نه خبردمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه معطوف عليه.واؤعاطفه سخط

مضاف.الرب ئې مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مجرور دجار.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابت پورې.ثابت اسم فاعل په دې کښې ضميردهودې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دخپل فاعل نه اوسره دمتعلق نه خبردمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه معطوف،معطوف عليه سره دخپل معطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۲۰﴾- حَقُّ كَبِيْرِ الْاِخْوَةِ عَلٰى صَغِيْرِهِمْ حَقُّ الْوَالِدِ عَلٰى وَلَدِهٖ (بيهقى)

[تخريج:_ مشكوٰة: ص:۴۲۱، س:۱۹، عن سعيد بن العاص رض مرفوعًا]

**ترجمه** په رونړوکښې د مشر(رور) حق په کشرانوباندې هغه دې کوم حق چه دپلاردې په خپل اولاد باندې.

**تشريح** دمشر رورحق په کشرباندې داسې دې لکه دپلارحق په خپل خوې باندې يعنى مشررورته پکاردى چه دکشر روږداسې خيال اوساتى لکه څنګه چه پلاردخوى خيال ساتى چه تربيت وغيره ئې کوى اوکشرروړته هم پکاردى چه خپل ځان نه دمشرروږداسې خيال اوساتى لکه څنګه چه دپلارخيال ساتلې شى.چه ادب اواحترام ئې کولې شى.

**سوال**:آيا دمشرې خور حق په کشرې خورباندې نشته دې؟ که چرې وى نوبيائې ولې ذکر نکړو؟

**جواب**:اصل سړې دې ځکه دهغوى ذکرکافى وى،ښځې پکښې تبعاراغلې.

**لغوى او صرفى تحقيق** حق په معنى د① رښتيا ② يقين ③ انصاف ④ دمال حصه _⑤ هوښيارتوب ⑥ مرګ .جمع ئې حقوق ده.دا دباب د نصر اوضرب اوسمع نه استعمال دې په معنى دثابت کيدلو او واجب کيدلو___ ددې نه دې الحقة په معنى د ① وړوکې لوښې ② مصيبت ③ ښځه.جمع ئې حق اوحقق اوحقاق ده.ددې نه دې الحقة په معنى دواجب حق،الحقيق په معنى دلائق.جمع ئې احقاءُ ده.اوالحقيقة په معنى دواجب الحمايت څيز.کبير په معنى دلوى (مشر) جمع ئې کباراوکبراء.دادسمع اونصر دباب نه استعمال شوې دې.کِبَرًا اومَکبَرًا ئې مصادردى په معنى دلوى ګناه.اوددې نه دې الکبراوالکبرة اوالکبيرة په معنى د بوډاوالى.اوددې نه دې الکبريه معنى د لوئې لوتې.د اخوة تحقيق په حديث نمبر ۴۰کښې تيرشوې دې.صغيرپه معنى دوړوکى دادباب دسمع،کرم،اونصرنه دې.صَغَرًا، صِغَرًا، صُـغْرَانًا، صَغَارًا وصَغَارَةً ئې مصادر راځى.په معنى د① وړوکى کيدلوسره ② ذليله کيدل.ددې نه دې الصغر په معنى د① کمى ② ظلم ③ ذلت اوسپکاوې.کمزورى.

**ترکيب** حق مضاف،کبيرمضاف اليه دمضاف،الاخـوة مضاف اليه،مضاف سره دمضاف اليه نه بيامضاف اليه شو.دواړه ذوالحال.على جار.صغيرمضاف،هم مضاف اليه،مضاف

سره دمضاف الیه نه مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتا پورې. ثابتااسم فاعل سره دخپل فاعل نه چه (هو) ضمیردې اوسره دمتعلق نه حال. حال سره دذوالحال نه مبتداء، حق مضاف. الوالدمضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه ذوالحال. ولدمضاف، ه مضاف الیه، مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتاپورې. ثابتااسم فاعل سره دخپل فاعل نه چه (هو) ضمیردې اوسره دمتعلق نه حال. حال سره دذوالحال نه خبر، مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۲۱﴾- كُلُّ بَنِيْ آدَمَ خَطَّاءٌ وَخَيْرُ الْخَطَّائِيْنَ التَّوَّابُوْنَ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص: ۲۰٤، س: ۱۹، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه** ❁ هرسړې غلطی کونکې دې. او غوره په غلطی کونکوکښې هغه خلق دی چه توبه کونکی دی.

**تشریح** ❁ هرانسان غلطی کوی. لیکن غلطی کونکوکښې بهترخلق هغه دی کوم چه دغلطئ نه پس ښهٔ طریقه باندې توبه اوباسی.

**د توبې تعریف** ❁ په تیره شوې ګناه خپیمانتیا. اوسمدستی دګناه نه ځان ساتل. اوبیادپاره دګناهونونه بچ کیدلودپاره کلکه اراداه کول. توبه ده. بیاپه توبه کښې دریوځیزونوکښې اصل ځیز پښیمانتیاده چه سړې ډیرزیات شرمنده شی دګناه کولونه پس اوپریشانه شی اود مغفرت په فکرکښې لګیاشی. اویقین ساتی چه چه معافی راته کیږی. اوفی الحال ګناه نهٔ کوی او بیا دپاره دګناه نه دبچ کیدلوپخه اراده اوکړی. اوکوشش سره ځان ساتی نوتوبه سمدستی قبلیږی دانه وی چه سړې داسوچ کوی چه الله تعالی ډیررحیم اوکریم دې. اوګناه کوی. ګناه سمدستی پریښودل اوبیاسوچ کول پکاردی چه هغه ډیررحیم اوکریم دې معافی به اوکړی. دې دپاره ئې اوفرمائیل چه هرانسان غلطی کوی لیکن ددغه غلطئ کونکونه کوم چه دغلطئ نه پس هڅودتوبې فکرنهٔ کوی. داحدیث مطلب دې. دامطلب نهٔ دې چه هرسړې غلطی کوی نومونږئې هم کوودچاګناه کول دبل دپاره دجائزکیدلودلیل نهٔ ګرځی. ددې وجې نه ډیرګناهونه کوم چه نن صباددوجې نه کیږی چه فلانکې داسې کوی نومونږئې ولې نهٔ کوو؟ دا بالکل غلطه خبره ده. ځکه چه دهرانسان عملونه دهغه سره دی اود هرچا قبر جدا جدا دې. دې نه دهرانسان غلطی اوتوبه جداجداده.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: دکل تحقیق په حدیث ٤١ کښې تیرشوې دې. بنی په معنی دځامنو، داجمع ده ددې مفردبنی راځی په معنی د خوږځوی. دا ماده دضرب یضرب نه مستعمل ده بَنيًا وبِناءً وبُنيانًا وبِنايَةً ئې مصادر راځی په معنی د① جوړولو. ② تعمیرکولو. ددې نه دې ابن په معنی دځوې اوبنت په معنی دلور. آدم. دادادم علیه السلام نوم دې. ددې معنی ده غنم رنګې. دادضرب

اوسمع اوکرم نه استعمال دي په معنی دغنم رنګه کیدلوسره.ددې نه دي ادامْ په معنی دترکارئ سره.جمع یې ادم اوأُدمْ ده.ددې نه دي آدم په معنی دهرهغه څیزچه دهغې نه ترکاری جوړه کړې شي.او آدم په معنی دځرمنې دننه یابهرحصه.

**ترکیب**۞ کل مضاف،بنی مضاف الیه مضاف،ادم مضاف الیه مضاف سره دخپل مضاف الیه نه مضاف الیه دکل.کل سره دمضاف الیه نه مبتداء،خطاء ئې خبر،مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه،واو عاطفه،خیرمضاف،الخطائین،مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء.التوابون ئې خبر.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۶۲﴾- كَمْ مِنْ صَائِمٍ لَيْسَ لَهُ مِنْ صِيَامِهِ إِلَّا الظَّمَاءُ وَكَمْ مِنْ قَائِمٍ لَيْسَ لَهُ مِنْ قِيَامِهِ إِلَّا السَّهَرُ (دارمی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۷۷، س:۹، عن ابی هریرة رضی الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه**۞ ډیر روژه دار داسې دی چه نشته هغوی دپاره دهغوی په روژو سره لیکن تنده، او ډیر اودریدونکی داسې دی چه نشته هغوی دپاره دهغوی په اودریدو سره لیکن ویخیدل.

**تشریح**۞ دحدیث مطلب دادې چه ډیرروژه دارداسې دی کله چه هغوی روژې نیسی نوترڅو پورې ئې چه په اخلاص سره نۀ وی نیولې اودګناهونونه ځان اونۀ ساتی نوهغه وخته پورې ددوی روژه صرف اوصرف تږی پاتې کیدل دی.یعنی ثواب به هغه وخت ملاویږی کله چه اخلاص وی اوګناهونه ورسره نۀ وی.دروغ،تهمت لګول اوغیبت وغیره نۀ وی دغه شان دشپې په عبادت کښې د اودریدونکی هم هغه وخته پورې څۀ فائده نشته.ترڅوچه اخلاص نۀ وی.اوچه اخلاص وی نودشپې اودریدل به ئې په عبادت کښې شمیرلې شی اوکه داسې نۀ وی نوصرف اوصرف بیداروالې دې په دې کښې هیڅ ثواب نشته دګناه خطره ده.کله چه ریا وی یابله څۀ ګناه کوی فضول خبرې اوغیبت وغیره کوی.بهرحال هرکاراخلاص.تواضع او آرام سره کول پکاردی.ځکه چه نبی کریم ﷺ مونږته خبراکوی چه ګورئ ډیرخلق خپلې روژې خرابوی اوډیرخلق ټوله شپه اودریږی.بیاهم ورته فائده نۀ وی.تاسوداسې مۀ کوئ.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: دکم دوه قسمه دی ① استفهامیه یعنی انشائیه ددې ممیزمنصوب وی لکه کم کم "ساعةً عندك" تاسره څۀ وخت دې؟ ② خبریه په معنی دډیروالی.ددې ممیز مجرور وی لکه كَمْ عَبْدٍمَلَكْتُ معنی ئې داده چه ډیروغلامانومالك یم دامادہ دباب د نصرنه مستعمل دې.مضاعف دی.په معنی دپټولو.دصائم تحقیق په حدیث ۳۱ کښې تیرشوې دې. الظماء مصدر دې دباب دسمع نه په معنی دتږی کیدلو.ظما اوظماء اوظماة اوظماءة ئې هم مصادردی.دقائم تحقیق په حدیث ۴۵ کښې تیرشوې دې.السهرة په معنی دشپې بیدار

اوسیدلو .دادسمع دباب نه مستعمل دې.ددې نه دې السهاروالسهرة په معنی دډیر بیدار اوسیدونکی.

**ترکیب** کم ممیزمضاف.من زائده.صائم تمیزمضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء،لیس فعل دافعال ناقصه نه.ل جاره.ه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق اول شو ثابتًا پورې.من جار.صیام مضاف.ه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجار،جارسره دمجرورنه متعلق ثانی په ثابتاپورې.ثابتااسم فاعل.په دې کښې ضمیردهودې هغه ئې فاعل اسم فاعل سره دخپل فاعل نه اوسره ددواړو متعلقونه دلیس خبرمقدم.الاحرف استثناء لغو. الظماء اسم دلیس.لیس سره دخپل اسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه شو.واو عاطفه.کم ممیزمضاف من زائده.قائم تمیزمضاف الیه .مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء لیس فعل دافعال ناقصه نه.ل جار.ه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتاپورې.من جار. قیام مضاف ه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتًاپورې.ثابتااسم فاعل.په دې کښې ضمیردهودې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دخپل فاعل نه اوسره ددواړومتعلقونه خبرمقدم .الاحرف استثناء لغو.السهردلیس اسم لیس سره دخپل اسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دخپل معطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۲۳﴾- مِنْ حُسْنِ إِسْلَامِ الْمَرْءِ تَرْكُهُ مَالَا يَعْنِيهِ (ترمذی احمد وغیرهما)

[تخریج:۔ مشکواة: ص:۴۱۳، س:۹، عن علی بن حسین رض مرفوعًا]

**ترجمه** دسړی داسلام دښۀ والی ځینې دادی چه دې پریږدی هغه ځیزکوم چه بې فائدې وی.

**تشریح** انسان ته هرهغه کارنۀ دی کول پکار،کوم چه بې مقصده وی.اګرکه دهغې تعلق دوینا سره یادعمل سره یاسوچ سره وی یاکتلوسره.یعنی کامل مسلمان هغه دې کوم چه د فضول خبرونه ځان ساتی.که چرې کوی ئې نوهغه پریږدی.پاتې خو لا دګناه خبرې کول.ځۀ فضول خبره دژبې نه اونۀ کاړی.دغه شان ځۀ کاردګناه اونۀ کړی.اودغه شان فضول سوچونه دشیخ چلی په شان نۀ کوی.اودغه شان فضول یوخوا بل خوا کتلونه پرهیز اوکړی.غرض داچه هرهغه ځیزکوم چه بې فائدې دې هغه پریږدې.نوبیاانسان کامل مسلمان جوړیدلې شی اومتقی اوداالله تعالی ولی جوړیدلې شی.ترڅوچه یوه ګناه هم کوی نوداالله تعالی ولی ورته نشی وئیلې.اوپه یومنټ کښې اګرکه د سلوکالو ګناهونه وی) چه رښتونې توبه اوباسی نوهغه داالله تعالی ولی جوړیدې شی.

**لغوی او صرفی تحقیق** ترک مصدردې دنصر دباب نه په معنی د پریښودلوددې نه دې اَلتَّرِكَةُ و اَلتَّركَةُ والتركَـةُ په معنی د پریښودلی‌شوی ځیز.ددې نه دمیت ترکه،یعنیه دادباب ضرب نه دمضارع

واحدمذکرغائب صیغه ده.عنایة یې مصدردې په معنی دمشغول کیدلو.ددې نه دې معنی په معنی دمقصود.دباقی الفاظوتحقیق تیرشوېدې.

**ترکیب** من جار،حسن مضاف،اسلام مضاف الیه مضاف.المرء مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مضاف الیه شو.بیامضاف سلام مضاف اا ـه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتاپورې.ثابت اسم فاعل په دې کښې ضمیردهودې هغه ئې فاعل اسم فاعل سره دفاعل نه اوسره دمتعلق نه خبرمقدم.ترك مصدر.ه فاعل مضاف الیه.ماموصوله لایَعنی فعل په دې کښې هوضمیرئې فاعل .ه. ضمیرمفعول به.فعل سره دفاعله اوسره دمفعول به نه مبتداء مؤخر.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿٦٤﴾- **أَلَاكُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ** (رواه الشيخان والحديث طويل)

[تخريج:_ مشكواة: ص:٣٢٠، س:٢٥، عن عبدالله بن عمرؓ مرفوعًا]

**ترجمه** خبردار! په تاسو کښې هریوکس نګهبان دې.اوپه تاسو کښې به دهر یوکس نه تپوس کولې شی دهغهٔ د رعایا (ماتحت) باره کښې.

**تشریح** هرسړې حفاظت کوُنکې اونګهبان وی.اوکومو ځایونو پورې چه دچا چا نګرانی وی هغه ځائې به ددې په باره کښې تپوس هم وی دقیامت په ورځ چه داستاپه نګرانیٔ کښې وؤ.اوښایه تادې څومره په دین باندې لګولې وؤ.اودین دې ورته خودلې وؤ؟ددې جملې نه پس نبی کریم ﷺ مثالونه ورکړی دی اوددې جملې وضاحت اوتشریح ئې فرمائیلې ده.چه امام دخلقونګران (یعنی دینی حفاظت کوونکې) وی دده نه به دده دماتحتوخلقوباره کښې سوال کولې شی دقیامت په ورځ.دغه شان سړې په خپل کوروالوباندې نګران دې.دهغهٔ نه به ددې نګرانیٔ باره کښې دقیامت په ورځ تپوس کولې شی.اودغه شان ښځه هم نګرانه ده دخپل خاونددکور اود بچوچه دهغوی په باره کښې به ددې نه دقیامت په ورځ تپوس کولې شی.اودغه شان غلام هم نګران وی دخپل مالك دمال.ددغه غلام نه به ددغه مال په باره کښې دقیامت په ورځ تپوس کولې شی.غرض داچه نبی کریم ﷺ بیایوځل په اخرکښې اوفرمائیل چه اَلَاکُلُّکُم رَاعٍ وَکُلُّکُم مَسئُولٌ عَن رَعِیَّته .خبردارشې اې انسانانو! چه په تاسو کښې هرانسان محافظ اونګران دې اودهریونه به دهغه دماتحتوپه باره کښې دقیامت په ورځ تپوس کولې شی که چرې انسان دهیڅ څیزمالك نه وی.مثلاتهٔ ئې واده کړې دې چه دښځې نګران شی اونهٔ امام دې چه دخلقونګران وی.وغیره وغیره.غرض داکه دهیڅ څیز مالك نهٔ وی.نودخپل نفس خومالك دې په دې معنی چه په خپل نفس ورته مکمل اختیار حاصل دې.که غواړی نفس دې صحیح استعمال کړی اوجنتی دې جوړشی.اوکه اوغواړی نونفس دې هلاك کړی اوجهنمی دې جوړشی.

**لغوي اوصرفي تحقيق:** راع په معنی دنګران.دادضرب نه داسم فاعل صيغه ده رعيااورعاية اومرعی ئې مصادر راځی په معنی د څاروُو په څارګاه (ورشو) کښې څرول.حفاظت کول. ددې نه دې الرعی په معنی د وښو.جمع ئې ارعاء ده.ددې نه دې الرعية په معنی ① د څريدونکی څاروی ② ديوبادشاه ماتحت رعيت اوقوم.جمع ئې رعاياده.ددې نه دې الراعی په معنی د① ډيرمحبت کولووالا ② حاکم ③ شپونکې ④ دڅاروو حفاظت کوونکې.ددې څلورجمعې راځی.رعاة.رعيان.رعاء اورعاء.

**ترکيب:** الاحرف تنبيه.کل مضاف.کم مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مبتداء راع ئې خبر.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه معطوف عليه.واؤ عاطفه.کل مضاف.کم مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مبتداء.مسئول صيغه داسم مفعول.عن جار.رعيت مضاف.ه مضاف سره دمضاف اليه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په اسم مفعول پورې.اسم مفعول سره دخپل نائب فاعل نه(چه دهوضميردې) اوسره دمتعلق نه خبرد مبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه معطوف.معطوف عليه سره دخپل معطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۲۵﴾- أَحَبُّ الْبِلَادِ إِلَى اللّٰهِ مَسَاجِدُهَا وَأَبْغَضُ الْبِلَادِ إِلَى اللّٰهِ أَسْوَاقُهَا (مسلم)

[تخريج:ــ مشکواۃ: ص:٦٨، س:٤، عن ابی هريرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه:** د ښارونو دټولونه زيات خوښ ځايونه دالله په نزد جماتونه دی اود ښارونو دټولو نه زيات ناخوښه ځايونه ددې ښارونو بازارونه دی.

**تشريح:** دټولونه زيات خوښ ځايونه دالله تعالی په نزد جوماتونه دی ځکه چه په جوماتونو کښې انسان ګناه نۀ کوی بلکه نيکی کوی.اوپه ښارونوکښې په محلوکښې دټولونه زيات ناخوښه ځايونه بازارونه دی ځکه چه په بازارکښې قسماقسم ګناهونه کيږی.دادځايونوپه اعتبارسره دی چه جوماتونه دالله تعالی خوښ ځايونه دی،اوبازارونه دالله تعالی ناخوښه ځايونه دی اودغه شان جوماتونه درحمت اوفرشتو ځايونه دی او بازارونه دغصې اودشيطان ځايونه دی.

**لغوی او صرفی تحقيق:** البلادجمع دبلد اودبلدة ده.اوبلدان ئې هم جمع راځی معنی ئې داده چه کوم ځائې آبادوی اوکه غيرآباد.دادباب دنصر،نصر،سمع اوکرم نه استعمال دې په معنی ديو ځائې کښې اوسيدل.کندذهن کيدل.ددې نه دې بليداومبلودپه معنی دبې وقوف سره مساجدجمع دمسجداوسيدلوسره.کم ذهن کيدل.ددې نه دې بليداومبلودپه معنی دبې وقوف دبې وقوف سره.مساجدجمع دمَسجَداودمَسجِد ده.په معنی دسجدې د ځائې سره .دعبادت ځائې ياد ساتئ چه سيبويه په مسجداومَسجَد کښې فرق ذکرکړې دې.چه مَسجد دهغه کورنوم دې چه هغه دفرضواداکولودپاره جوړشی.اګرکه په هغې کښې سجده اوشی اوکه نه شی،اومسجِدپه فتحې دجيم سره په معنی دسجدې د ځائې دې.دادنصر دباب نه استعمال

شوې دې.اوددې مصدرسجود راځي.ډیرې عاجزئ سره ټیټیدل په عبادت کښې تندی اوبوزه په زمکه ایښودل.مسجد دقیاس نه خلاف دظرف صیغه ده.ددې نه دې السجادة والمسجدة په معنی دجاې نماز.مصلی.ابغض داسم تفضیل صیغه ده .دباب نصرسمع اوکرم نه.ددې مصدربغاضة راځي.معنی ئې ① دشمني کول ② نفرت کول.ددې نه دې البغض په معنی د دشمنئ اونفرت سره.اسواق جمع دسُوق ده په معنی دبازار.دالفظ دسوق اکثرمؤنث استعمالیږی.لیکن کله کله مذکرهم استعمالیږی.دادباب دنصر اوسمع نه مستعمل دې. سَوقًا وسِيَاقًا وسِيَاقَةً ومَسَاقًا ئې هم مصادر راځي.معنی ئې داده چه څاروی دروستونه شړل.ددې نه دې السَاق په معنی دپنډې سره مؤنث استعمالیږی.ددې جمع سُوق وسِيقَانٌ واَسوُقٌ راځي.

**نکته**۞ لفظ دسوق جمع.هم دې اومفردهم.دساق جمع ده په معنی دپنډئ سره.اود اسواق مفرد دې په معنی دډیرو بازارونوسره.

**ترکیب**۞احب اسم تفضیل مضاف.البلاد مضاف الیه.الی جار.لفظ الله ئې مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په احب اسم تفضیل پورې.احب سره دخپل مضاف الیه اوسره دمتعلق نه مبتداء.مساجد مضاف.ها مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه خبردمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه.واؤحرف عاطفه.ابغض اسم تفضیل مضاف. البلاد ئې مضاف الیه.الی جار.لفظ الله ئې مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه ابغض پورې. ابغض سره دخپل مضاف الیه نه اوسره دمتعلق نه مبتداء.اسواق مضاف.ها .مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه خبردمبتداء مبتداء سره دخپل خبرنه جمله اسمیه خبرمعطوف. معطوف علیه سره دخپل معطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۲۲﴾- اَلْوَحْدَةُ خَيْرٌ مِّنْ جَلِيْسِ السُّوْءِ وَالْجَلِيْسُ الصَّالِحُ خَيْرٌ مِّنَ الْوَحْدَةِ

[تخریج:ــ مشكواة: ص:٤١٤، س:٢٢، عن عمران بن حطان مرفوعًا]

**ترجمه**۞ څانله والې ډیرغوره دې د بدملګری نه،اونیك ملګرې زیات غوَره دې دیواځې والی نه.

**تشریح**۞ ددې حدیث شان وروددادې چه عمران راوی فرمائې چه زۀ ابوذرغفاری رضی الله عنه ته لاړم د(هغه نوم جندب دې) نوماهغه په جومات کښې اولیدلو.په جومات کښې ئې تورکمبل اغوستلې څانله ناست وو.ماورته وئیل اې ابوذره.څۀ خبره ده؟چه څانله ناست ئې؟ نو ابوذر غفاری رضی الله عنه اوفرمائیل چه ماد نبی کریم ﷺ نه دا اوریدلی دی چه څانله والې بهتردی دبد ملګری نه.اونیك ملګرې بهتروی دڅانله والی نه.اوورانده ئې هم دوه جملې فرمائیلی دی چه دهغې بیان متصل په تفصیل سره را روان دې.حدیث نمبر۶۸ کښې) دادابوذرغفاری کامل عشق وو.هروخت به ئې په حدیث باندې عمل کولو.چه نیك مجلس ورته ملاؤنۀ شو نوڅانله کیناستوڅکه چه یواځې والې بهتروی دبدملګری نه څکه چه په بده ملګرتیا کښې کنځلې

اوفساداوغیبتونه اوقسماقسم ګناهونه کیږی.اونیکهٔ ملګرتیادځانله والی نه بهتره وی ځکه چه په یواځی والی کښې کله انسان په غلطوخیالاتوکښې مبتلاشی.بیاپه هغې باندې دعمل کوشش کوی اوپه نیك مجلس کښې انسان الله تعالی ته متوجه وی اود نیکانو برکت وی.

**فائده۞** دنیك مجلس ډیرې فائدې وی په قرآن مجید کښې راځی چه:﴿ إِنَّ ٱلصَّلَوٰةَ تَنْهَىٰ عَنِ ٱلْفَحْشَآءِ وَٱلْمُنكَرِ ﴾ ددې په تفسیرکښې چه مونځ دبدوکارونونه سرې منع کوی بعضومفسرینولیکلی دی.چه مونځ دګناهونونه سړې ځکه منع کوی چه مونځ په اصل کښې دجمعې سره دې.اوپه جمع کښې نیکان خلق هم وی.نودنیکانوخلقودصحبت دوجې نه مونځ قبلیږی هم.اودګناهونونه سړې پرې هم منع کیږی.

**لغوی او صرفی تحقیق۞** الوحدة په معنی دیواځې والی سره.جمع ئې وحدات ده.یوکیدل او یواځې کیدل.ددې نه دې وحدات ثمانیة په منطق کښې.چه دتناقض دپاره د اتو څیزونو یوکیدل شرط دی.جلیس په معنی د همنشین،ددې جمع جلسَاء او جُلاس راځی.ددې نه دې المجلس په معنی د ① ناستې د ځائې ② ناستې والا ③ کچهرئ ④ عدالت.السوء مصدر دې دنصر دباب نه.سواء اوسوءا اومساء اوسواءة ئې هم مصدرراځی.په معنی د برابرکیدلو سره.ددې نه دې السیئة په معنی دبدئ اوخطاکارئ سره.ددې نه دې.سوءة.په معنی دبې حیایئ سره.الصالح داداسم فاعل صیغه ده دباب دکرم،نصراوفتح نه په معنی د① صحیح ② تیك ③ نیك ④ خپلوذمه وارولره پوره کونکی سره.صلاحا اوصلوحا اوصلاحیة ئې مصادرراځی.په معنی دصحیح کیدلوسره.ددې نه دې الصلح په معنی دخوشحالئ اود رضامندئ سره.اواصطلاح په معنی دیوقوم یاډلې دیولفظ یادیوکلمې په معنی باندې اتفاق کول.کوم چه داصل معنی نه علاوه وی.جمع ئې اصطلاحات راځی.داصطلاح اصطلاحی تعریفونه ډیردی.په شامی کښې دادی.اتفاق طائفة مخصوصة علی اخراج لفظ من معناه ...الخ اوددې نه علاوه پنځه تعریفونه په کتاب التعریفات صفحه۱۲ باندې لیکلی دی.

**ترکیب۞** الوحدة مبتداء خیرصیغه داسم تفضیل،من جار،جلیس مضاف،السوئې مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په اسم تفضیل پورې.اسم تفضیل سره دخپل متعلق نه خبر،مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبردمعطوف علیه،واؤ عاطفه،الجلیس موصوف،الصالح ئې صفت.موصوف سره دصفت نه مبتداء.خیر اسم تفضیل.من جار.الوحدة مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په اسم تفضیل پورې.اسم تفضیل سره دخپل متعلق نه خبر،مبتداء سره دخپل خبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف. معطوف علیه سره دخپل معطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۲۷﴾- وَاِمْلَاءُ الْخَیْرِ خَیْرٌ مِّنَ السُّکُوْتِ وَالسُّکُوْتُ خَیْرٌ مِّنْ اِمْلَاءِ الشَّرِّ(بیهقی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۱۴، س:۲۵، عن عمران بن حطان مرفوعًا]

**ترجمه**۞ اوښهٔ خبره په بل لیکل غوره دی دخاموش اوسیدلونه،او خاموش اوسیدل غوره دی د بدې خبرې په بل د لیکلونه.

**تشریح**۞ دخاموشه اوسیدلونه دابهتردی چه سړې څهٔ دخیرخبره اوکړی.یائې بل ته اووائې اوهغه ئې اولیکی.په دې کښې دوخت خرابول نهٔ راځی.اوهم ثواب ثواب دې.څومره الفاظ چه په بل اولیکی هغومره به ثواب وی.اوکه بده خبره په چالیکل وی.نوددې نه بهتره داده چه چپ پاتې شی.ددې دواړوجملوواقعه هم هغه وخت وه چه کومه ددې نه دوړاندې د دوُو جملو وه(یعنی واقعه دحضرت ابوذر﷛) ځکه چه داځلور واړه جملې په یوه موقع کښې فرمائیلې شوې وی.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ املاء دباب افعال نه مصدر دې په معنی دلیکلوپه بل چااملالاً اواملاءً ئې مصدرونه راځی.ددې مجرد دباب دسمع نه اونصرنه استعمال دې.اوملـلا اوملالا اوملة ئې مصادردی.معنی ئې داده ① زړه تنګیدل.ددې اصلی حروف م،ل،دی.همزه پکښې نشته دې.السکوت مصدر دې دباب دنصرنه.سکتا وسکاتا اوساکوتة ئې هم مصدر راځی. ددې مادې یوه معنی چپ کیدل دی.اوددې دویمه معنی مړکیدل دی.ددې نه دې سَکتَه (دایوه مشهوره بیماری ده) اوسکته (دماشوم وغیره دچپ کولونظم اللّٰهُ ووئیل) اوسَکِت (په معنی دکمو خبرو کولووالا) الشردامصدر دې.دنصر.ضرب اوسمع نه شرارة اوشرائې هم مصادرراځی.ددې نه دې الشرة په معنی د① دبدئ ② تیزی اوچالاکئ ③ غصه ④ کموالې د وزن.ددې نه دې الشرپه معنی دمکروه.

**ترکیب**۞ واواستینافیه،املاء مضاف،الخیرمضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء، خیرصیغه داسم تفضیل په دې کښې ضمیردهودې هغه ئې فاعل.من جار،السکوت مجرور جارسره دمجرورنه متعلق په اسم تفضیل پورې.اسم تفضیل سره دخپل فاعله اومتعلقه خبر دمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه.واوعاطفه.السکوت مبتداء. خیر اسم تفضیل هوضمیرئې فاعل.من جار.املاء مضاف،الشرمضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجرورجارسره دمجرورنه متعلق په اسم تفضیل پورې.اسم تفضیل سره دخپل فاعله اومتعلقه خبردمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دخپل معطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۲۸﴾- تُحْفَةُ الْمُؤْمِنِ الْمَوْتُ (بیهقی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۱٤٠، س:۷، عن عبدالله بن عمرو مرفوعًا]

**ترجمه**۞ دمسلمان تحفه مرګ دې.

**تشریح**۞ دمسلمان تحفه مرګ دې په داشان چه تحفه دهرهغه څیزنوم دې کوم چه په طور دمهربانئ ورکړې شی.اومرګ هم مسلمان ته په طوردمهربانئ ورکولې شی،ځکه چه مرګ

دجنت ددروازونه يوه دروازه ده.که چرې مرګ رانۀ شي نوجنت ته رسيدل نشي کيدلې نوپه دې وجه مؤمن ته دجنت دورننوتلونه وړاندې يوه تحفه ورکولې شي لکه دويزې په شان کله چه مسلمان دجنت ويزه حاصله کړي.نوبياجنت ته تللې شي.بياکه چرې نيک مسلمان وي. نودهغۀ دمرګ مثال داسې دې لکه څنګه چه د اوړونه وينيته ويستلې شي.اودګنهګارمثال داسې دې لکه چه کانټه دارتارپه څۀ شي کښې انختلې وي اوراښکلې شي.په هرحال دمرګ په وخت کښې انسان ضرورلږ خوزولې شي.بياکه چرې نيک وي نوهم مزې مزې دي.اوکه چرې الله دې نکړي ګناهونه ئې زيات وي نودسختونيولوخطره ې ده.په يوحديث قدسي کښې الله تعالى داسې فرمائي چه ماپه خپلوبندګانوباندې مرګ لازم کړې دې اوکه داسې نۀ وې نوزه خپلومحبوبانوته دومره قدرې تکليف ورکول هم نۀ خوښوم.زمارحمت زمادغصې نه وړاندې شوې دې.ددې وجې نه دمرګ نه ويره نۀ ده پکار ،هروخت استغفارکول پکاردي. اوکلمه طيبه وئيل پکاردي.اې الله !په دې وخت کښې چه څومره خلق په دنياکښې دي دهغوی ټولوخاتمه په ايمان باندې اوکړې (امين ثم امين)

**لغوی او صرفی تحقيق**۞ تحفه په جزم دفاء سره اوپه فتحه سره په معنی د① هدئې اوډالۍ سره ② قيمتي څيز③ هرهغه څيزچه په طريقه دمهربانۍ ورکړې شي.ددې جمع تحف راځي. دالموت تحقيق په حديث ۲۵کښې تيرشوېدې.

**ترکيب**۞ تحفه مضاف،المؤمن ئې مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مبتداء الموت ئې خبرشو.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۲۹﴾- **يَدُاللّٰهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ** (ترمذی)

**[تخريج:ـ مشکواة: ص: ۳۰، س:۱۹، عن ابن عمر رضی اللہ عنہ مرفوعًا]**

**ترجمه**۞ دالله تعالى لاس په جماعت باندې دې.

**تشريح**۞ پوره حديث دادې چه نبی کريم ﷺ فرمائی چه الله تعالى به زماامت په ګمراهۍ نۀ جمع کوي.اودالله تعالى لاس(يعنی امداد) جماعت سره دې.اوڅوك چه د جماعت نه جداوی هغه به جداوي په جهنم کښې (انتهى)

ددې حديث مطلب دادې چه دَنبی کريم ﷺ امت په ګمراهۍ باندې نشي جمع کيدلې.د ټولو مسئلو ثابتول په څلورو اصولوسره وي : ① قرآن مجيد ② سنت ③ اجماع ④ قياس.داحديث هم يودليل دې داجماع په حجت باندې.چه څنګه دقرآن اوسنت نه مسائل ثابتيږي.دغه شان اجماع هم حجت دې په دې سره هم مسائل ثابتيږي.دالله تعالى امداد او غلبه دهغه جماعت سره وي چه ددين حفاظت کوي.چه هغوی لره الله تعالى دګمراهۍ اوغلطۍ کښې دپريوتلونه ساتي.کوم برکت چه په جمات کښې وي هغه په يواځې کس کښې نۀ وي،ددې

وجې نه ددې حديث په آخر کښې دا الفاظ دی چه:مَن شَذَّ شُذَّ فِي النَّار"چه څوك دجماعت نه جداشو(اعتقاداوی یاقولا یافعلا) هغه به په جهنم کښې جداوی.یعنی خپل جنتيانوملګرونه به جداشی.اوپه جهنم کښې به واچولې شی.دې وجې نه دعاکښې دجمعې صيغې زياتې استعماليږی.داحديث دابنائې چه ټول امت په ګمراهۍ باندې نشی جمع کيدلې.ليکن کوم چه دحق نه اعراض کوی نودهغه به باطله فرقه جوړيږی.

**لغوی او صرفی تحقيق**۞ ديدتحقيق په حديث نمبر ۱۵ کښې تيرشوې دې.الجماعة په معنی دسړو ډله.ددې جمع جماعات راځی.دادفتح دباب نه استعمال دې په معنی دجمع کولو او يوځائې کولو.ددې نه دې الجمعة په معنی دهفتې هفتې.اوجامع په معنی دجامع مسجد ،الکلام الجامع: هغه خبره چه هغې الفاظ کم وی ليکن مطلب ئې زيات وی.اليوم الجامع دجُمعې ورځ.قِدرٌ جَامِعٌ ديګ.ابوجامع د دسترخوان کُنيت دې.دجامع جمع جوامع ده.

**ترکيب**۞ يدمضاف،لفظ الله ئې مضاف اليه،مضاف سره دمضاف اليه نه مبتداء علی جار، الجماعة مجرور،جار سره دمجرورنه متعلق په ثابتة پورې،ثابتة اسم فاعل،دې کښې ضمير دهِیَ دې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دفاعله اوسره دمتعلق نه شبه جمله خبر د مبتداء، مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۷۰﴾- كُلُّ كَلَامِ ابْنِ آدَمَ عَلَيْهِ لَا لَهُ إِلَّا أَمْرٌ بِمَعْرُوفٍ أَوْنَهْيٌ عَنْ مُنْكَرٍ أَوْذِكْرُ اللهِ

(ترمذی)[تخريج:_ مشکواة: ص:۱۹۸، س:۱۳، عن ام حبيبه رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ د انسان هره خبره په هغهٔ باندې (وَبال) دې.دهغهٔ دپاره نه دې ليکن دښهٔ خبرې حکم کول يا د بدۍ نه منع کول ياد الله تعالی ذکرکول.

**تشريح**۞ دانسان هره خبره دهغهٔ دپاره نقصاني ده.فائده مند نهٔ ده.ليکن درې قسمه خبرې دی کومې چه فائده ورکونکی دی نقصاني نهٔ دی.① دښوخبروحکم کول. ② دبدوخبرونه منع کول. ③ دالله تعالی ذکرکول.ددې وجې نه بغيردضرورت نه ددې دريوقسموخبرونه علاوه خبرې کول ښهٔ نهٔ دی.که چرې فضول خبرې کيږی نودهغې به ګناه وی.اوکه ښې خبرې وی نودهغې به ثواب وی.حديث شريف دمشکوة صفحه ۱۸۶ س ۱۲) کښې راځی.چه دالله تعالی دکلام فضيلت په ټولوکلامونوداسې دې لکه دالله تعالی ﷻ فضيلت په ټول مخلوق باندې (انتهی) ددې وجې نه څومره چه زيات کيدلې شی نودقرآن کريم تلاوت کول پکاردی.اوقرآن کريم لوستل دريووانړوقسموخبروته شامل دې.په قرآن کريم کښې امربالمعروف هم دې. اونهی عن المنکر هم دې.اودالله تعالی ذکرهم دې داسلام کمال حاصلولودپاره دهرفضول خبرې نه بچ کيدل پکاردی.

## د حضرت عبدالله بن مبارك او د بوډۍ قصه

حضرت عبدالله بن مبارك فرمائي چه زۀ دبيت الله شريف دحج اودروضه اقدس ﷺ دزيارت دپاره اووتلم.نوماته په لاره كښې يوښيادم ملاؤشوچه ماهغه اوپيژندلونوهغه يوه بوډۍ وه چه دهغې په بدن دوړئ قميص اودوړئ لوپټه وه.ماهغې ته اووئيل.

السلام عليكم ورحمة الله وبركاته! هغې جواب راكړو﴿ سَلَٰمٌ قَوۡلٗا مِّن رَّبّٖ رَّحِيمٖ ﴾ ما اووئيل الله تعالى دې په تارحم اوكړی ته دلته څۀ كوئ؟هغې جواب راكړو﴿ مَن يُضۡلِلِ ٱللَّهُ فَلَا هَادِيَ لَهُۥۚ ﴾ زۀ پوهه شوم چه لاره تركې نه خطاشوې ده نوماورته اووئيل چه ته دكوم ځائې اراده لرې؟هغې اووئيل چه ﴿ سُبۡحَٰنَ ٱلَّذِيٓ أَسۡرَىٰ بِعَبۡدِهِۦ لَيۡلٗا مِّنَ ٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡحَرَامِ إِلَى ٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡأَقۡصَا ﴾زۀ پوهه شوم چه حج ئې كړې دې اومسجداقصى ته تلل غواړی.ماورته اووئيل چه ته دلته دكوم وخت نه ئې؟هغې اووئيل چه ثلاث ليال سويا بياماااووئيل چه تاسره دخوراك څۀ نشته،ته څۀ شې خورې؟ هغې چه﴿ هُوَ يُطۡعِمُنِي وَيَسۡقِينِ ﴾ بيا مااووئيل چه ته اودس په څۀ كوې؟ هغې اووئيل ﴿ فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدٗا طَيِّبٗا ﴾ بيا ورته ما اووئيل چه ماسره خوراك دې آياته به ئې اوخورې؟هغې اووئيل ﴿ ثُمَّ أَتِمُّواْ ٱلصِّيَامَ إِلَى ٱلَّيۡلِ ﴾ بيا ما اووئيل چه داخو د روژې مياشت نۀ ده.هغې اووئيل ﴿ وَمَن تَطَوَّعَ خَيۡرٗا فَإِنَّ ٱللَّهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ ﴾ بيا ما اووئيل چه په سفر كښې زمونږدپاره خوراك څكاك جائزكړې شوې دې.هغې اووئيل ﴿ وَأَن تَصُومُواْ خَيۡرٞ لَّكُمۡ إِن كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ﴾ بيا ما اووئيل چه ته داسې خبرې ولې نۀ كوې لكه څنګه چه ئې زۀ كوم. نووې ئيل چه ﴿ مَّا يَلۡفِظُ مِن قَوۡلٍ إِلَّا لَدَيۡهِ رَقِيبٌ عَتِيدٞ ﴾ (يعنى دخلې نه څۀ خبره نۀ اوباسى مګردهغې په خواكښې (محفوظ) ساتلووالا تيار(موجود اوسيږی) بيامااووئيل چه ته په كومو خلقوكښې ئې؟هغې اووئيل﴿ وَلَا تَقۡفُ مَا لَيۡسَ لَكَ بِهِۦ عِلۡمٌۚ إِنَّ ٱلسَّمۡعَ وَٱلۡبَصَرَ وَٱلۡفُؤَادَ كُلُّ أُوْلَٰٓئِكَ كَانَ عَنۡهُ مَسۡـُٔولٗا ﴾ بيا مااووئيل چه مانه غلطى اوشوه معافى راته اوكړه نوهغې اووئيل ﴿ لَا تَثۡرِيبَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡيَوۡمَۖ يَغۡفِرُ ٱللَّهُ لَكُمۡ ﴾ (چه نن په تاڅه ملامتيا نشته دې) مااووئيل آياته خوشحاله ئې چه زۀ تاته په دې اوښۀ باندې سوره كړم اوته قافلې ته اورسيږې؟ نوهغې اووئيل ﴿ وَمَا تَفۡعَلُواْ مِنۡ خَيۡرٖ يَعۡلَمۡهُ ٱللَّهُ ﴾ ما خپله اوښه كينوله نوهغې اووئيل ﴿ قُل لِّلۡمُؤۡمِنِينَ يَغُضُّواْ مِنۡ أَبۡصَٰرِهِمۡ ﴾ نوماخپل نظربښكته كړوا وما اووئيل چه ته سوره شوه.كله چه هغې

دسوريدلواراده اوکړه نواوښې توپ اووهلواودهغې کېړې اوشليدلې نوهغې اووئيل چه ﴿ وَمَآ أَصَٰبَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتۡ أَيۡدِيكُمۡ ﴾ ماهغې ته اووئيل چه صبراوکړه زۀ دااوښه ترم.هغې اووئيل ﴿ فَفَهَّمۡنَٰهَا سُلَيۡمَٰنَ ﴾ نوما اوښه اوتړله ماووئيل چه سوره شه،کله چه هغه سوره شوه نووې وئيل ﴿سُبۡحَٰنَ ٱلَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُۥ مُقۡرِنِينَ ۝ وَإِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا لَمُنقَلِبُونَ ۝ ﴾ نو ما د اوښې واګې اونيولې چغې مې وهلې اوتيزروان شوم.نوهغې اووئيل﴿ وَٱقۡصِدۡ فِي مَشۡيِكَ وَٱغۡضُضۡ مِن صَوۡتِكَ ﴾ نوزۀ په مَزه شوم او شعرونه وئيل مې شروع کړل نو هغې اووئيل چه ﴿ فَٱقۡرَءُواْ مَا تَيَسَّرَ مِنَ ٱلۡقُرۡءَانِ ﴾ ماورته اووئيل چه تاته ډيرخير درکړې شوې دې نوهغې اووئيل ﴿ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّآ أُوْلُواْ ٱلۡأَلۡبَٰبِ ۝ ﴾ پس دې سره چه لږتلل زما شروع شول نوماهغې ته اووئيل چه ستا خاوندشته دې؟هغې اووئيل ﴿ لَا تَسۡـَٔلُواْ عَنۡ أَشۡيَآءَ إِن تُبۡدَ لَكُمۡ تَسُؤۡكُمۡ ﴾ نوزۀ چپ شوم تردې پورې چه مونږ قافلې ته اورسيدلوماووئيل چه داستاقافله ده ستاپه دوی کښې څوك دی؟هغې اووئيل ﴿ ٱلۡمَالُ وَٱلۡبَنُونَ زِينَةُ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا ﴾ نوزۀ پوهه شوم چه په دې قافله کښې ددې اولادشته ماووئيل چه په حج کښې دهغوی څۀ حالت دې.هغې اووئيل ﴿ وَعَلَٰمَٰتٖۚ وَبِٱلنَّجۡمِ هُمۡ يَهۡتَدُونَ ۝ ﴾ نوزۀ پوهه شوم چه په قافله کښې دهغې لاره خودونکی هم دې نوما دهغې په ملګرتيا کښې دکورونو او خيمو اراده اوکړه اوماووئيل چه دادې ستاسوخيمې اوکورونه نوستاپه دې کښې څوك دی؟هغې اووئيل چه﴿ وَٱتَّخَذَ ٱللَّهُ إِبۡرَٰهِيمَ خَلِيلٗا ۝ ﴾ ﴿ وَكَلَّمَ ٱللَّهُ مُوسَىٰ تَكۡلِيمٗا ۝ ﴾ ﴿ يَا يَحۡيَىٰ خُذِ الْكِتَابَ بِقُوَّةٍ ﴾ نوزۀ پوهه شوم چه ابراهيم ،موسی اويحی، ددې ځامن دی.نوماووئيل چه اې ابراهيمه،اې موسی اې يحی! نوهغوی مخامخ وو.ګويا چه هغوی سپوږمۍ وی.نو مونږ کيناستو نوهغې ښځې اووئيل﴿ فَٱبۡعَثُوٓاْ أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمۡ هَٰذِهِۦٓ إِلَى ٱلۡمَدِينَةِ فَلۡيَنظُرۡ أَيُّهَآ أَزۡكَىٰ طَعَامٗا فَلۡيَأۡتِكُم بِرِزۡقٖ مِّنۡهُ ﴾ چه (دعبدالله بن مبارك دپاره) خوراك راوړئ.نوماووئيل چه اوس په مابانديې ستاسوخوراك حرام دې ترهغې پورې چه تاسوماته ددې زنانه د داسې خبرورواقعه نۀ وی بيان کړې.نوهغه ځوانانواووئيل چه دازمونږه مورده.ددې څلويښت کاله شوی دی چه دې دقرآن وئيلونه سواهيڅ خبره نۀ ده کړې ددې ويرې نه چه غلطی به رانه اوشی اوخدائې پاك به خفه شی.نوحضرت عبدالله مبارك وائې چه ماووئيل.﴿ ذَٰلِكَ فَضۡلُ ٱللَّهِ يُؤۡتِيهِ مَن يَشَآءُۚ وَٱللَّهُ ذُو ٱلۡفَضۡلِ ٱلۡعَظِيمِ ۝ ﴾ ددې بودۍ نوم فِضّه وو.

**لغوي او صرفي تحقيق**۞ دکل تحقيق په حديث نمبر ٤١ کښې تيرشوې دې.کلام په معنی دخبرو،داد باب دضرب نه استعمال دې کَلمًا اوکَلْمَايې مصدردې په معنی دزخمی کولو سره.ددې نه دې کلمه په معنی دمفردلفظ.جمع ئې کلم اوکلمات ده.اوددې نه دې کلمة الله (دحضرت عيسى عليه السلام لقب دې) اوکليم الله دحضرت موسى عليه السلام لقب دې.اوددې نه دې الکلم په معنی دزخم.جمع ئې کلوم اوکِلاَم راځي.اوددې نه دې کَلام په معنی دسختې زمکې.ابن په معنی دځوې دادنصراوضرب دباب نه استعمال دې.اَبنًا ئې مصدر دې.په معنی دعيب لګولو.ددې نه دې آبن په معنی داوچ خوراك.

**د اِبن تحقيق**۞ ښه يادساتئ! چه ابن کله دعلمينو متناسلينو مينځ کښې راشي نودهغه همزه به غورزولې شي يعنې چه دنسبي رشتې دوه نومونه وي.مثلا پلارځوې وی لکه زيدبن ثابت. په داسې موقعه دابن همزه وصلي غورځولې شي.اوکه علمين نسبي نه وي مثلا ابن آوی دګيدړکنيت دې.دلته همزه باقي پاتې کيږي.دويم قانون دابن په باره کښې دادې که چرې دابن نه نوې کرښه شروع کيږي نوبيا لازمًا همزه ليکلې شي اګرچه د عَلَمين مُتَناسلَين په مينځ کښې وي.دريم قانون دادې چه کوم ځائې صرف کنيت ذکرکول وي نوهلته ضرور همزه ليکلې شي.اګرچه دسرنه کرښه نهٔ شروع کيږي.لکه ابن عمر رضي الله عنه چه دلته ضرورهمزه ليکلې شي.دآدم تحقيق په حديث نمبر ٦٢ کښې تيرشوې دې امرپه معنی دحکم.جمع ئې اَوَامِر ده اوامرپه معنی د① دکار ② واقعه.نوبيا ددې جمع اموردہ داکه چرې دباب دنصرنه راشي نوامرا اوآمرة او آمارًا مصادردي په معنی دحکم ورکولو.اوکه چرته دباب دسمع اوکرم نه مستعمل وي نوبيا مصادر دادي اَمَرًا وإِمرَةً وإِمَارًا په معنی ① اميرکيدل ② سردار کيدل ③ حاکم کيدل.هم ددې نه دې امارة په معنی دعلامت .جمع امارات ده.امرپه کسره سره په معنی ① دعجيب ② دعقل اوشرع نه خلاف کار.اواميرپه معنی ① دحکم ورکولووالا ② دقوم سردار ③ هغه سړې چه شريف الاصل وی ④ ګاونډی ⑤ هغه سړې چه دهغهٔ نه مشوره اوغوښتلې شي.اوالمؤتمر په معنی دکانفرس معروف په معنی ① دمشهور ② نيکی ③ رزق ④ ښيګړه.داکه چرې دباب دضرب نه مستعمل وی نوددې معنی پيژندل اودباب دنصر اوکرم نه ددې معنی اميرکيدل دی.ليکن دسمع نه ددې معنی ده خوشبوئې پرېښودل دضرب نه ددې مصدر عرفة راځي.اود نصراوکرم نه ددې مصدرعرافة راځي اودسمع نه عَرفًا مصدر راځي.ددينه نه دې العرف په معنی دبوئې سره.اکثرددې استعمال په خوشبوئې کښې کيږي. اودالمعرفة معنی حقيقت بياموندل.اواعراف دجنت اوجهنم مينځ کښې يو ځائې دې.او العرف په معنی ① دبخشش ② عطيه ③ اقرار،او اَلْمَعرِفَةُ په معنی د ايال (داس دځټ د ويښتو راټوکيدو ځائې)،جمع ئې معارف راځي.نهي په معنی دممانعت دادباب نصراوضرب

نه مستعمل دي په معنى دمنع كيدهم ددې نه دي انهاء په معنى د څيز آخراوغايه.اوالنهاء په معنى د اوبو جوړ والې.اوالنهى په معنى دشيشې.دالنهى معنى عقلونه.جمع ئې ده النهيه اوالنهى اوالنهى په معنى دتالاب،ددې جمع انه،انهاء نهاء راځى.منكرپه معنى دهغه قول يافعل چه دالله تعالى دمرضئ خلاف وى.جمع ئې منكرات اومناكرده دادسمع اوكرم دباب نه مستعمل دې.نكرا اونكرا اونكارة ئې مصادردى په معنى دځه شى نه ناخبره پاتې كيدل. ددې نه دې النكر① ډيرخراب كار ② چالاكى ③ تيزفهمى.ددې نه دې منكراونكيردقبردوه فرښتې.ذكرپه معنى① شهرت ② تعريف ③ عزت ④ مونځ ⑤دعا دادنصر دباب نه مستعمل دې.ذكراً وتذكاراً ئې مصدردې په معنى دخدائې پاكﷻ پاكى اولوئې بيانول هم ددې نه دې الذكرپه معنى دسړى اوذكرپه معنى دياد داشت اوالذكرى په معنى د يادؤلو، دژبې ذكر ، يا د زړه.او المذكر په معنى د ① نر ② راويستلې شوې توره ③ د ويرې لاره ④ خطرناكه ورځ.مذكرپه معنى دنصيحت كونكى سره.

**تركيب**۞ كل مضاف،كلام مضاف اليه مضاف ابن مضاف اليه مضاف ادم مضاف اليه مضاف، مضاف سره دخپل دريومضاف اليه نه مبتداء.على جار،ه مجرور متعلق شو دواقع سره. واقع اسم فاعل سره دخپل فاعل (هوضمير) اوسره دمتعلق نه معطوف عليه.لاعاطفه ل جاره.ه مجرور دواړه متعلق شو.ثابت پورې معطوف،معطوف عليه دخپل معطوف سره مستثنى منه.الاحرف استثناء،امرمصدر.ب جار،معروف مجرور دواړه متعلق شودمصدر سره مصدردخپل متعلق سره معطوف عليه.او عاطفه نهى مصدرعن جارمنكر مجرور.جار مجرور متعلق شود نهى سره معطوف اول.اوعاطفه ذكرمضاف،لفظ الله مضاف اليه،مضاف سره دمضاف اليه نه معطوف ثانى. معطوف عليه سره ددواړومعطوفينومستثنى،مستثنى منه سره دمستثنى نه خبر،مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۷۱﴾- مَثَلُ الَّذِي يَذْكُرُ رَبَّهُ وَالَّذِي لَا يَذْكُرُ رَبَّهُ مَثَلُ الْحَيِّ وَالْمَيِّتِ

(بخارى ومسلم)[ تخريج:ــ مشكوٰة: ص:۱۹۶، س:۲۱، عن ابى موسىؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ مثال دهغه كس چه هغه خپل رب يادوى او دهغهٔ كس چه هغه نه يادوى د ژوندى اود مړى په شان دې.

**تشريح**۞ لكه څنگه چه ژوندې خپل ظاهرد ژوندپه رڼړا ښائسته كوى .اوپه هغې كښې دخپلې خوښې تصرف كوى اوخپل باطن دعلم په رڼړا ښائسته كوى دغه شان ذاكرهم خپل ظاهر دعبادت په رڼړا ښائسته كوى اوخپل باطن دمعرفت په نورښائسته كوى اوڅوك چه ذاكرنه دې هغه خپل ظاهر آزاد پريږدى اوخپل باطن خرابوى.ددې وجې نه ذكر كونكې د ژوندى په شان شو،ځكه چه ژوندې خپل ظاهر اوباطن په ژونداوعلم سره ښائسته كوى دغه شان

ذاکرته دالله تعالى دعبادت موقعه ملاويږي اودالله تعالى معرفت حاصلوي په خلاف دهغه سړي چه ذاکرنهٔ دي هغه د مړي په شان دي ځکه چه مړي په خپل ظاهر اوباطن کښي هيڅ نشي کولي.ددي وجي نه نهٔ ذکرکونکي هم خپل ظاهر اوباطن نهٔ شي ښائسته کولي.په دي حديث کښي دا اشاره هم موجود ده چه دالله تعالى په ذکرهميش والي دادحقيقي ژوندسبب دي.لهذاهميشه ذکرکونکي دژوندي په شان دي اونهٔ ذکرکونکي دمړي په شان دي.په بل حديث کښي دي.لايزال لسانك رطبا بذكرالله" اي مخاطبه ستاژبه هميشه دالله تعالى په ياد لونده پکارده.داد قيامته پورې مسلمانانوته خطاب دي.دذکردوه درجي دي.اول واجب دويم مستحب.واجب ذکردادي چه دټولو فرائضو اود واجباتو اوسنتوپابندي اوکړي او دټولو حرامو کارونو او مکروه تحريمي کارونونه ځان بچ کړي.اوغيرواجب يعني مستحب ذکر دادي چه په تلو راتلو، ناسته ولاړه کښي سبحان الله وغيره وائي.

ذکردالله تعالى په يادکښي مشغول کيدوته وائي اول ته ذکرقلبي وائي اودويم ته ذکرلساني وائي.دذکرتعريف دادي.الله تعالى يادول،کوم سړي چه دفرض،واجب اوسنت پابند وي هغه ته به الله يادوي اويادوي به ئي.دغه شان چه کوم سړي دحرام يامکروه تحريمي قول اوفعل نه بچ کيږي.هغه ته به الله تعالى يادوي نودحرامودکولونه به بچ کيږي.ګني نوهغه کوم ځائي بچ کيدلي شي.لهذا دذکر دواړه درجي صحيح دي.الله تعالى دي مونږ دواړو درجو ذکر کوټنکي جوړکړي.آمين ثم آمين يارب العالمين.

**لغوی او صرفی تحقیق**❁ مَثَل په معنى د① شك ② مثال ③ صفت ④ خبره ⑤ قصه ⑥ عبرت ⑦ دليل ⑧ مشابهت.هم په دي معني لفظ د مِثل دي.ددي دواړوجمع امثال ده.دادباب دنصر،ضرب اوکرم نه مستعمل دي.مُثولاً ومَثولاً ومَثلاً ومُثلةً ئي مصادردي په معنى د يوشان کيدوسره.ددينه المثال دي په معنى① مقدار② نمونه ③ قصاص ④ بستره ⑤ ځيز. جمع امثلة اومثل راځي.اوالتمثال په معنى د① تصوير ② بت ③ مشابهت جمع ئي تماثيل په معنى دحکم منلوسره حيي په معنى دژوندي.دادباب سمع نه مستعمل دي. حَيِيَ،يَحْيَ،حَيَاةً ژوندي اوسيدل،ددينه نه ده الحيا په معنى ① دشرم اوحيا② دځهٔ ځيز نه بنديدل اود ملامتيا د ويرې نه ځهٔ ځيز پريښودل ③ باران ④ سرسبزي (تازګی) او حيٌّ په معنى د① محله ② وړه قبيله جمع ئي احياء راځي اوالحي اوالحئ شرميدونکي اوالحيوان د ساه والا،جمع ئي حيوانات راځي.اوالمحيا مخ.دحيادوه قسمه دي.① نفساني ② ايماني.حيا نفساني هغه ده چه هغه الله تعالى په هرنفس کښي پيداکړي ده.مثلا دخلقومخکښي جماع نه کوي.دلته حيانفساني کوټنکي وي.دويم قسم حياايماني ده اوهغه داده چه مسلمان دالله تعالى د ويرې نه دګناه دکارنه منع شي.دحيامعنى اوقسمونه دکتاب

التعریفات په ۴۲ س۱۹ باندې لیکلې شوی دی.المیت مړګ ته نزدې اوالمیت په وزن دبیت مړې،والمیت معنی هم مړی کښې مستعمل ده.دا دباب دنصرنه مستعمل دې.موتامصدردې په معنی د① مړکیدوسره ② داور مړکیدل یاوژل ③ دجامو زړیدل،ددینه دې الموت مړکیدل او الموات هغه زمکه چه دهغې څوك مالك نۀ وی.

**ترکیب۞** مثل مضاف الذی موصول یذکرفعل هو فاعل رب مضاف ه مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول موصول سره دصلې نه معطوف علیه واوٴعاطفه الذی موصول لایذکرفعل هوفاعل فعل سره دفاعل نه جمله خبریه صله دموصول شوه.موصول سره دصلې نه معطوف.معطوف سره دمعطوف علیه نه مضاف الیه شودمثل.مثل مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء،مثل مضاف الحی معطوف علیه واو عاطفه المیت معطوف.معطوف سره دمعطوف علیه نه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه خبردمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۷۲﴾- مَثَلُ الْعِلْمِ لَایُنْتَفَعُ بِہٖ کَمَثَلِ کَنْزٍلَایُنْفَقُ مِنْهُ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ(احمد ودارمی)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۳۸، س:۱۳، عن ابی هریرۃؓ مرفوعًا]

**ترجمه۞** دهغه علم مثال چه دهغې نه فائده نشی اخستلې دهغه خزانې په شان دې کومه چه دالله په لارکښې نه شی خرچ کولې.

**تشریح۞** لکه څنګه چه دانسان سره مال وی اوهغه دالله تعالی په لارکښې نه خرچ کوی څنګه د سزا مستحق دې چه په اخرت کښې د زکوۃ نۀ ورکونکی ته په غاړه کښې دمارپه شکل کښې دامال اچولې شی،هم دغه شان چه سړې عالم وی لیکن دخپل علم نه فائده نۀ اخلی یعنی خپل ځان دپاره په علم باندې عمل کولوسره جنت نۀ حاصلوی.دې هم دهغه مالدارپه شان دې چه خرچ نه کوی.یعنی دسزامستحق دې په قرآن اوحدیث کښې دعالمانو درجه ډیره لویه شمارکړې شوې ده لیکن دهغۀ علماوٴچه باعمل وی اوچه کوم بې عمل وی هغوی ته ډیرخراب مخلوق ونیلې شوې دې.کوم عالم ه چه عمل نه کوی دیومکروه تحریمی درجې کارهم چه کوی یابدعتی وی هغه عالم نۀ دې خَردې جاهل دې.څکه چه قرآن کریم مثال بیان کړې دې.﴿ مَثَلُ ٱلَّذِينَ حُمِّلُواْ ٱلتَّوۡرَىٰةَ ثُمَّ لَمۡ يَحۡمِلُوهَا كَمَثَلِ ٱلۡحِمَارِ يَحۡمِلُ أَسۡفَارَۢاۚ ﴾ یعنی چه عالم دې اوبې عمله دې هم دغه شان دې لکه خرچه دخرډیردعلم کتابونه بارکړی وی اوګرځی لیکن په خپله جاهل دی.دغه شان بعضې کسانوعلم حاصل کړې وی اوګرځی لیکن دعمل نۀ کولوپه وجه بالکل جاهل وی په علم باندې عمل نۀ کول ډیرلوئې جرم دې.الله تعالی دې مونږ عالمان باعمله جوړکړی.(امین ثم امین)

**لغوی او صرفی تحقیق** علم په معنی ① یوځیزحقیقت ته رسیدل ② یقین اومعرفت جمع ئې علوم ده.ددې تحقیق هم په العلمین کښې تیرشوې دې دباقی الفاظوتحقیق تفصیلا تیرشوې دې.ینتفع به دادباب افتعال نه دمضارع مجهول واحدغائب صیغه ده مصدرئې انتفاع دې په معنی دنفع اخستلوسره.داپه مجرودوکښې دباب دفتح نه مستعمل دې.نفعا یې مصدر دې په معنی دفائدې ورکولو،ددې نه دې اَلنفع واَلمَنفَعَة په معنی دفائدې،د منفعه جمع منافع راځی.او اَلنفعَةُ په معنی د① یوځل فائده ② یوقسم همسا چه زمکه باندې دفائدې دپاره وهلې شی.جمع ئې نفعات ده.اوالنفعة دخرمن مزې چه دتوشه دان په طرفونوباندې لګیدلې وی.کنز په معنی ① په زمکه کښې دښخ شوی مال ② هغه ځیز چه په هغه کښې مال محفوظ کړې شی لکه صندوق،خزانه وغیره ③ هر ذخیره کړې شوې ښه ځیز،جمع ئې کنوز راځی.دا دضرب دباب نه مستعمل دې.کنزاً ئې مصدردې په معنی دمال جمع کولو سره. ددینه کنیز هم دې په معنی دکجوروسره کومې چه دیخنۍ موسم دپاره جمع کولې شی.

**ترکیب** مثل مضاف علم موصوف لاینتفع فعل مجهول هوضمیرنائب فاعل ب جاره مجرور جارسره دمجرورنه متعلق شوبه فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل جمله فعلیه خبریه صفت دموصوف موصوف سره دصفت نه مضاف الیه.مثل مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء.ك جار مثل مضاف کنز موصوف،لاینفق فعل مجهول په دې کښې هو ضمیرنائب فاعل من جاره مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق اول شودفعل دپاره فی جارسبیل مضاف لفظ الله مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق ثانی شو دفعل، فعل سره دنائب فاعل اومتعلقینونه صفت دموصوف.موصوف دخپل صفت سره مضاف الیه شو دمثل مضاف دپاره،مثل مضاف سره دخپل مضاف الیه نه مجروردجار،جارسره دخپل مجرورنه متعلق شودثابت محذوف پورې،ثابت صیغه داسم فاعل دخپل فاعل(هوضمیر) اومتعلق سره شبه جمله خبردمبتداء مبتداءسره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۷۳﴾- أَفْضَلُ الذِّكْرِ لَا إِلٰهَ إِلَّا اَللّٰهُ وَأَفْضَلُ الدُّعَاءِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۲۰۱، س:۱۱، عن جابر رض مرفوعًا]

**ترجمه** دټولو نه افضل ذکر لا اله الا الله دې او دټولونه افضله دعا الحمدلله ده.

**تشریح** لااله الاالله ته دټولونه بهتر ذکروئیلووجه داده چه دلااله وئیلوسره دغیرالله خیال دزړه نه اوځی اوالاالله وئیلوسره دالله تعالی خیال په زړه کښې پخیږی.ددې وجې نه هرداسې ذکر چه په کښې دالله تعالی دمحبت اظهاروی اودغیرالله نه توجه لرې کیږی دټولونه بهترطریقه دذکراوافضل ذکرورته وئیلې شی.الحمدلله ته دبهترې دعا وئیلووجه داده چه ددعا تعریف دادې چه الله تعالی یادول اودهغۀ نه غوښتل نوپه الحمدلله کښې دا دواړه ځیزونه موندلې

شی ځکه چه په الحمدلله کښې الله تعالی یادولې شی اوداللہ تعالی دنعمتونوشکریه هم اداکولې شی.الله تعالی په قرآن شریف کښې دابیان کړې دې چه که چرې تاسوشکراوباسئ نوزۀ به تاسوته زیات درکړم نوالحمدلله وئیلوسره شکریه اداکیږی اود نعمتونو زیاتوالې کیږی لکه چه غوښتلې شی لهذا هرداسې الفاظوسره دعاکول چه په هغې کښې الله تعالی هم یادکړې شی اوپه ښۀ طریقې سره سوال اوکړې شی هغې ته بهترطریقه د دعا وئیلې کیږی.(دمشکوة حاشیه ث۸ په حواله دطیبی)

**لغوي اوصرفي تحقیق:** افضل په معنی دډیروالی سره په زیاتوالی کښې.دافضل جمع تصحیح افضلون ده اوجمع تکسیرئې افاضل.دادسمع،نصرد باب نه مستعمل دې په معنی د① باقی پاتې کیدل ② زیاتیدل.اودباب دکرم نه هم مستعمل دې په معنی دفضیلت خاوند کیدل. دبعضو صرفیانوپه نزد داځانله باب دې په وزن دفَعِلَ یَفعُلُ په دې وزن باندې دبعضوپه نزد فقط فضل یفضل دې.اودبعضو په نزد د دوه بابونه حضریحضراونعم ینعم هم دی.ځکه چه په دې کښې تداخل موندلې شی چه ددې باب ماضی دسمع نه اخستلې شوې اومضارع دنصر نه داصحیح نۀ ده لهذاپه تاج المصادرکښې ئې دامادہ دنصرنه اخستې ده په قاموس کښې دنصراوسمع دواړونه اخستې ده اوپه المنجدکښې ئې دسمع،نصر،کرم دریو واړونه اخستې ده.بهرحال مصدرفضل دې په معنی د① دزیاتوالی ② باقی ③ احسان.هم ددینه الفضول په معنی دحاجت نه زیاتی مال اوالفضلة په معنی دبقیه شراب جمع ئې فضلاتوفضال راځی. اوالفضالة په معنی دڅیز باقی پاتې حصه.جمع ئې فضالات ده اوالفاضل اوالفضل په معنی دصاحب فضیلت اوالفضولی په معنی ① دبې فائدې څیز کښې مشغولیدونکې ② د دوؤ کسانو مینځ کښې په خپله دخل کونکې.اِلٰه په معنی دمعبود خدائې جمع ئې اٰلهة راځی دادباب دفتح نه مستعمل دې الوهة اوالاهة او الوهیة مصادردی په معنی دبندګئ کولوسره اودسمع نه هم مستعمل دې آلَها مصّدردې په معنی دحیران کیدلوسره هم ددینه دې اِلَاهَة په معنی د① دلوئې مار ② نوې سپوږمئ ③ نمردباقی الفاظوتحقیق تیرشوې دې.

**ترکیب۞** افضل مضاف الذکرمضاف الیه،مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء،لانفی جنس اله موصوف الاپه معنئ دغیرمضاف لفظ الله مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه اسم دلاشواحدخبرمحذوف لادخپل اسم اوخبرسره جمله اسمیه خبریه خبرشو،مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۷۴﴾- اَوَّلُ مَنْ يُّدْعٰى اِلَى الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ اَلَّذِيْنَ يَحْمَدُوْنَ اللّٰهَ فِي السَّرَّآءِ وَالضَّرَّآءِ (بیهقی)

[تخریج:۔ مشکوٰة: ص:۲۰۱، س:۱۴، عن ابن عباس رضـ مرفوعًا]

**ترجمه۞** دټولو نه مخکښې چه به څوک رابللې شی جنت طرف ته،دقیامت په ورځ،هغه خلق به وی چه هغوی دالله تعالی تعریف کوی په خوشحالئ اوپه تکلیف کښې.

**تشریح۞** دقیامت په ورځ دټولونه مخکښې چه کوم خلق رابللې شی دجنت طرف ته هغه به هغه خلق وی چه په خوشحالئ اوغم،نفع اونقصان په هرحال کښې دالله تعالی حمداوتعریف کوی.دانه چه صرف په سختئ کښې الله یادوی،بلکه په خوشحالئ کښې هم دالله تعالی یاد او شکر اداکوی.اوکه تکلیف ورته اورسی نوهم دصبرپه صورت کښې الله تعالی یادوی.نوبیا مونږدمن مصداق جوړیږو،ګنی نهٔ جوړیږو.په یوبل حدیث شریف کښې راغلی دی که چرې ښه خبره ورته پیښه شی نوالحمدلله اووائې،اوکه څهٔ نقصان اوشی نوالحمدلله علی کلی حال اووائې دغه شان په یوبل حدیث شریف کښې دی چه اینګی نه روستوالحمدلله علی کل حال او وئیلې شی نوپه غابښ کښې به هیڅکله درد پیدانشی.(حسن حسین)

**سوال**: .دسراء مقابل حزن دې څکه چه دسراء معنی خوشحالی ده نوددې ضد(مقابل) به غم وی کوم چه حزن لفظ دې.اودضراء مقابل نفع ده نوپه حدیث شریف کښې یاخو د سراء سره دحزن لفظ کیدل پکاردی یادضراء سره دنفع لفظ پکاردې چه مطابقت پیداشی.

**جواب**: .که چرې دسراء سره لفظ دحزن وی یاد ضراء سره دنفع لفظ وی نوصرف یوتقسیم دبحث لاندې راځی.نویولفظ ئې دحزن مقابل واخستلواویوئې دنفعې مقابل واخستلو.دې دپاره چه څلورواړه طرفونوته اشاره اوشی اودواړه تقسیه ځانته واخستې شی اوداطریقه زیاته فصیح طریقه ده.

**لغوی او صرفی تحقیق۞** داول تحقیق په الباب الاول کښې تیرشوې دې دالجنة معنی داونونه ډك باغ جمع ئې جنان اوجنات راځی.دادنصر دباب نه مستعمل دې.جن اوجنون یې مصدرونه دی په معنی ① دپاګل کیدوسره ② پټول هم دډینه دې الجن اوالجنة په معنی د① ښاپیرئ ② پیرې ③ دیو.اوالجنة په معنی د پردې جمع ئې جنن اوجنان ده.اوالجنانه په معنی دډال سره دې اوجنین په معنی د① دقبر ② دفن کړې شوې ③ ماشوم چه ترڅوپه رحم کښې وی ④ هرپټ څیز،جمع اجنة اواجنن راځی.

**نکته۞** کوم ځائې کښې چه جیم نون نون ماده وی هلته به دپټ والی معنی ضرور موندلې شی لکه چه په ذکرشوو ځایونوکښې په مثالونوکښې دسوچ کولونه معلومیږی.السراء په معنی دخوشحالئ.دا دنصر اوسمع دباب نه مستعمل دې.سَرا اوسُراسرورا اومسرة وغیره مصادر دی په معنی درازسره جمع ئې اسرارراځی.جمع الجمع اساریرده په معنی دمخ خوبیانې او السرپه معنی نوم.جمع ئې اسرة اوسرور اوالسر په معنی د نوم،جمع ئې سرات اوسرر او السرورپه معنی دخوشحالئ سره.او السریرپه معنی دتخت او السریة په معنی دکور

وينزه.جمع ئې سرات او السريره معنى د مور خوشحالونكې اود دؤو رونړوسره سه سلوك كونكې.الضراء په معنى دمال اوخان نقصان دادنصر دباب نه دې ضرا اوضرائې مصدردې په معنى دتكليف وركولوسره اونقصان رسولوسره هم ددينه الضرة په معنى د① دحاجت ② دسينوبيخ ③ ډيرمال.ضرتان دجرندې دواړه پلونه اوالضروري په معنى دهغه څيز چه انسان په هغې مجبوركړې شي اوالضرير ① په معنى دړوند② مانده ③ بيمار ④ نقصانى.جمع ئې اضراء اواضرارده.

**تركيب**۞ اول مضاف من موصوله يدعى فعل مجهول په دې كښې (هو) ضميرنائب فاعل دې الى جارالجنة مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوفعل پورې.يوم مضاف القيامة مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول فيه شوه دفعل.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق او مفعول فيه نه جمله فعليه صله دموصول صله دسره موصول نه مضاف اليه شوداول مضاف دپاره.مضاف سره دمضاف اليه نه مبتداء الذين موصول يحمدون فعل واوضميرفاعل لفظ الله مفعول به فى جارالسراء معطوف عليه واوعاطفه الضراء معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه مجرور.جارسره دمجرونه متعلق شودفعل پورې فعل سره دفاعل اومفعول به اودمتعلق نه جمله فعليه خبريه صله دموصول شوه موصول سره دصله نه خبردمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه.

## نَوْعٌ اٰخَرُ مِنْهَا

## أَيْ مِنَ الْجُمْلَةِ الْاِسْمِيَّةِ وَهُوَ مَا دَخَلَ عَلَيْهَا لَا

﴿۷۵﴾- لَا اِيْمَانَ لِمَنْ لَا اَمَانَةَ لَهُ (بيهقى)

[تخريج:ـ مشكواة: ص:۱۵، س۵، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ هيڅ ايمان نشته دې دهغه سړى دپاره دچا دپاره چه څه امانت نه وى.

﴿۷۶﴾- وَلَا دِيْنَ لِمَنْ لَا عَهْدَ لَهُ .بيهقى

اوهيڅ دين نشته دې دهغه كس دپاره دچا دپاره چه څه وعده نشته.

**تشريح**۞ كوم سړې چه امانت لره امانت نۀ گنړى اوامانت نه محفوظ كوى اوپه امانت كښې خيانت كوى هغه كامل مسلمان نۀ دې.دلته امانت عام دې.نفس دالله تعالى امانت دې دادگناه نه بچ ساتل ضرورى دى گنى ډيرلوئې خيانت به وى.دغه شان كه دچا څه څيز ياخبره امانت وى نو امانتدار جوړيدل ضرورى دى.اوپه اهل وعيال كښې دامانت معنى داده چه ښځه اوبچى ياهرڅوك چه ددۀ امانت دى الله تعالى په طوردامانت وركړى دى.دهغوى ددين فكرهم ضرورى دې گنى دخيانت ډيره لويه گناه به وى.اوپه مال كښې دامانت معنى داده كه

چرې مال وی نوچه په ناجائز ځائې یا ناجائزه موقعه کښې خرچ نکړې شی ګنی دابه په مال کښې خیانت وی اوکه مال دبل چاوی اودامانت په طور ئې دچاسره ایخې دې نوهغه لګول هم خیانت دې.بهرحال خائن دایمان د دائرې نه نهٔ وځی بلکه فاسق ګرځی.اوکوم سړې چه دوعدې پابندنهٔ وی یعنی وعده اوکړی بیائې ماته کړی.یاقسمونه خوری اوبیائې ماتوی نوددغه سړی هم یقنی طورسره هیڅ دین نشته یعنی مسلمان ورته وئیلې شی لیکن صحیح مسلمان یاکامل مسلمان ورته نشی وئیلې صرف په نوم مسلمان دې.

**لغوي اوصرفي تحقيق:** دایمان،امانت اوددین ددې تولوالفاظوتحقیق تیر شوې دې عهدپه معنی د① وفاء ② ضمان ③ امان ④ دوستی ⑤ وصیت⑥ وعده ⑦ قسم.جمع ئې عهود ده.دادباب دسمع نه دې.عهدا مصدردې په معنی دحفاظت کولوسره اوپوره کولوسره.هم ددینه العهد اوالعدة په معنی دسپرلی اولنې باران جمع ئې عهاد ده.او المعهد په معنی د_ ① هغه ځائې کوم ځائې چه دځهٔ شی وعده کړې شوې وی ② دخلقودواپسۍ ځائې جمع ئې معاهد راځی اوالمعهودپه معنی دمعروف اومشهور.

**ترکیب**۞ لاء نفی جنس ایمان اسم دلا،ل جار،من موصوله،لا نفی جنس امانة اسم دلا،ل جاره مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه ثابتة پورې.ثابتة اسم فاعل په دې کښې (هی) ضمیردې هغه فاعل،اسم فاعل سره دفاعل اومتعلق نه خبردلاشو.لاسره دخپل خبر اواسم نه جمله اسمیه خبریه صله دموصول.موصول سره دصلې نه مجرور دجار،جار سره دمجرورنه متعلق شوثابت پورې،ثابت اسم فاعل،په دې کښې (هو) ضمیرهغه فاعل داسم فاعل،اسم فاعل دخپل فاعل اومتعلق نه شبه جمله خبردلاء نفی جنس.لادخپل اسم اوخبرسره جمله اسمیه خبریه شوه. دغه شان ددویمې جملې ترکیب دې هم اوکړې شی.

﴿۷۷﴾- لَاحَلِيْمَ إِلَّاذُوْعُثْرَةٍ ﴿۷۷﴾- لَاحَلِيْمَ إِلَّاذُوْعُثْرَةٍ (احمد وترمذی)

[تخريج:_ مشكواة: ص:۴۲۹، س:۲۶، عن ابی سعیدؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ څوک بُردباره نشته سوا د لغزش خوړونکی نه،اوڅوک عقلمند نشته سوا د تجربه کارنه.

**تشريح**۞ انسان صحیح بُردبار اوکامل حلیم هغه وخت جوړیږی.کله چه یوځائې کښې اوخوئیږی اوغلطی تریَ نه اوشی.بیاهغه دخپلومشګرانونه اوبزرګانونه معافی اوغواړی اوهغوی ئې معاف کړی.بیاپه کامل طریقه سره دحلم په صفت کیدې شی ګنی نو نشی جوړیدلې.بیا کله چه دې په خپله مشرجوړشی یابادشاه جوړشی نودنورو خلقوغلطۍ به هم معاف کوی ځکه چه سوچ به کوی چه یووخت ماهم دغه شان معافی غوښتلې وه.دغه

وخت دحلم پته لګی اوپوره حلیم جوړیږی دحلم تقریبادوه څیزونه اصل وی.① دصبر او برداشت موجودیدل ② اودتکبراوغصې نه موجودیدل ددې حدیث ددویمې جملې معنی داده چه دتجربې نه بغیردانسان نه حکیم نشی جوړیدلې.اګرچه هغه ډیرکتابونه اووائې ترڅوچه تجربه نۀ وی کامله عاقل اوحکیم نشی جوړیدلې.په هریوفن کښې دپوره مهارت حاصلولودپاره څۀ نه څۀ تجربه لازمی ده.که چرې یوفن شروع کول وی نوداسوچ مکوه چه زماتجربه نشته اوداکارنه کوم څکه چه تجربه په کولوسره حاصلیږی په خپله نۀ حاصلیږی. خوکله چه تجربه اوشی نوبښه مهارت به حاصل شی.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ دحلیم معنی بردبار(برداشت کونکې) دادنصر دباب نه دې.حُلمًا او حَلمًا ئې مصادردی په معنی دخوب لیدلوسره.اودکرم دباب نه هم راغلې دې.مصدرئې حِلمًا راځی په معنی دعفوې کولوسره صبرکولوسره.دسمع نه هم مستعملیږی هم ددې نه الحلم دې.① صبر ② قلاریدل په مزه کیدل ③ برداشت کول اوالحلم په معنی دخوب سره.حلم په کسره سره اوپه ضمه سره ددواړوجمع احلام راځی په کسره سره دویمه جمع حلوم راځی.او الحلیم په معنی ① دځورب والی وازده ② دالله تعالی دښائسته نومونونه دې.عثرة په معنی ① دلغزش ② جهاد ③ راپریوتل.جمع ئې عثرات دادباب دنصرنه دې.عثرا اوعثورا ئې مصدرونه دی په معنی د خبریدلوسره.هم ددېنه العثردې په معنی دعقاب سره اوالعثریه معنی ددروغ.العثوریه معنی د ډیر غورزیدلو والا او ډیر خوئیدونکې.اوالعثیریه معنی د① دخاورې ② ګرد.حکیم په معنی د① هوښیار ② عالم ③ فلاسفر جمع ئې حکماء باقی تحقیق ددې په مقدمه کښې تیر شوې دې.تجربة په معنی د① ازمائیلو سره، امتحان اخستلوسره ② تجربې کولوسره دادباب تفعیل نه مصدردې تجریبا هم مصدر راځی.ددې مجرد دسمع دباب نه دې.جربائې مصدرراځی.په معنی د(خارښ) کیدوسره هم ددېنه دې الجرب په معنی د① عیب ② دتورې زنګ اوالجرب په معنی دخالی کشتئ سره اوالجرابة په معنی ① دتورې تیکې ② دځرمن لوښې ③ دکوهی ختیه ④ دخصیتنو(هګو) پوکنړئ جمع ئې اجربة اوجرب راځی.او المجرب په معنی دامتحان اخستلې شوی سره.اوالجورب په معنی دجرابوسره.

**ترکیب**۞ لا دنفی جنس حلیم اسم دلا حرف استثناء لغوی ذومضاف عثرة مضاف الیه. مضاف مضاف سره الیه نه خبردلانفی جنس،لاسره دخپل اسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه د دویمې جملې ترکیب هم دغه شان اوکړې.

﴿۷۹﴾- لَاعَقْلَ كَالتَّدْبِيْرِ(بیهقی):﴿۸۰﴾- وَلَاوَرَعَ كَالْكَفِّ (بیهقی) ﴿۸۱﴾- وَلَاحَسَبَ كَحُسْنِ الْخُلُقِ (بیهقی) [تخریج:_ مشکواة: ص:۴۳۰، س:۲۳، عن ابی ذر(جندب) مرفوعًا]

**ترجمه** هیڅ عقل نشته د تدبیر په شان،اوهیڅ تقوی نشته دې د بندیدلو په شان.اوهیڅ شرافت نشته دې دښه اخلاقو په شان.

**تشریح** حضرت ابوذرغفاری چه دهغه نوم جندب دې.فرمائې چه حضور ﷺ اوفرمائیل چه دتدبیر په شان څۀ عقل نشته یعنی چه کوم کارتدبیرسره اوکړې شی هغه دعقلمندئ کاروی. بغیر د تدبیرنه کارکول څۀ کمال اوعقلمندی نۀ ده اوخلقوته دتکلیف نه رسولوپه شان څۀ تقولی نشته یاڅبه دګناهونوه بندول ددې په شان څۀ تقوی نشته دواړه معنی صحیح دی یعنی خلقوته قولا یاعملا تکالیف ورکولونه خپل ځان بچ ساتل ددې په شان هم څۀ تقوی نشته.اوپه دریمه جمله کښې ئې دا ارشادفرمائیلې دې چه دښه اخلاقوپه شان هم څۀ شرافت نشته یعنی چه دانسان اخلاق ښۀ وی دادتولونه لوئې شرافت دې.ددینه بل لوئې شرافت نشته دښواخلاقو نه مرادصبر،شکر،توکل،زهد ، محبت وغیره وغیره دی.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: عقل په معنی د① روحانی رڼاچه دهغې په وجه دغیر ،محسوساتو ادراك کیږی ② زړه ③ دیت جمع ئې عقول راځی دادنصراوضرب اوسمع دباب نه مستعمل دې.عقلا اوعقولا ئې مصدرونه دی په معنی ① دتدبرکولوسره ② دپوهې والاکیدل ③ قبض راوستونکې دوائی.ددینه العقلة دې په کوم شی چه اوښ تړلې شی جمع ئې عقل راځی.العقال ① هغه رسئ ته وئیلې شی په کوم چه داوښ زنګون تړلې شی.② کومه رسئ چه په سرتړلې شی.اوالعاقل هوښیار جمع ئې عقلاء اوعقال ده.اوالعاقل په معنی د① ښځې ② دغرڅنې چیلی ③ دیت ورکونکی ددې جمع عاقلة راځی.اوالعقول ① هوښیار② قبض راوستونکې دوائی اوالمعقل په معنی ① دپناهئ ځائې ② داوښانودتړلو ځائې ③ اوچت غرجمع ئې معاقل راځی.تدبیرپه معنی دسوچ کولوپه څۀ کارکښې اودهغې په نتیجه باندې غورکول هغې ته توجه ورکول،اوانتظام کول.دادباب تفعیل مصدردې.ددې مجرد دباب دنصراوسمع نه دې دَبراً و دَبَراً و دُبوراً ئې مصادردی په معنی دمړکیدلوسره.په شاتلل،بوډا کیدل.ددې نه تدبردې په معنی دڅۀ معاملې په نتائجوباندې غورکول.الدبر والدبر دهر څیز روستنئ حصه جمع ئې ادبار راځی.الدابرپه معنی د...... ① تابع ② اصل ③ دهرڅیز اخر ④ تیرشوې. مدبر هغه مرئې چه هغۀ ته خپل مالك اووائې چه زمادمرګ نه روستوته آزادئې.ورع په معنی دپرهیزګارئ یعنی دشبهاتونه هم ځان ساتل.جمع ئې اوراع راځی.دا دباب د فتح اوکرم نه مستعمل دې.په معنی ① د ګناهونو نه بچ کیدل ② کمزورې کیدل ③ بزدل کیدل ④ سپکیدل.ددینه الرعة دې په معنی دحالت.دکف تحقیق په حدیث ۴۰ کښې تیر شوې دې.حسب ① په معنی دکافی‌کیدلوسره ② مقدار ③ تعداد ④ ښه نسب والا

کيدل.داچه دنصرنه راشي نومعنی ئې ده شمارل اوچه دسمع نه راشي معنی ئې گمان اوخيال کول دی اوچه دکرم نه راشي نومعنی ئې ده شريف اصل والاکيدل.حسبا اوحسابا اوحسبانا اوحسبة وغيره ئې مصادردی.هم ددينه دې الحاسب په معنی دحساب دان سره جمع ئې حسبة راځي.يوم الحساب دقيامت ورځ.اوالحسبة په معنی ① داجراوثواب ② مړې په کانړوسره ياکفن ورکولوسره دفن کول جمع ئې حسب راځي.الحسبان په معنی ① دحساب ② وړوکې غشي داجمع ده.ددې واحد حسبانة راځي اومحتسب په معنی دانسپکټر.دحسن اوخلق تحقيقات په حديث ۳۲ کښې تير شوې دې.

**ترکيب** لادنفي جنس دپاره عقل اسم دلا.کجارالتدبيرمجرور.جارمجرورمتعلق شوپه ثابت پورې. ثابت اسم فاعل په دې کښې دهو ضميردې هغه فاعل شو.اسم فاعل دخپل فاعل او متعلق نه شبه جمله خبردلاشو.لا سره داسم اوخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.دباقي دوه جملو ترکيب هم دغه شان دې.

﴿۸۲﴾- لَاطَاعَةَ لِمَخْلُوْقٍ فِيْ مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ (رواه فی شرح السنة)

[تخريج:_ مشکواة: ص:۳۲۱، س:۲۰، عن نواس بن سمعان رض مرفوعًا]

**ترجمه** هيڅ اطاعت (لازمي) نه دې دمخلوق،د خالق په نافرمانئ کښې.

**تشريح** کوم ځائې چه دالله تعالی نافرمانی کيږي.هلته دمخلوق فرمانبرداری کول ناجائز او حرام ده لهذاکه چرې پيراومرشد يااستاذ،اومورپلارد ناجائز کارکولو حکم کوی.مثلا دگيرې خرئيلو ورته وائي.يا د سينما کتلو ورته وائي.ياد رشوت او سود اخستلو ورته وائي.ياد يو بل ناجائز کارحکم کوی.نو د دوی حکم منل حرام دې اونافرماني يې واجب ده.ځکه چه خالق اومالك راضي نه دې.ليکن چه خالق کوم ځائې راضي کيږي هلته دمخلوق تابعداری جائزده بلکه بعضوموقعوکښې واجب ده.مثلاً مونځ ئې کولومور يا پلار ورته اواز اوکړو،نو دځۀ مجبورئ په وجه مونځ ماتول او دهغوی خبره اوريدل واجب دی.

**سوال**: په ترجمه کښې هيڅ دکوم لفظ ترجمه کړې شوې ده

**جواب**: دلته لاطاعة نکره ده اوکله چه نکره تحت النفي واقع شي.نودَ عموم فائده ورکوی نو"هيڅ"دغه عموم ترجمه شوه.لهذا هرقسم ناجائز خبره يا کار دمخلوق په حکم باندې کول ناجائزدی.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: طاعة په معنی دفرمانبراداركيدلوسره.داد باب افعال مصدردې اطاعة هم راځي اومعنی ددواړويوده.ددې مجرد دفتح اونصرنه دې په معنی دتابعدارئ کولوسره هم ددينه تطوع دې په معنی دتکلف سره اطاعت کول.اواستطاعت په معنی دطاقت لرلوسره اولائق کيدوسره.المتطوع اوالمطوع په معنی دفرض او واجب نه علاوه نورنيك اعمال

دنفلوپه طوراداکولووالامعصیة په معنی دنافرمانۍ کولوسره.دشمنی کول.دادباب ضرب نه مصدردې دعصیاهم مصدر راځی عصیان اومعصیت په معنی ① دګناه ② لغزش.د معصیت جمع راځی هم ددینه عصادې په معنی دهمسایاځۀ ده،هډانې ورکولووالاخیز.

**ترکیب** لادنفی جنس دپاره طاعة اسم دلا،ل جار،مخلوق مجرور،جاراومجرورمتعلق اول شودثابتة دپاره.فی جارمعصیة مضاف الخالق مضاف الیه،مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجار،جارسره دمجرورنه متعلق ثانی شوثابتة دپاره،ثابتة اسم فاعل دخپل فاعل هی ضمیراومتعلق سره شبه جمله خبرشودلا،لاسره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۸۳﴾- لَاصَرُوْرَةَفِيْ الْإِسْلَامِ (ابو داؤد)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۳۲۲، س:۵، عن ابن عباس رض مرفوعًا]

**ترجمه** په اسلام کښې تعلق پریښودل نشته.

**تشریح** په اسلام کښې رهبانیت نشته یعنی دخلقونه څانله کیدل اوخپل ژوند تیرول،څانته اوسیدل او څانله عبادت کول دیته رهبانیت وئیلې کیږی.اوپه اسلام کښې بالکل رهبانیت نشته.ددې حدیث دوه معنی کیدلې شی.اول معنی داده چه په داسې طریقه دخلقونه جداشی چه واده هم اونکړی.داپه اسلام کښې نشته.په اسلام کښې نکاح اوواده کول دی نکاح پریښودل نشته.دصرورة ړومبۍ معنی همدغه ده (نکاح پریښودل) داپه اسلام کښې نشته. دویمه معنی دصرورة حج نۀ کول دنیاسره داسې تعلق قطع کول چه حج نوی .داهم رهبانیت دې اوصرورة دې او داپه اسلام کښې نشته.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: صرورة په معنی د① چاچه حج نۀ وی کړې ② ناواده شوې.دا دنصر اوضرب دباب نه مصدردې صرا اوصرارااوصریراهم مصادردی په معنی ① تهیلۍ تړل ② ذره ذره کول.هم ددینه دې الصرة په معنی دتهیلۍ سره جمع ئې صرر ده اوالصرة د زورآواز. اوالصرة په معنی ① دشورزوګ چغې،سورې② جماعت ③ ترش روئې.

**ترکیب** لا نفی جنس صرورة اسم دلا،فی جار،الاسلام مجرور،جارمجرورمتعلق شوپه ثابتة پورې،ثابتة اسم فاعل ضمیر(هی) په کښې دې هغه فاعل.اسم فاعل سره دفاعل نه اوسره دمتعلق نه شبه جمله خبردلا،لاسره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه.

﴿۸۴﴾- لَابَأْسَ بِالْغِنٰى لِمَنْ اِتَّقَى اللّٰهَ عَزَّوَجَلَّ (احمد)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۴۵۱، س:۱۹، عن رجل من اصحاب النبیﷺ مرفوعًا]

**ترجمه** هیڅ باك نشته مالدارۍ باندې هغه چا دپاره څوك چه نه ویریږی داللہ تعالی نه،چه عزت والا او لوئې شان والادې.

**تشريح او شان ورود**۞ يوصحابى فرمائي چه يوځل مونږپه مجلس كښې ناست وو چه نبى ﷺ تشريف راوړو هغوى په سرمبارك باندې د اوبو اثرات وو يعنې غسل ئې كړې وه.تشريف ئې راوړو نومونږ اووئيل اې دالله رسوله ﷺ! مونږتاسو ډيرخوشحاله وينو،څه خبره ده.حضور ﷺ اوفرمائيل آوجى. نوخلقو د اميرۍ اومالدارۍ باره كښې خبرې شروع كړې.په دې باندې حضور ﷺ اوفرمائيل چه په مالدارۍ كښې هيڅ حرج نشته كله چه تقوى اختياركړې شى. يعنى انسان اگرچه دكروړونومالك وى ليكن گناه نه كوى اوفرائض،واجبات،سنتوپابندى كوى نوپه دې مالدارۍ كښې هيڅ باك نشته.بلكه چه هغه مالدارصدقه،خيرات كوى نوپه ثواب كښې به نورزياتوالې وى.﴿ ذَٰلِكَ فَضْلُ ٱللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَآءُ ﴾ اووې فرمائيل چه صحت او تندرستى دهغه سړى دپاره چه تقوى اختياركړى دمالدارۍ نه هم بهترده.اود نفس خوشحالى يعنى خوش طبعى،دا دخاص نعمتونونه ده يعنى دداسې نعمتونونه چه دهغې شكر واجب دې.(بيهقى)

**لغوي اوصرفي تحقيق**: بَاس ① په معنى دشجاعت ② قوت ③ ويره،عذاب كله چه دادباب دكرم نه راشى نومعنى ئې داده مضبوط او بهادركيدل.اوكه چرې دسمع نه راشى نومعنى داده.ډيرمفلس كيدل.حاجت منديدل،هم ددينه دې بئس،دافعل ماضى جامددې دمذمت دپاره استعماليږى.داپه اصل كښې بئس الرجل ده(څومره خراب سړې دې) او البؤس په معنى دسختۍ اومحتاجۍ سره دې جمع ئې ابئوس،باساء بؤسى ده.دغنى تحقيق په حديث نمبر ۲۷ كښې اود إتقى په حديث نمبر ۲۸ كښې تير شوې دې.عزپه معنى د(عزتمندشو) دادباب ضرب نه دماضى مطلق واحدثائب صيغه ده.عزا اوعزة اوعزازة ئې مصادردى.ددينه العزپه معنى د① عزت ② سخت باران اوالعزيز په معنى د① شريف ② نادر ③ معزز ④ دالله تعالى داسماء حسنى نه دې.جمع ئې اعزاء راځى اوعزاز جل په معنى دلوئې شان والاشو. داهم دباب دضرب نه دماضى مطلق واحدغائب صيغه ده.جلالا اوجلالة مصدردې په معنى ① دلوئې شان والاكيدل ② حجم كښې لوئې والې ③ په عمركښې زياتوالې.دادنصرنه هم راځى.بيادادې مصدرجلوس راځى اومعنى ئې داده چه خپل وطن پريښودل اوپردى وطن ته تلل.ددينه الجل اوالجل دې.په معنى د(ځانگو) جمع ئې جلال اواجلال راځى.الجل په معنى ډير.اوالجلة په معنى دلوئې توكرۍ سره جمع ئې جلال اوجلل راځى.

**تركيب**۞ لانفى جنس دپاره،بَاس اسم دلا.ب جارالغنى مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق اول شودثابت.ل جارمن موصوله اتقى فعل هو فاعل لفظ الله ذوالحال عزفعل هو فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعليه خبريه معطوف عليه.واؤ عاطفه،جل فعل هوفاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعليه خبريه معطوف.معطوف سره دمعطوف عليه نه حال.ذوالحال سره حال نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبريه صله دموصول.موصول سره دصلې نه مجرور.جارسره

دمجرورنه متعلق ثاني دثابت،ثابت اسم فاعل سره دفاعل (هو ضمير) او دواړو متعلقينو سره شبه جمله خبردلاتې نفي جنس.لا نفي جنس سره داسم اوخبرنه جمله اسميه خبريه.

## اَلْجُمْلَةُ الْاِسْمِيَّةُ الَّتِیْ دَخَلَتْ عَلَيْهَا حَرْفُ اِنَّ

﴿٨٥﴾- اِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا (بخاری): ﴿٨٦﴾ اِنَّ مِنَ الشِّعْرِ حِكْمَةً (بخاری).

[تخريج:_ مشكواة: ص:٤٠٩، س:٨، ٩، عن ابن عمر رضمرفوعًا وعن ابی بن كعب رض مرفوعًا]

**ترجمه** بې شكه بعضې بيان خامخا جادو وی، بې شكه بعضې شعر هوښيارتيا وی.

**تشريح** من دتبعيض دپاره دې يعنې بعضې بيان داسې وی چه په هغې كښې ډيرزيات تاثيروی.

**شان ورود** حضرت عبدالله بن عمر رض فرمائي چه يوځل دوه كسان دمشرق نه راغلل اوتقرير ئې اوكړو.دهغوی تقرير په خلقو ډيرښۀ اولګيدلونو په هغې باندې حضور ﷺ اوفرمائيل چه بعضې بيان دتاثيروالادی لكه چه هغه جادووی.دويمه جمله دبل راوی نه روايت شوې ده چه په بعضې اشعاروكښې ډيرلوئې دكارخبرې وی.ټول اشعارخراب نۀ وی بلكه بعضې اشعارهم ښۀ وی په هغې كښې دعلم اوحكمت خبرې وی.يادساتئ چه داشعاروا وريدلواولوستلودپاره ټول څلورشرطونه دی.

(١) **سامع**: دې اصلاح يافته وی يعنی دشعرغلط مطلب دې نۀ جوړه وی.

(٢) **مُسمِع**: يعنی ويونكې دې سړې وی كه چرې ښځه يانابالغ وی نودهغه نه شعراوريدل جائزنۀ دی.**مسموع**:يعنی مضمون دې خلاف شرع نۀ وی.**آله سماع**: يعنی باجه وغيره دې نۀ وی.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: بيان دباب دضرب نه مصدردې په معنی د خبرې كول،كلام كول،هم ددې نه دې تبيان په معنی د((په خپله پوهيدل))

**په بيان او تبيان كښې فرق** ① بيان وئيلې كيږی بل پوهه كول اوتبيان وئيلې شی.په خپله پوهيدل.② ددې عكس ③ دخۀ ابهام تفصيل ته بيان وئيلې شی.اومطلق كلام ته تبيان وئيلې شی.④ دمافی الضميراظهارته بيان وائې اوسره ددليل نه اظهارمافی الضميرته تبيان وائې.دا دواړه لفظونه لازم اومتعدی دواړه استعماليږی.اودادمزيدنه صرف په څلورو بابونوكښې مستعمل دې.① افعال ② تفعيل ③ استفعال ④ تفعل.دبيان اوتبيان اصطلاحی تعريف دادې "اَلْاَصْوَاتُ الَّتِیْ يُعَبِّرُبِهَا النَّاسُ عَنْ اَغْرَاضِهِمْ مِنَ الْقَلْبِ"يادساتئ چه همداتعريف دلسان.لغت،قول اودنطق هم دې دسحرتحقيق په حديث٤٩ كښې تير شوې دې.الشعر داد باب دنصر اوكرُم او سمع نه مصدردې.په فتحې سره هم مصدردې اوشُعُور وغيره هم مصدر

دي.داکه دنصراوکرم نه راشي نومعنی ئې داده.① شعروئیل ② محسوس کول اوپیژندل اوکه دسمع نه راشي نومعنی ئې داده:د اوړدو او زیات ویښتو والاکیدل.دشعرجمع اشعارده. ددینه شاعرپه معنی دشعرویونکی سره.اوشعیرپه معنی د اوربشو.حکمت په معنی ددانائې اوپوهې سره.

**ترکیب** ان حرف مشبه بالفعل من جارالبیان مجرور.دواړه متعلق شو ثابت پورې.ددې خبرمقدم شو.لسحرا اسم موٴخر.ان سره داسم موٴخراوخبرمقدم نه جمله اسمیه خبریه شوه. دغه شان دویم ترکیب هم دې.

﴿۸۷﴾- اِنَّ مِنَ الْعِلْمِ جَهْلاً (ابو داؤد): ﴿۸۸﴾- اِنَّ مِنَ الْقَوْلِ عَيَالاً

(ابو داؤد)[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۱۰، س:۲۰، ۲۱، عن صخرتابعی مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه بعضې علم جهالت دې.بې شکه بعضې خبرې بوج او وبال دې.

**تشریح** په کوم علم چه عمل اونکړې شی هغه علم نهٔ دې بلکه جهالت دې هغه سړې عالم نهٔ دې بلکه جاهل دې.دعلم سره گناه کول دټولونه لوئې جهالت دې.اودعمل کولودویرې نه علم نهٔ حاصلول دوچنده گناه ده.دقیامت په ورځ په دې وئیلوسره نشی خلاصیدلې چه ماته پته نهٔ وه.(زهٔ نهٔ پوهیدم) یعنی جهالت عذرنهٔ دې.په علم باندې عمل کول ضروری دی.په دویمهٔ جمله کښې ئې ارشاد اوفرمائیلو چه هره خبره ښهٔ نوی بعضې خبرې په خپل ځان باندې پیټې اوگناه گرځی.مثلادغیبت په وجه خپلې نیکئ دبل چاگرځی اودنوروخلقوگناهونه دده گرځی.نوټوله گناه دویونکی شوه.ددې گناه به هم هغه ځوك اوچتوی چاچه دغه شان خبرې کړې وې.یعنی دشرع نه خلاف خبروکولوکښې گناه وی اودهغې بوج اوگناه په ویونکی باندې پرې وځی.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: العلم اوجهل دواړه مصادردی دباب دسمع نه اوضدین دی.القول په معنی د وینا سره وئیل.اجوف واوی دې مصدردې دباب نصرنه.عیالاپه معنی دبوج اوگناه.سره ددې ټولو الفاظو تحقیق تیر شوې دې.

**ترکیب** ان حرف مشبه بالفعل.من العلم جارمجرورمتعلق په ثابت پورې خبرمقدم،جهلا اسم موٴخر.ان داسم اوخبرسره جمله اسمیه خبریه شوه.دویم ترکیب همدغه شان کولې شی.

﴿۸۹﴾- اِنَّ يَسِيْرَالرِّيَاءِ شِرْكٌ (ابن ماجه)[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۵۵، س:۱۷، عن عمربن الخطاب رض مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه لږه شان ریا هم شرك دې.

**تشریح** حضرت عمر رض یوه ورځ دحضور ﷺ جومات طرف ته اووتلو،نود روضه اقدس ﷺ سره معاذبن جبل رض ناست وو.ژړل ئې نوحضرت عمر رض تپوس اوکړوچه کوم ځیز تا ژړوی

نومعاذ ﷜ جواب ورکړوماهغه څیز زړوی چه ماد حضور ﷺ نه اوریدلی دې هغه دادې چه نبی ﷺ اوفرمائیل چه بې شکه لږه غوندې ریاهم شرک دې.

**سوال**: ولې ریاکولوواﻻمشرك اوکافرګرځی؟

**جواب**: ریاکاری حکمی شرك دې.ریاته شرك دې وجه نه اووئیلې شوچه دریامعنی داده چه غیرالله ته خپل عبادت خودل او کول.اوس الله تعالی هم وینی دهغه نه علاوه بل چاته خودل دادالله تعالی سره دشریکولوبوصورت دې اودې ته شرك حکمی او شرك اصغر وئیلې شی.دا ډیره لویه ګناه ده. لیکن انسان دایمان د دائرې نه نۀ اوځی.په حدیث کښې دی.رسول الله ﷺ اوفرمائیل.چه آیا زۀ تاسوته داسې څیز اونه ښائم.چه په هغې سره تاسو د شركِ اکبر (کفر) اود شركِ اصغر(ریا) نه بچ شئ. هغه دا چه تاسو روزانه دا دعا درې ځل لولئ:

(( اَللّٰهُمَّ اِنِّیۡ اَعوذُبِكَ اَن اُشرِكَ بِكَ وَاَنَا اَعلَمُ وَاَستَغفِرُكَ لِمَا لاَ اَعْلَمُ ))

**لغوي اوصرفي تحقیق**: یسیردامثال یائي دې اودکرم نه مصدردې په معنی دکمیدلوسره اود ضرب نه هم راځی.بیامعنی داده((نرم کیدل)) تابعدارکیدل.هم ددینه المیسرپه معنی دجوارئ سره.یاپه معنی دریاسره.ددې تحقیق په حدیث ۴۹ کښې اودشرك په حدیث ۳۱ کښې تیر شوې دې.

**ترکیب**۞ ان حرف مشبه بالفعل یسیرمضاف الریامضاف الیه،مضاف سره دمضاف الیه نه اسم دان.شرك خبردان.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

**﴿۹۰﴾- اِنَّ السَّعِيۡدَ لِمَنۡ جُنِّبَ الۡفِتَنَ**

[تخریج:ــ مشکوٰة: ص:٤٦٤، س:٢٥، عن مقداد بن اسود﷜ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکه نیك بخته هغه دې چه د فتنو نه بچ ساتلې شوې وی.

**تشریح**۞ بدبختی اونیك بختی دادوه صفتونه الله تعالی پیداکړی دی.نوسعادت په صفت هغه سړې مشرف کیدلې شی چه په فتنوکښې دغورزیدلونه بچ کړې شوې وی.اودابچ کول هم الله تعالی کوی.نوسعیدبه هغه وی چه هغه الله تعالی په فتنوکښې دغورزیدلونه بچ کړی.دفتنونه مرادهرقسم فتنه ده.خواه دفسادیانیت وی یافتنه دتحریف داسلام وی وغیره وغیره دهرقسم فتنې نه محفوظ وی.اوپه خپل کوشش سره هم بچ کیږی نوهغه سعیداونیك بخت دې.ددې مقابل کښې شقی هغه دې چه ګناهګاروی اوبدبخت وی.

**لغوي اوصرفي تحقیق**:السعیدداصیغه دصفت ده اودسمع اوفتح دباب نه مستعمل ده.سعداً اوسعوداً اوسعادةً ئې مصادر دی په معنی دنیك بخت کیدلواوخوش نصیب کیدلو.هم ددینه دې مسعود.یعنی دالله نیك بخت جوړکړې شوې.جنب دباب تفعیل نه دماضی صیغه ده.په معنی دلرې کړې شوی اوبچ کړې شوی.په مجردوکښې دادنصراوسمع اوضرب نه مستعمل دې.ددینه دې الجنب په معنی ① دنافرمان ② ناپاك جنبی ③ مسافراجنبی.ددینه جناب دې په

معنی دصحن، کټ،الفتن جمع ده دفتنة دفتنة معنی ① ازمائش ② ګمراهی ③ عذاب ④مال اولاد⑤ د رائې اختلاف ⑥ کفر.داد ضرب دباب نه دي.فتنا وفتونًاوفتنةً ئې مصادردی.

**ترکیب** ان حرف مشبه بالفعل السعیداسم دان.ل.ابتدائیه جار.من موصوله جنب فعل هو ضمیرنائب فاعل الفتن مفعول به فعل دځپل نائب فاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول.موصول سره دصلې نه خبردان.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۹۱﴾- اِنَّ الْمُسْتَشَارَ مُؤْتَمَنٌ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص: ۴۳۰، س:۱۳، عن ابی هریرة رض مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه دچانه چه مشوره اخستلې شی هغه امانت دار وی.

**تشریح** مشوره داسې سړی نه اخستل پکاردی چه هغه امانت داروی اومشوره ورکونکی ته پکاردی چه صحیح مشوره ورکړی.باقی په المجالس بالامانة کښې تیر شوې دي چه دیو مجلس خبرې بهرکول دیرلوئې خیانت دي اوناجائزدی.البته ددرې قسمه خبرو اجازت په احادیثوکښې راغلې دې.

① چه په دغه مجلس کښې دناجائزقتل منصوبه جوړولې شی.

② یادیوې ښځې سره د زناکولو پروګرام جوړولې شی.

③ یادچاپه ناحق (ناجائز) طریقې سره دمال ضبط کولومنصوبه جوړولې شی.داقسم خبرې بهرکول خیانت نه دي اوپه دې کښې ګناه نشته بلکه ثواب دې.

**شان ورود** حضور ﷺ ابوالهیثم رض نه پتوس اوکړوایاستاخاد شته دې؟هغهٔ اووئیل چه نشته. نو نبی کریمﷺ اوفرمائیل کله چه مونږته قیدیان راشی نوبیاراشه.نودوه قیدیان راوستلې شو.نبیﷺ اوفرمائیل په دې دواړوکښې ځان دپاره خوښ کړه.نو ابوالهیثم رض اووئیل چه حضور! تاسو ما دپاره خوښ کړئ.په دې موقعه باندې حضور ﷺ اوفرمائیل:اِنَّ الْمُسْتَشَارَ مُؤْتَمَنٌ" چه دچانه مشوره اخستلې شی هغه امین ګڼړلې شوې وی ته داغلام واخله بیشکه زهٔ وینم چه دې مونځ کوی.

**لغوي اوصرفي تحقیق**:المستشار دااسم مفعول دې دباب استفعال نه په معنی دهغه کس چانه چه مشوره اخستلې شی ددې مجرددباب نصرنه دې اوددینه شورٌ هم دې په معنی دشهدوددینه مشوره هم ده.یعنی څنګه چه مچۍ په ګبین باندې کینی اوشهد جوړوی دغه شان خلق کینی اوخبره فیصله کوی دیته مشوره وائې.ددینه مشوار هم دې په معنی دشهدو ویستلواله اومشیرکونسلراومشاور.وزیرته وائی.ه وتمن باب افتعال دې داسم مفعول صیغه ده په معنی دامین سره مجردئې دسمع نه مستعمل دې په معنی دامن سره.

**ترکیب﴾** ان حرف مشبه بالفع المستشاراسم د ان.موتمن ئې خبر.ان سره دخپل اسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۹۲﴾- اِنَّ الْوَلَدَ مَبْخَلَةٌ مَجْبَنَةٌ

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۴۰۳، س:۱، عن یعلی رض مرفوعًا]

**ترجمه﴾** بې شکه خوئې د بُخل د بُزدلئ سبب وی.

**تشریح او شان ورود﴾** حضرت یعلی رض فرمائي چه حضرت حسن اوحضرت حسین رضي الله عنهما دواړه دحضور ﷺ طرف ته په منډه راغلل نوحضور ﷺ هغه دواړه خان ته رانزدې کړل اووې فرمائیل:بیشکه خوئې دبخل اوبزدلې سبب گرځی دادکمال محبت نښه ده یعنی دخوې سره دومره محبت کیږی چه سړې دهغه دپاره مال جمع کوی اودبچودوجې نه په جنگ جګړه وغیره کښې زیاته حصه نهٔ اخلی.ددې وجې نه خوې دبخل اوبزدلئ سبب اوګرځیدلوکوم ځائې چه شریعت دمال خرچ کولوحکم کوی هلته بخل حرام دې اوکوم ځې چه شریعت وئیلې دی چه بزدلی مکوه هلته بزدلی حرامه ده.مثلاً زکواة واجب کیدوسره زکواة نهٔ اداکوی نوداسې بخل حرام دې. دغه شان دصفامروه مینځ کښې دمنډې اوبهادرئ په ځائې بزدلی ښکاره کول ناجائزاوحرام دی.ددې وجې نه د اولادسره دومره محبت کول نهٔ دی پکارچه سړې دناجائزې درجې بزدلی اوبخل اختیارکړی اودمال سره محبت نهٔ دې پکار.

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُلْهِكُمْ أَمْوَٰلُكُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُكُمْ عَن ذِكْرِ ٱللَّهِ ﴾

**ترجمه﴾** اې ایمان والو! خیال ساتئ! چرته تاسو لره ستاسو مالونه او اولاد دالله تعالی د ذکرنه غافل نه کړی، ،اوبل ځائې کښې داسې دی:﴿ إِنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَأَوْلَٰدُكُمْ فِتْنَةٌ ﴾ یعنی ستاسو مال او اولاد فتنه او ازمیښت دې.

**لغوي اوصرفي تحقيق:** مَبْخَلَةٌ په معنی دپه بخل باعث کونکې دادسمع اوکرم نه دې.ددینه بخیل په معنی دشوم جمع ئې بخلاء راځی.مجبنة په معنی دبزدلې باندې باعث کونکې دادکرم نه دې.ددینه جبن په معنی دبزدلئ جمع ئې جبناء راځی.

**ترکیب﴾** ان حرف مشبه بالفعل الولدئې اسم مبخلة ئې خبراول،مجبنة ئې خبرثانی،ان سره داسم او دواړو خبرونونه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۹۳﴾- اِنَّ الصِّدْقَ طُمَانِيْنَةٌ ﴿۹۳﴾- اِنَّ الصِّدْقَ طُمَانِيْنَةٌ (احمد وترمذی)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۲۴۲، س:۹، عن حسین بن علی رض مرفوعًا]

**ترجمه﴾** بې شکه رښتیا (سبب د) اطمینان دې.او بې شکه دروغ ناقلاری ده.

**تشریح** رښتیا وئیل دسکون باعث دی درښتیا وئیلونه روستواطمینان وی اوددروغ وئیلونه روستو بې قراری وی.که چرې یودروغ اووئیلې شی نودهغې برقراره ساتلودپاره د ډیرو نورو دروغو وئیلو ضرورت وی.صدق اوکذب لکه څنګه چه په اقوالوکښې چلیږی. دغه شان په افعالوکښې هم چلیږی یعنی په کوم کارکښې چه شك وی نوهغه پریښودل پکاردی په دې کښې به اطمینان وی.اوپه کوم کښې چه شك نۀ وی هغه کول پکاردی.دې دپاره چه زړه مطمئن وی او رښتیا وئیل په شریعت باندې عمل کول دی.څوك چه په شریعت باندې عمل کوی هغه هیڅکله نۀ پریشانه کیږی.په دې وجه د رښتیا وئیلووالا هیڅ کله نۀ پریشانه کیږی.دظالم بادشاه په مخکښې رښتیا وئیل اودحق خبره کولو ته بهترجهادوئیلې شوې دې.ددې وجې نه بغیر دشرعی ضرورت نه دروغ وئیل حرام دی کوم ځائې چه دروغ وئیل جائزوی هلته هم دتوریه په شکل جائزدی.دتوریه معنی داده چه متکلم بعیده معنی واخلی اومخاطب قریبه معنی واخلی لکه چه یوسړې دکوروالونه دزید باره کښې تپوس اوکړی چه په کورکښې شته یانشته.نودکوروالوپه یولاس دائره جوړه کړئ اوپه بل لاس هغې ته اشاره کول اودا وئیل چه دلته نشته.داتوریه ده.دضرورت دوجې نه توریه جائزده.امام غزالی(رح) په تبلیغ دین کښې ددې وضاحت کړې دې.که ډیر شوق وی (نوهلته دې رجوع اوکړې شی).

**لغوي اوصرفي تحقيق:** طمانينة دادباب افتعال نه مصدردې.اطمینان ئې هم مصدر راځی. معنی ئې داده چه آرام کول اوقرارې نیول.ددینه الطمـــن اوالمطمـــئن په معنی دساکن سره راغلې دې.دکذب معنی په حدیث ۳۰ کښې اوګورئ ریبة دامفرددې په معنې د① شك ② تهمت ③ بې ارامی.ددې جمع ریب راځی.دادضرب دباب نه استعمال شوې دې.ریبًا ئې مصدر راځی.په معنی د(څوك په شك کښې یاپه تهمت کښې غورزول)

**ترکیب** ان حرف مشبه بالفعل الصدق ئې اسم طمانينة ئې خبر.ان دخپل اسم اوخبرسره جمله اسمیه خبریه شوه. دغه شان دویمه جمله ده.

**﴿۹۵﴾- إِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى جَمِيلٌ يُحِبُّ الْجَمَالَ** (مسلم)

[تخريج:_ مشكواة: ص:۴۳۴، س:۱۸، عن ابن مسعود رض مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه الله تعالی ښائسته دې، ښائستوالې خوښوی.

**تشریح او شان ورود** پوره حدیث داسې دې عبدالله بن مسعود رض فرمائې چه حضور ﷺ اوفرمائیل چه دچاپه زړه کښې دذرې هومره تکبروی هغه به جنت ته نه ځی.نویوصحابی تپوس اوکړو.حضور ﷺ که چرې یوسړې ښې کپړې اوبهترینې پنړې په خپوکول خوښه وی (نو ولې داهم په تکبرکښې داخلیږی)؟ نوپه جواب کښې ئې اوفرمائیل:ان الله جميل يحب الجمال" چه الله تعالی په خپله بې اندازه ښکلې دې اوهغه ښائست خوښوی.متکبرخوهغه څوك وی

چه دحق مقابله کوي،اوخلق ذلیل اوګنړي (حدیث ختم شو) ددې حدیث نه معلومه شوه چه دخپل طاقت موافق ښه لباس اغوستل چه په دې کښې واسکټونه،شیروانۍ هم داخل دي،اوښائسته پنړې استعمالول اوپه کورکښې سنګ مرمرلګول اودخپل ځان دپاره کرسۍ ساتل او ائرکنډیشن،موټرپاڅۀ بل قسمه سورلۍ ساتل.که چرې خپل مال وی داټول جائزدی دا بالکل فضول خرچی نۀ ده.څومره چه کیدلې شی.ښائستوالي خوښول پکاردی دخپل طاقت موافق ځکه چه الله تعالی ښائست خوښوی.البته دچاپه مال سره یاقرض اخستلوسره ښائست اختیارول یاپه خپل مال سره ښائست کول دتکبردپاره دادګناه صورتونه دی.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: جمیل صیغه دصفت ده په معنی د(دښۀ شکل اوښه اخلاقووالا) داکه چرې دباب دنصرنه راشی نومصدرئې جملاً راځی په معنی دښائسته شکل اوښائسته اخلاقوسره.ددینه جمال په معنی دحُسن اوجمال په معنی ډیر زیات ښائست.او جَمل په معنی د(اوښ) جمع ئې جمل،جمال اواجمال راځی.اوالجملة په معنی د① مجموعه سره ② هغه کلام چه دمسنداومسندالیه نه مرکب وی،جمع ئې جمل راځی.

**ترکیب۞** ان حرف مشبه بالفعل لفظ الله ذوالحال تعالی فعل هوفاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه حال شوه.ذوالحال سره دحال نه اسم دان جمیل اول خبر.یحب فعل هو فاعل الجمال مفعول به.فعل سره دخپل فاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شوه خبرثانی دان.ان سره داسم اود دواړوخبرونونه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۹۲﴾- إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ شِرَّةً وَلِكُلِّ شِرَّةٍ فَتْرَةً (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۵۵، س:۵، عن ابی هریرة؄ مرفوعًا]

**ترجمه۞** بې شکه دهرڅیز دپاره تیزی وی،اود هر تیزۍ دپاره سُستی وی.

**تشریح۞** دحدیث مطلب دادې کله چه بنده په عبادت کښې مبالغه کول شروع کړی یعنی په شروع شروع کښې ډیرزیات عبادت کوی اوبیا سست شی داسې نۀ ده پکار.په دې دین کښې نه افراط شته چه ډیرزیات والې اوکړې شی اونۀ تفریط شته چه کوتاهی اوکړې شی. بلکه زمونږ په دین کښې میانه روی ده.میانه روی اختیارکړې شی اواعتدال سره کاراوکړې شی.نفلی عبادتونه کم اوکړې شی.لیکن همیشه اوکړې شی.دابهترده ددینه چه ډیرزیات عبادت اوکړې شی.لیکن همشه ئې نه کوی.زیات تفصیل په حدیث نمبر۵۳ ((اَحَبَّ الْاَعْمَالِ اِلَى اللّٰهِ اَدْوَمُهَاوَاِنْ قَلَّ)) کښې اوګورئ.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: شیٔ دباب دفتح نه مصدردې.معنی ئې اراده کول غوښتل ددې جمع اشیاء راځی.اوجمع الجمع ئې اشیاوات ده.شرّة په معنی د_① خرابی ② تیزی ③ کمزورۍ ④ سپکوالي ⑤ حرص.زیات تفصیل په حدیث ۵۸ کښې تیرشوې دې.فترة دامصدردې دنصر

اوضرب نه په معنی ① دسستئ ② کمزورئ ③ د دوو پیغمبرانو مینځ کښې زمانه ④ د دوو تبو(بخار) مینځ کښې زمانه ⑤ صلح جمع فترات ده.فتورا هم مصدر راځی معنی ئې داده دتیزئ نه روستوساکن کیدل.

**ترکیب** ان حرف مشبه بالفعل.ل جارکل مضاف شئ مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابت پورې.ثابت اسم فاعل دخپل فاعل (هوضمیر) اومتعلق سره شبه جمله خبرمقدم دپاره د ان.شرة اسم موٴخر.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه.واوعاطفه ل جارکل مضاف شرة مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابت پورې.ثابت اسم فاعل سره دخپل فاعل (هوضمیر) اومتعلق نه شبه جمله خبرمقدم.فترة مبتداء موٴخر.خبرمقدم دخپلې مبتداء موٴخرسره جمله اسمیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دخپل معطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۹۷﴾- اِنَّ الرِّزْقَ لَيَطْلُبُ الْعَبْدَ كَمَا يَطْلُبُهُ اَجَلُهُ (ابونعیم)

[تخریج:_ مشکواة: ص:٤٥٤، س:٧، عن ابی الدرداءؓ مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه رزق بنده داسې تلاش کوی لکه څنګه چه بنده لره مرګ تلاش کوی.

**تشریح** چرته چه دانسان رزق لیکلې شوې وی هلته ورته ملاویږی لکه څنګه چه مرګ کوم ځائې اوکوم وخت لیکلې شوې وی هم په هغه مقرروخت باندې راځی دغه شان رزق هم چه کوم ځائې اوکوم وخت لیکلې شوې وی په مقرروخت ملاویږی.دزیات وضاحت دپاره یوه درزق قصه اویوه دمرك قصه لیکلې کیږی.

**رزق په مقرر وخت ملاویږی** دفارسئ په کتاب کښې یوطالب علم اولوستل چه (بزوری برسد) چه رزق په زبردستئ سره رسیږی.ده امتحان کول اوغوښتل اووئیل ئې چه زۀ به نن ډوډئ نۀ خورم،ګورم چه څنګه په زبردستئ سره رسیږی.دغه طالب علم دکورنه بهردیوځنګل په طرف روان شوتردې چه په یوقبرستان باندې تیرشوهلته په یوقَبرباندې متهائې پرته وه چه هغه ئې اولیدله نودهغه ځائې نه په منډه شو.هلته نزدې څو سړو دې را اونیولو او ورته ئې او وئیل چه تامونږه اولیدلونوپه متهائی کښې دې راته زهرواچول اومنډه دې کړه.تیخته کوې زمونږ سره لاړ شه اومتهائی اوخوره.په زور او وهلوسره ئې وربانډې متهائی اوخوړله.دغه شان هم الله تعالی رزق رسوی.

**مرګ هم په مقرروخت راځی** دشام په ملك کښې سلیمان علی نبینا ﷺ ناست وو.نورخلق هم ورسره وو.چه عزارئیل ﷺ راغې اوسلیمان ﷺ دهغۀ نه تپوس اوکړوچه تاسو په یومنټ کښې په یوځائې کښې اوپه بل منټ کښې زرمیله لرې دنوروانسانانو روحونه څنګه اوباسئ نوهغۀ

جواب ورکړوچه دټولې دنياروحونه ويستل ماته داسې دی لکه ديوپليټ نه د انارو دانې چه څومره غواړم هغومره را راواخلم په دې دوران کښې عزرائيل ﷺ يوسړی ته ډير کتل چه دسليمان ﷺ سره ناست وُو.کله چه عزرائيل ﷺ لاړونوهغهٔ سړې را وړاندې شواوسليمان ﷺ ته ئې اووئيل چه داڅوك وو چه ماته ئې ډيرډير کتل نوحضرت اوفرمائيل چه دا عزرائيل ﷺ وو.نوهغه سړې اويريدو.چه چرته زماروح اونهٔ باسی.په دې وجه تاسو داسې اوکړئ چه دهواپه ذريعه ماهندوستان ته اورسوئ.نوهغه هندوستان ته اورسيدلودويمه ورځ خبرراغې چه هغه وفات شوې دې نوسليمان ﷺ دعزرائيل ﷺ نه تپوس اوکړوچه داڅهٔ خبره وه نوهغهٔ ورته اووئيل چه کوم وخت زه تاته راغلې وم نوداسړې تاسره ناست وؤ.ماده ته ددې وجې نه کتل چه ماته دده دروح قبض کولوحکم په هندوستان کښې شوې وو نوماده ته په غورسره کتل چه داهم هغه سړې دې يابل څوك دې معلوميږی خوهم هغه.ليکن دې خوپه ارام سره دشام په ملك کښې ناست دې.دې به په يوروځ کښې هلته هندوستان ته څنګه اورسيږی. بهرحال دعزرائيل ﷺ کتل په مقرروخت دروح وتلودپاره سبب جوړشو.﴿ إِنَّ أَجَلَ ٱللَّهِ إِذَا جَآءَ لَا يُؤَخَّرُ ﴾ کله چه مرګ راشی نوهغه نهٔ روستوکيږی.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: الرزق مفرد دې په معنی دروزئ سره جمع ئې ارزاق دادنصر دباب نه دې رزق ئې مصدرراځی په معنی دروزئ رسولوسره.اجل مفرددې.ددې جمع اجال راځی معنی ئې داده.① مرګ ② وخت ③ موده ④ آو ⑤ بيشك.دا دباب دنصراوسمع نه استعمال دې.ددينه اجل په سکون دجيم سره دامصدر دې دنصرنه ددې معنی سبب ده دسمع نه اکثرخټ کښې د دردپه معنی استعماليږی اجل وئيلې شی دخټ دردته (په کسره دهمزې سره اوسکون دجيم سره)

**ترکيب**۞ ان حرف مشبه بالفعل الرزق اسم دان،ل تاکيديه يطلب فعل هو فاعل العبدمفعول به.ك جار مامصدريه يطلب فعل،ه مفعول به.اجل مضاف،ه مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه فاعل شو ديطلب ثانی دپاره فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبريه په تاويل دمصدرسره مجروردجار،جارسره دمجرورنه متعلق په يطلب اول پورې فعل سره دفاعل اومفعول اومتعلق نه جمله فعليه خبريه خبردان شو.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۹۸﴾- إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِيْ مِنَ الْإِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ (بخاری ومسلم)

[تخريج:۔ مشکواة: ص:۱۸، س:۲۱، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکه شيطان ګرځی په انسان کښې د وينې د ګرځيدو په ځائې کښې.

Scanned by CamScanner

**تشریح**۞ ددې حدیث درې معنی دی.ځکه چه دمجرا په صیغه کښې درې احتماله دی اول احتمال دادې چه شیطان په انسان کښې دغه شان چلیږی لکه چه وینه په خپلو رګونو کښې چلیږی.یعنی شیطان وسوسې اچوی اوپه ګمراه کولو کښې کوشش کوی لکه څنګه چه دوینې دچلیدوپته نهٔ لګی.دغه شان دشیطان د وسوسوپته نهٔ لګی.په دې صورت کښې مجری صیغه دمصدر میمی ده.دویمه معنی داده چه مجرا ظرف زمان دې یعنی شیطان تولهٔ زندګئ کښې وسوسې اچوی ترڅوچه ورته مرګ نوی راغلې.دریمه معنی داده چه صیغه دمجرای ظرف مکان دې.اوپه خپل حقیقت باندې دې یعنی شیطان په حقیقت کښې دانسان دننه دوینې په رګونو کښې ګرځی.ځکه چه هغه لطیف دې.الله تعالی هغهٔ نه داطاقت ورکړې دې زمونږ دامتحان دپاره،مونږله پکاردی چه مونږ دشیطان وسوسو طرف ته توجه ورنکړو. وسوسه راتلل ګناه نهٔ ده راوستل ئې ګناه ده.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: شیطان دباب دنصرنه مصدردې په معنی دسرکشئ کولوسره.یجری دباب ضرب نه دمضارع واحد مذکرصیغه ده انسان مفرد دې.ددې جمع ناس راځی دنسیان نه اخستلې شوې دې په معنی ده هیرولو سره.مجرای دباب دضرب نه مصدرمیمی دې.یادظرف صیغه ده الدم ددې اصل دمیٔ یادمودې.دسمع نه په معنی دوینې سره.په دې کښې یولغت دمة دې په معنی د① حقیر② میږې ③ سپګه ④ پیشو.ددینه دمة په معنی د ـــ ① ګوډئ ② طریقه،جمع ئې دمم راځی.ددینه الدیمومة په معنی ددوام اوهمیش والی سره.

**ترکیب**۞ ان حرف مشبه بالفعل الشیطان اسم دان.یجری فعل ضمیرپه کښې دې هو هغه فاعل من جار الانسان مجرور.جاراومجرورمتعلق شو په فعل پورې .مجری مضاف الدم مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول فیه دفعل.فعل سره دخپل فاعل اومفعول فیه اومتعلق نه جمله فعلیه خبردان.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۹۹﴾- إِنَّ لِكُلِّ أُمَّةٍ فِتْنَةً وَفِتْنَةُ أُمَّتِيْ اَلْمَالُ (ترمذی)

[تخریج:ـ مشکواة: ص:۴۴۲، س:۲۵،عن کعب بن عیاض رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکه دهر اُمت دپاره یو ازمیښت دې،او زما د اُمت ازمیښت مال دې.

**تشریح**۞ هرامت دپاره به څهٔ نه څهٔ امتحان وؤ.ددې اخری امت امتحان مال دې یعنی مال که چرې کم وی نوپه هغې باندې ګذاره کوی اوکه نهٔ کوی.اوکه مال زیات وی نوپه ناجائز ځائې کښې دخرچ کولونه ځان بچ کوی یانهٔ بچ کوی.دامال امتحان دې.چاچه داپه صحیح طریقه خرچ کړوهغه په امتحان کښې کامیاب شو.چاچه په غلط ځائې کښې خرچ کړومثلا په سینما،ټیلی ویژن،یافضول تصویرونو(او فتوانو) جوړولو،یاپه زناکښې وغیره وغیره.مال دغفلت باعث هم جوړیدلې شی لکه په قرآن کریم کښې ددې دمهلك کیدو ذکرراغلې دې.ـ

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُلۡهِكُمۡ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُكُمۡ عَن ذِكۡرِ ٱللَّهِ ﴾ یعنی اې ایماندارو(خیال کوئ) چه غافل نکړي تاسولره ستاسومالونه او اولاددالله تعالی دذکرنه.اودمال دفتنې ذکرهم په قرآن کریم کښې ذکرشوې دې.﴿ إِنَّمَآ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَأَوۡلَٰدُكُمۡ فِتۡنَةٌ ﴾ یعنی بیشك ستاسومال او اولادامتحان دې چه دمال په وجه سره چرته په ګناه کښې پرې نهٔ ووځئ.اودغه شان د اولاد په وجه چرته بخیلان جوړنشی.دواړه څیزونه امتحان دی.هوښیار سړې مال په صحیح طریقه سره ګټی اوخرچ کوی ئې.

**لغوي اوصرفي تحقیق**:اُمة په معنی د① جماعت ② وقت③ قدوقامت ④ طریقه.دادباب دضرب نه دې.اَمَتَ،اَمَتَا قیاس کول اواندازه لګول.ددینه اُمیّ په معنی دهغه کس چه لوستل نشی کولې اوامیة په معنی د"مورکیدلوسره" دفتنې معنی په حدیث ۸۵ کښې اودمال په حدیث ۳۵ کښې تیرشوې ده.

**ترکیب**۞ انّ حرف مشبه بالفعل ل جارکل مضاف امة مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه خبرمقدم دان.فتنة اسم مؤخر.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه.واو عاطفه فتنة مضاف امتی مضاف الیه،مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء المال ئې خبر، مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف،معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۹۳﴾- اِنَّ أَسْرَعَ الدُّعَاءِ إِجَابَةً دَعْوَةُ غَائِبٍ لِغَائِبٍ (ترمذی)

[تخریج:ــ مشکواة: ص:۱۹۵، س:۲۰، عن عبدالله بن عمرو رضی مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکه دعا د زر قبلیدلوپه لحاظ سره دغائب دعا دغائب دپاره ده.

**تشریح**۞ دټولونه زر قبلیدونکې دعاهغه وی.چه یوسړې دیو نا موجود سړی دپاره اوکړی داد ټولونه زرقبلیږی.خصوصا دفرض مانځه نه روستوځکه چه په حدیث شریف کښې راځی چه دفرضونه روستواود تهجدوکولوپه وخت دعاقبلیږی.اودجمعې په ورځ په خاص طوریو ساعت داسې دې چه په هغې کښې دعاضرورقبلیږی.لیکن دهغې علم په ښکاره ډول چاته نشته چه هغه کوم ساعت دې.دجمعې دساعت په باره کښې احادیث مختلف راغلی دی. ددې وجې نه دعلماؤ په دې کښې دڅلویښتونه زیات اقوال دی.په هغې کښې دوه قوله زیات راجح دی یودا چه کله امام دخطبې دپاره ممبرباندې کینی ددغه وخت نه تردمانځه ختمیدلوپورې.اودویم ساعت دماځیګرنه روستو دنمر پریوتلونه مخکښې اخری یوه ګینټه. په هرحال که چرې څوك ددعا دپاره درخواست اوکړی نودهغهٔ دپاره روستوهم دعا پکارده کله چه هغه موجودنهٔ وی.دې دپاره چه ددعا مقصد حاصل شی یعنی دعاقبوله شی او کله

چه قبوله شی نوهغه به هم دده دپاره دعاکوی.ددې کتاب، لوستونکوته هم د احقر(مصنف) دپاره دمغفرت د دُعا درخواست دې.دغائب دعاغائب دپاره ځکه قبلیږی.چه هغه دزړه نه دعا غواړی او ریا هم په کښې نه وی.(والله اعلم)

**لغوي اوصرفي تحقيق**: اسرع دا اسم تفضیل دې.دباب دسمع اوکرم نه مصدر.سرعة راځی.په معنی دتلوار(جَلتی) کولوسره.ددینه سَرعان په حرکات ثلاثه سره په معنی دتلوارکولوسره.دا اسم فعل هم دې اودفعل تعجب دپاره هم استعمالیږی.

**نکته**۞ په عُجْلَتْ اوسُرْعَتْ کښې فرق دې.هغه داچه یوڅیز دوخت نه مخکښې کول عجلت دې اوپه خپل وخت کښې کول لیکن تلوارکول داسرعت دې.عجلت مذموم دې ځکه چه په حدیث شریف کښې راغلی دی (اَلْعُجْلَةُ مِنَ الشَّيْطٰنِ) ددې معنی تیره شوې ده.او سرعت محمود دې ځکه چه قرآن کریم کښې راغلی دی (وَسَارِعُوْا اِلٰى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ) تلوار اوکړئ دخپل خدائې مغفرت طرف ته.دا فرق مولانامحمد ادریس کاندهلوی دمقامات په حاشبه کښې صفحه ۲۹ حاشیه ۱۴ باندې لیکلې دې.الدعاء دادنصر دباب نه مصدر دې.ددې جمع ادعیةٌ راځی.ددینه دعوة په معنی داوازسره راغلې دې.اجابة دادباب افعال نه مصدر دې په معنی دجواب ورکولو اوقبلولوسره.مجردئې دباب دنصرنه دې په معنی دګریوان جوړولو سره.غائب دضرب دباب نه اسم فاعل دې.ددې جمع غیاب اوغیب راځی ددینه غیب په معنی د① پټ څیز ② راز ③ شك.جمع ئې غیوب راځی.اوددینه الغیبة دې یعنی دچا پسې شا بدی بیانول،دا تیرشوې هم دې.

**ترکیب**۞ ان حرف مشبه بالفعل اسرع مضاف،الدعاء مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه ممیز ،اجابة ئې تمیز.ممیزسره دخپل تمیزنه اسم د انَّ.دعوة مضاف،غائب مضاف الیه. مضاف مضاف الیه موصوف، ل جارغائب مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه ثابتةً پورې.ثابتةً اسم فاعل دخپل فاعل (هِیَ ضمیر) اومتعلق نه شبه جُمله صفت شو،موصوف سره دصفت نه خبرد اِنَّ.اِنَّ داسم اوخبر نه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۹۴﴾- اِنَّ الرَّجُلَ لَيُحْرَمُ الرِّزْقَ بِالذَّنْبِ يُصِيْبُهُ (ابن ماجه)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۱۹، س:۲۱، عن ثوبانؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞بې شکه سړې خامخامحرومولې شی درزق نه دخپلې ګناه په وجه،کومه چه هغه کوی

**تشریح**۞ پوره حدیث دادې چه حضور ﷺ اوفرمائیل چه ددعانه سواتقدیربل هیڅ یوشې نشی ردکولې.اودنیکئ نه سواپه عمرکښې زیات والې بل هیڅ څیز نشی کولې.اوبې شکه انسان دخپلې ګناه په وجه د رزق نه محروم ګرځولې شی.ددې حدیث شریف مطلب دادې چه تقدیر لره

روستو کونکې شي صرف دعا ده.اوعمر زیاتونکې څیزهم یودې اوهغه داچه په نیکۍ سره عمرکښې زیات والې راځي.اوګناه سره په عمرکښې کمې راځي.کله چه ګناه کوی نود رزق نه به محرومیږی اوچه درزق نه محروم شي نومرګ به راځي.(ددې وجې نه داخبره یادساتل پکاردی چه دګناه په وجه دانسان حافظه کمزورې کیږی اودګناه په وجه سره په رزق کښې هم کمې راځي.اودګناه په وجه مرګ زر راځي.ددې وجې نه هوښیارهغه دې چه ګناه پریږدی او حلال ګټې نه رزق حاصل کړی.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: یحرم دضرب اوسمع دباب نه دواحدمذکرغائب مضارع مجهول صیغه ده په معنی دمحروم کولوسره اودکرم نه هم راځی په معنی دحرام کیدلوسره.یصیب دادباب افعال نه دواحدمذکرغائب صیغه ده.اصابة ئې مصدردې په معنی ددرست کولوسره.ددې مجرد دنصراوضرب نه مستعمل دې په معنی دصحیح کیدلوسره.ددینه الصواب په معنی ددرست (دحق لائق)

**ترکیب**۞ ان حرف مشبه بالفعل الرجل ئې اسم.ل تاکیدیه یحرم فعل هونائب فاعل الرزق مفعول به.ب جارالذنب ذوالحال یصیب فعل هوفاعل ه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه حال.ذوالحال سره دحال نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق شوفعل پورې،فعل سره دخپل نائب اومفعول به اومتعلق سره جمله فعلیه خبریه خبرذان.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

(۹۶) اِنَّ نَفْسًا لَنْ تَمُوْتَ حَتّٰی تَسْتَکْمِلَ رِزْقَهَا (رواه فی شرح السنة)

[تخریج:۔ مشکواة: ص:۴۵۲، س:۲۳، عن ابن مسعود رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بیشکه هیڅ یوساه لرونکې بالکل نه مړکیږی تردې چه هغه خپل رزق مکمل نکړی

**تشریح او شان ورود**۞ دمکمل حدیث شریف خلاصه داده چه حضور ﷺ اوفرمائیل چه جنت ته نزدې کونکې اودوزخ نه لرې کونکې څیز صرف زماحکم دې.دکوم څیز دکولوچه زۀ حکم اوکړم نوهغه به کول وی.اودکوم څیز نه چه منع اوکړم هغې نه به منع کیدل وی.بیائې اوفرمائیل چه هرروح لرونکې ترهغه وخته پورې نۀ مری ترڅوپورې چه هغه خپل رزق نوی پوره کړې.یعنی کله چه رزق پوره شی نومرګ به راځی.بیائې ددینه مخکښې اوفرمائیل. اَجْمِلُوْا فِی الطَّلَبْ یعنی په اعتدال سره ګټه اوکړئ.انتهی.کوم ځائې چه رزق لیکلې شوې وی هم هلته به ملاویږی.زیاته تشریح ددې حدیث ۹۱ کښې تیره شوې ده.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: نَفس روح ته وئیلې شی اونفس ساه ته وئیلې شی تموت واحدموٴنث غائب دې دباب دنصرنه تستکمل دباب استفعال نه صیغه دواحدموٴنث غائب ده.ددې حدیث دټولو الفاظوتحقیق تیر شوې دې.

**ترکیب** ان حرف مشبه بالفعل نَفسًا اسم د إنَّ.لن تموت فعل هی فاعل حتی جار.تستکمل فعل هی فاعل رزق مضاف هامضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه په واسطه د أن.مجرور دجار.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه خبرد إنّ شو.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿٩٦﴾- إِنَّ الصَّدَقَةَ لَتَطْفِيءُ غَضَبَ الرَّبِّ وَتَدْفَعُ عَنْ مِيْتَةِ السُّوْءِ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:١٦٨، س:٢٤، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه صدقه مړه کوی دالله تعالی غصه،او لرې کوی بد مرګ لره.

**تشریح** صدقه کولوسره دالله تعالی ناراضګی ختمیږی اوغصه یخیږی اوالله تعالی خوشحالیږی.ددې نتیجه داوی چه انسان دخراب مرګ نه بچ کیږی.اوخاتمه ئې په ایمان ګرځی اوهم دا دټولونه لوئې نعمت دې اود ټولونه لوئې مقصددې دکامیابۍ دپاره.

که چرې په مال وی نودروپونه صدقه کیږی.که چرې پیسې نهٔ وی نودبل څهٔ څیز نه اګرچه یوه چوهاره وی صدقه کول پکاردی ځکه چه په نوروصحیح مرفوع احادیثو کښې دصدقې حکم دې تردې حده پورې ذکردې که چرې نورهیڅ هم نهٔ وی نوچاته ښه خبره کول هم صدقه ده.یعنی دځه نه څهٔ صدقه کولوحکم دې.اګرچه داحکم دوجوب په درجه کښې نهٔ دې.لیکن بیاهم داحکم استحبابی ضروردې.اودچاسره چه دځپل مرګ فکروی اودخاتمه بالخیرطلب کونکې وی.هغه به ضروریه دې کارخیرکښې حصه اخلی.دصدقې بهترین حقداران دینی طالبان دی اوغریبانان نزدې رشته داران اوغریبانان ګاونډیان دی.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: تطفیءُ دادباب افعال نه دواحدموئنث غائب صیغه ده په معنی د اور مړکولوسره په مجردکښې دسمع دباب نه راځی.غضب مصدردې په معنی دغصه کولوسره تدفع دا دفتح نه دواحدموئنث غائب صیغه ده په معنی دلرې کولوسره.میتة په اصل کښې موتة ووچه دامصدردنوع دپاره دې لکه جلسة دمیتة معنی① لینتوب ② میرګی.السوء دا مصدردې دنصر دباب نه په معنی دناکاره کیدلوسره.

**ترکیب** ان حرف مشبه بالفعل الصدقة دان اسم.ل تاکیدیه تطفیءُ فعل هی فاعل غضب مضاف الرب مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به جمله فعلیه خبریه معطوف علیه واوعاطفه تدفع فعل هی فاعل میتة مضاف السوء مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول به شو.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه خبردان.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۹۷﴾- اِنَّكَ لَسْتَ بِخَيْرٍ مِنْ اَحْمَرَ وَلَا اَسْوَدَ اِلَّا اَنْ تَفْضُلَهُ بِتَقْوٰى (رواه احمد)

[تخريج:_ مشكواة: ص:٤٤٣، س:٩، عن ابى ذر(اسمه جندب) مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه ته د يو سور رنګ والا يا تور رنګ والانه زيات غوره نه يې،مګر داچه تـه خپل ځان لره تقوی سره فضيلت والا جوړ کړې.

**تشريح** ددې حديث شريف مطلب دادې چه دچاسوروالې ياتوروالې اودچاسپين والې يا دچا رنګ زيات ښائسته کيدل څۀ کمال نۀ دې.په دې کښې څۀ قسمه خيرنشته که چرتـه خيـر او نيکي ده نوصرف په تقوی اونيك عمل کولوکښې ده.يعنی دسنتو په تابعدارئ کښـې ده علامه طيبی ددې حديث شريف معنی داکړې ده چه مراد داحمرنه عجم اوداسودنه عرب دی يعنی عجمی کيدل اوعربی کيدل څۀ کمال اوبهتری نۀ ده.بهتری صرف په تقوی کښې ده.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: داحمرمعنی سوررنګ والا.ددې جمع احامر راځی دادباب دنصراوسمع نه صفت مشبه ده.داد وزن فعل اووصفيت دوجې نه غيرمنصرف دې.ددينه حمرت په معنی دسور رنګ اوالحمارپه معنی دخر،دحمارجمع حَميراو احمرة راځی.اوسوددادباب سمع نه دې صفت مشبه ده په معنی دتوررنګ والا.ددې جمع سود راځی.تفضل دباب دنصرنه د واحد مذکرحاضرصيغه ده.تقوی دباب افتعال نه مصدردې په معنی دپرهيزګارئ سره.ددينه تقی په معنی دپرهيزګار جمع ئې اتقياء راځی دمجرد نه.او ددې نه وقاية مصدر په معنی د حفاظت کول سره راغلې دې.

**ترکيب** ان حرف مشبّه بالفعل ك ئې اسم شولست فعل ناقص انت دده اسم شو.ب جار،خير اسم تفضيل من جاراحمرمعطوف عليـه واوعاطفه لازائده للتاکيد.اسودمعطوف.معطوف سره دمعطوف عليـه نـه مجرور.جارسره دمجرورنـه متعلق شويه اسم تفضيل پورې اسم تفضيل سره دفاعل (هوضمير) اومتعلق نۀ شبه جمله مجروردجارشو.جارسره دمجرورنـه متعلق په ثابتًا پورې.ثابتااسم فاعل سره دفاعل (هوضمير) اومتعلق نۀ شبه جمله خبر،لست فعل ناقص سره داسم اوخبرنـه جمله فعليه خبريه مستثنی منه.الاحرف استثناء ان تفضل فعل انت پکښې ضميرهغه فاعل ه مفعول به.ب جارتقوی مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوفعل پورې.فعل دخپل فاعل اومفعول بـه اومتعلق سره جملـه فعليـه خبريـه مستثنی، مستثنی منه دخپلې مستثنی سره خبردان.ان داسم اوخبرسره جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۹۸﴾- اِنَّ اللّٰهَ لَا يَنْظُرُ اِلٰى صُوَرِكُمْ وَاَمْوَالِكُمْ وَلٰكِنْ يَنْظُرُ اِلٰى قُلُوْبِكُمْ وَاَعْمَالِكُمْ (مسلم)

[تخريج:_ مشكواة: ص:٤٥٤، س:١٠، عن ابى هريرة مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه الله تعالی ستاسو شکلونواو ستاسو مالونو تـه نـه ګوری،ليکن هغـه ګوری ستاسو زړونو او عملونو طرف ته.

**تشریح﴿** الله تعالی زمونږشکلونوته نۀ گوری چه غنم رنگ دې یاتور اویاسوردې یاخړ رنگ دې اونۀ هغه زمونږمالونوته گوری چه څومره مال ئې دې مالداردې یاغریب دې بلکه هغه گوری اخلاص اوتواضع او نوروعملونو ته چه هغه اعمال وزنی هم دی اوکه نۀ دی. که چرې وزنی وی نو بیا دڅومره وزن والادی.چه څومره هم اخلاص وی اوتواضع وی هغه شان به وزن هم زیات وی.ددغه وزن علم به دقیامت په ورځ معلومیږی.بعضې اعمال کم دی لیکن دوزن په اعتبارزیات دی لکه کلمه شریفه،اودرودشریف اوتسبیحات وغیره لوستلوسره عمل نامه ډیره وزنی گرځی.

**سوال** :الله تعالی خو هرڅیزته گوری نوبیائې دا څنگه اوفرمائیل چه شکلونه اومالونوته نۀ گوری؟

**جواب** : الله تعالی هرڅیزپه هر ځائې کښې وینی.لیکن ځنې ته دشفقت اودمهربانئ په نظرسره گوری اوځنې ته نۀ.مال اوشکلونوته درحمت اومهربانئ په نظرنۀ گوری دې دپاره چه دخلقوپه زړونوکښې ددې عزت پیدانشی.اصل دکتلوڅیز دادې چه دااوکتلې شی چه سړې دیقین په کومه درجه کښې کارکوی اوڅومره درجه صدق دې اودکومې درجې اخلاص دې، اودکومې درجې باقی عملونه دی.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: ینظر دادباب دنصرنه دواحد مذکرغائب صیغه ده په معنی د① کتلو ② په غورسره کتل.ددینه نظارة په معنی د① دوربین ② چشمې.اونظیرپه معنی متساوی.
جمع ئې نظراء راځی.صورجمع ده صورة په معنی د① شکل ② تصویر ③ خیالی تصویر.
د صورةٌ دویمه جمع صُوَر هم راځی.قُلُوب جمع ده ددې مفرد قلبٌ دې په معنی د① زړۀ ② عقل.قلب دنصراودسمع نه مصدردې په معنی دمخ یاحالت بدلیدل.

**ترکیب﴿** ان حرف مشبه بالفعل لفظ الله دده اسم لاینظرفعل،هُوَ فاعل الی جار.صورمضاف کم مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف علیه واؤعاطفه اموال مضاف کم مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه مجرور دجار.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه خبردان شو.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه.واؤ زائدۀ لکن استدراکیه ینظر فعل هوفاعل الی جارقلوب مضاف کم مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف علیه واؤعاطفه اعمال مضاف کم مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق شو په فعل

پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۹۹﴾- اِنَّ مِنَ الْمَعْرُوْفِ اَنْ تَلْقٰى اَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ (احمد وترمذی)

[تخریج:_ مشکواۃ: ص:۱٦۸، س:۳۵، عن جابر رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکه د نيکئ څيني داده چه ته ملاؤ شې خپل رورسره رونړ تندی سره.

**تشريح**۞ پوره حديث داسې دې چه حضور ﷺ اوفرمائيل چه هره نيکی صدقه ده.په دې کښې هيڅ شك نشته چه داهم نيکی ده چه دمسلمان رورسره په رونړتندی ملاوشې.اوبيا ئې اوفرمائيل چه داهم نيکی ده چه تاسوواړوئ دخپل بوقې نه د روريه لوښی کښې يعنی مثلا څوك اوبه را اوباسی نوخپل ډك لوښې دهغهٔ په لوښی کښې واړه وې داهم لويه نيکی ده دمسلمان رورسره په خوشحالئ سره ملاويدل دنيکئ کاردې.ځکه چه دهغهٔ زړه به خوشحاله شی.اوديومؤمن زړه خوشحالول عبادت دې لهذاپه رونړتندی سره ملاويدل عبادت اونيك کاردې اوصدقه ده.دمشکوۃ په صفحه ۱۲۸ س۴ باندې دمسلم په حواله باندې صحيح او مرفوع حديث داهم ليکلې دې چه هره تسبيح صدقه ده.اوخپلې ښځې سره ملاويدل هم صدقه ده.اوهرتحميدصدقه ده.اوهرتهليل صدقه ده.اوهرامر باالمعروف يانهی عن المنکر صدقه ده.غرض هره نيکی صدقه ده.صدقه اوتبليغ دادواړه داسې څيزونه دی چه ددې دائره ډيره فراخه ده.

**لغوي اوصرفي تحقيق**:اَلْمَعْرُوْفُ دادضرب دباب نه اسم مفعول دې په معنی د①خير② مشهور ③ رزق ④ احسان.تلقی دادباب دسمع نه دواحدمذکرغائب صيغه ده.لقاء مصدردې په معنی دملاقات کولوسره.وجهٌ مفرد دې.ددې جمع اَوجُهٍ او وُجُوۃ راځی په معنی د_ ① مخ ② مرتبه ③ متوجه کيدل ④ نوع.قسم دادباب دکرم نه مستعمل دې.وجاهة مصدرراځی په معنی د غوره کيدلو،طلق مصدردې دباب کرم نه په معنی دښائسته بيان کونکې.که چرې دادسمع اودنصرنه راشی نوددې معنی (جداکيدل) اولرې کيدل کيږی.ددينه طلاق هم دې.

**ترکيب**۞ ان حرف مشبه بالفعل من جارالمعروف مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوثابت پورې.ثابت اسم فاعل په دې کښې هُوَ ضميردې هغه فاعل.اسم فاعل سره دفاعل اومتعلق نه شبه جمله خبرمقدم شو.ان مصدريه،تلقی فعل،انت فاعل،اخا مضاف،ك مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول به.ب جاروجه موصوف طلق صفت،موصوف سره دصفت نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق شوفعل پورې.فعل سره دخپل فاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعليه خبريه په تاويل دمصدرسره اسم دان.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿ ١٠٠ ﴾- اِنَّ اَوْلَى النَّاسِ بِاللّٰهِ مَنْ بَدَأَ بِالسَّلَامِ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواۃ: ص:٣٩٨، س:٢٦، عن ابی امامۃ رض مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه په خلقو کښې ډېر لو نه غوره دالله تعالی په نزد هغه دی څوک چه سلام سره شروع کوی.

**تشریح** په دې کښې هیڅ شك نشته چه دالله رحمت ته نزدې هغه خلق دی چه دملاقات په وخت په سلام کښې مخکښې والې کوی. حضرت عمر رض فرمائی کله چه تاسو دچاسره ملاویږئ.نود دریو خبروخیال ساتئ؛اول داچه تاسوهغهٔ ته اول سلام کوئ.دویم داچه کله تاسو هغهٔ ته.آواز کوئ نوپه ښهٔ نوم ئې رابلئ؛دریم داچه تاسوهغهٔ ته په مجلس کښې ځائې ورکړئ. په مخکښې حدیث شریف کښې تیرشوی دی.بیا به هم په احادیثوکښې راشی دسلام باره کښې،په سلام کښې مخکښې والې کول دتکبرختمولودپاره بهترین علاج دې.اوکه بل مخکښې والې اوکړو، نوبیا دومره په زورسره جواب ورکول چه هغه ئې واوری واجب دی. اوپه دې جواب ورکولو کښې هم څهٔ نه څه تکبر لرې کیږی اوانسان متواضع جوړیږی.اوهم داد ژوند مقصددې.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: أولی دا اسم تفضیل دې دباب دضرب نه په معنی دلائق زیات حقدار، جمع ئې أوالي راځی.ددینه ولی په معنی د ① دوست ② زوم ③ دڅهٔ کارانتظام کونکې. الناس داد انسان جمع ده.بدء داد باب دفتح نه ماضی ده.بدء مصدردې په معنی دشروع کولوسره.مخکښې والې کول.ددینه مبداء په معنی داصل اوسبب.جمع ئې مبادی راځی.او مبتداء په معنی د ① اول مخکښې ② هغه اسم مسندالیه چه دعوامل لفظیه نه خالی وی. السلام دا دباب تفعیل نه مصدردې په معنی د ① ملاقات په وخت کښې دعا ② د فرمانبرداریٔ دپاره ښکته کیدل.ددې مجردو کښې دباب دسمع نه دې.

**ترکیب** ان حرف مشبه بالفعل اولی اسم تفضیل مضاف الناس مضاف الیه.ب جارلفظ الله مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه اسم تفضیل پورې.اسم تفضیل سره دخپل مضاف الیه اومتعلق نه شبه جمله اسم د اِنّ.من موصوله بدء فعل هوفاعل.ب جارالسلام مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول.موصول سره دصلې نه خبرداِن.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿ ١٠١ ﴾- اِنَّ الرِّبَاءَ وَاِنْ كَثُرَ فَاِنَّ عَاقِبَتَهٗ تَصِيْرُ اِلٰى قُلٍّ (رواه ابن ماجه)

[تخریج:_ مشکواۃ: ص:٢٤٦، س:٤، عن ابن مسعود رض مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه سود اګرچه زیات وی،پس ددې انجام کموالی طرف ته کیږی.

**تشریح**۞ سودهغه بلامعاوضه زیاتی تـه وئیلې شي کوم چه په عقدکښې شرط کړې شي د سودپه ذریعه سره مال لیدلوکښې زیات ښکاري.لیکن په حقیقت کښې بې برکتـه وي.کله غلاکیږي.کله ورکیږي.اوکله خوړلې څکلې شي.غرض داچه ددې اخري نتیجه داوي چه هغه مال زرکم شي.دلته درباء نه مرادهرحرام مال دې.ځکه چه دهرحرام مال انجام داوي چه په هغې کښې برکت نـهٔ وي.ددې پـه مقابلـه کښـې حـلال مـال کښـې الله تعـالی برکـت اچـوي اودهغـې حفاظـت کوي.خاصکرکله چه سرې زکوة،سرسایه وغیره ورکوی نوبیاځـهٔ خطره نـهٔ وي.کـه چرې نـهٔ ئـې ورکوي نومال دماریه شکل کښې په غاړه کښې به ورته اچولې شي.په سودباندې لږنظراچولودپاره اودهغې بدوالې وراندې په بیان دذکربعض المغنیات والاحدیث۴ کښې دې اوکتلې شي.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: الربوادنصر دباب نه مصدردې.په معنی دمال دزیاتیدلوسودهم ددې نـهٔ دې.رِبوَةٌ په معنی دلس لاکهودې عاقبة دادنصراوضرب نـه اسم فاعـل دې په معنی د ــ ① ښه بدله ② نسل ③ دهرځیزاخر.جمع ئې عواقب راځي.تَـصِيْر دادبـاب دضـرب نـه دمـضارع واحدمؤنث غائب صیغه ده په معنی دکموالی سره.(عاقبت) قـل داهم دضرب دبـاب نـه د مصدر صیغه ده.په معنی دکمیدلو.

**ترکیب**۞ ان حرف دمشبه بالفعـل .الربـوادې اسم دې.قلیـل محـذوف ددې خبردې.ان سره دخپل اسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.واومبالغـه.ان وصلیه شرطیه.کثرفعل.هُوَ فاعـل. فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط ددې جزاء فهوقلیـل محذوف دې.فـا جزائیـه.هُو مبتداء.قلیل ئې خبر.مبتداء سره دخبرنـه جملـه اسمیه خبریـه جزاء دشرط.شرط سره دجزانـه جمله شرطیه شوه.فاء تعلیلیه.ان حرف دحروفومشبه بالفعل نه عاقبت مضاف.ه مضاف الیـه. مضاف سره دمضاف الیـه نـه اسم.تـصیرفعل.هی ئـې فاعـل.الی جـار.قـل مجرور.جارسره د مجرورنه متعلق په فعل پورې.فعـل سره دخپـل فاعـل اوسره دمتعلق نـه جملـه فعلیـه خبریـه خبردَ ان.ان سره دخپـل اسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معلله شوه.

﴿۱۰۲﴾- اِنَّ الْغَضَبَ لَيُفْسِدُ الْاِيْمَانَ كَمَا يُفْسِدُ الصَّبِرُ الْعَسَلَ (بیهقی)

[تخریج:ــ مشکواة: ص:۴۳۴، س:۱۵، عن بهزبن حکیم عن ابیه عن جده مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکـه غـصه خامخـا فـاسدوي ایمـان لـره،داسې لکـه څنګـه چـه مُصبَّر فـاسدوي شهدو لره.

**تشریح**۞ غصه دسړی ایمان داشان خرابوی لکه څنګه چه خوړو شهدوکښې مصبر واچولې شي اود شهدو مزه پرې خرابیږي.دغه شان ایمان خراب اوکمزورې شي دغصې په سبب تکبر وي.دناجائزې درجې غصه بغیردتکبرنه چرې نـهٔ راځي.دې وجې نـه دغصې په حالت کښې دپوهې نه کاراخستل پکاردی.دې دپاره چه ایمان خراب نشي.په غصه باندې عمل نـهٔ کوُنکو

لره یعني معافي کونکولره الله تعالی ډیرخوښوي.دغصې دزیاتوالي په وخت کښې اعُوذُبالله وئیل پکاردي.یااودس کول پکاردي.یادهغهٔ ځائې نه پاسیدل پکاردي دې کارونوکولوسره غصه سړیږي.غرض داچه په هریوصورت سره وی دغصې په مقتضی (دبدله اخستلوکار باندې) فوراً عمل نه دی کول پکار.که چرې ایمان مضبوط جوړول وی نوغصه په سفر او اقامت دواړو وختونوکښې کول پکارنه دی.بلکه هروخت هرچاسره نرمې خبرې کول پکاردي.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: الغضب دباب دسمع نه مصدردې په معنی دبغض ساتلوسره.غضب ناك کیدل.یفسددباب افعال نه دواحدمذکرغائب صیغه ده په معنی دخرابول.صبرپه کسرې د ب سره په معنی دایلوا(دیوونې چیرچه ډیرتریخ وی) جمع ئې صبورده.دادباب نصراوضرب نه استعمال دې په معنی دبهادرئ سره برداشت کول،صبرکول.العسل دادنصراوضرب نه مصدردې په معنی دشهدوویستلوسره دامذکراومونث دواړه قسمه استعمالیږي.ددې جمع اعسال راځي.ددینه عاسل په معنی دشهدو ویستونکي.جمع ئې عُسَّل راځي.

**ترکیب**۞اِنَّ حرف مشبه بالفعل.الغضب اسم د اِنَّ.ل تاکید یه.یفسدفعل هُوَفاعل،الایمان مفعول به.ك جار.مامصدریه.یفسدفعل.الصبرفاعل العسل مفعول به.فعل سره دفاعل او مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه خبرد اِنَّ.اِنَّ سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۱۰۳﴾- اِنَّ الصِّدْقَ بِرٌّ وَاِنَّ الْبِرَّ يَهْدِىْ إِلَى الْجَنَّةِ (مسلم)

[تخریج:_ مشکواۃ: ص:۴۱۲، س:۴، عن ابن مسعودؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکه رښتیا نیکي ده او بې شکه نیکي لاربنائي جنت طرف ته.

**تشریح**۞ رښتیا ډیره لویه نیکي ده.او هره نیکي دجنت لار ښائي.ددې وجې نه رښتیا دجنت لاربنائي اومخکښې هم تیر شوې دې چه رښتیا وئیل د اطمینان باعث دی اودروغ دبې ارامئ او بې قرارئ باعث دې.اوحرام دی.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: بِـرّ مفرد دې په معنی دنیکئ جمع ئې ابرار راځي.یهدی دباب دضرب نه دمضارع واحد مذکر غائب صیغه ده په معنی دلار خودنې سره.جنت مفرددې په معنی دباغ.جمع ئې جنات راځي.

**ترکیب**۞ ان حرف مشبه بالفعل الصدق ئې اسم برخبر.ان بسره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه.واوٴعاطفه ان حرف مشبه بالفعل البرئې اسم.یهدی فعل هوفاعل الی جارالجنة مجرور.جار سره دمجرورنه متعلق شویه فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه خبردان.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۱۰۴﴾- وَاِنَّ الْكَذِبَ يَهْدِىْ إِلَى الْفُجُوْرِ وَاِنَّ الْفُجُوْرَ يَهْدِىْ إِلَى النَّارِ (مسلم)

[تخریج:_ مشکواۃ: ص:۴۱۲، س:۴،عن ابن مسعودؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ دروغ گناه ده.او بې شکه گناه لار ښائي جهنم طرف ته.

**تشریح**۞ دروغ ګناه کبیره ده.اوهره ګناه کبیره دجهنم لاره ښائی.ددې وجې نه نتیجه داشوه.چه دروغ دجهنم لاره ښائی.په یوبل روایت کښې داسې دی چه رښتیاسړی ته نجات ورکوی اودروغ انسان هلاکوی.په یوبل حدیث شریف کښې داحکم دې چه رښتیالازم اونیسئ اود دروغونه ډیرځان ساتئ. دروغ صرف اخروی نقصان نهٔ دې بلکه دروغوسره ددنیانقصان هم کیږی.مثلا دروغ وئیلوسره په کاروبارکښې برکت ختمیږی اوبعضې وخت داسې کیږی چه دروغ هم اووائی دې دپاره چه داځیز خرڅ شی لیکن هغه شان اونشی.دا دنیاوی نقصان شو.لیکن دضرورت په وخت توریه جائزده چه ددې صورت ددروغ وی.اصل دروغ په خوش طبعئ اوټوقوکښې هم جائزنهٔ دی.اوحرام دی.د دروغژنو ځائې جهنم دې.(اللهم اجرنامن النار)

**لغوي اوصرفي تحقیق**: کذب دضرب دباب نه مصدردې په معنی د دروغوسره.فجوردباب دنصرنه مصدردې په معنی د① ګناه کولوسره ② دروغ وئیلوسره ③ زناکول ④ کفرکول.
النارمفرددې ددې جمع انوار او نیران راځی.دادنصر دباب نه دې.نور او نیارئې مصدردې په معنی دروښانه کیدوسره.ددینه دې النورپه معنی دروښانه کیدل سره.جمع ئې انوار او نیران راځی.اومناره دروشنائې ځائې دصدق اوکذب دواړه جملې په یوحدیث شریف کښې راغلی دی.

**ترکیب**۞واو عاطفه ان حرف مشبه بالفعل،الکذب ددې اسم،فجورخبرد ان.ان سره داسم او خبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف علیه.واؤعاطفه ان حرف مشبه بالفعل الفجورئې اسم یهدی فعل هوفاعل الی جارالنارمجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه خبردان.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۱۰۵﴾- إِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ عُقُوقَ الْأُمَّهَاتِ وَأْدَ الْبَنَاتِ وَمَنَعَ وَهَاتِ وَكَرِهَ لَكُمْ قِيلَ وَقَالَ وَكَثْرَةَ السُّؤَالِ وَإِضَاعَةَ الْمَالِ

(بخاری ومسلم)[تخریج:۔مشکواة:ص:۴۱۹،س:۳،عن المغیرة رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکه الله تعالی حرام کړل په تاسو باندې د میاندو نافرمانی اود لونړو ژوندئ ښخول،او بخل او غوښتل،او ناخوښه ئې کړل ستاسو دپاره فضول خبرې،او زیات سوال کول،اود مال ضائع کول.

**تشریح**۞ په دې حدیث شریف کښې د اوؤه څیزونو ذکردې.په دې کښې مخکښې څلورحرام دی. اوباقی درې مکروه دی.① الله تعالی دمور نافرمانی حرام کړې ده ځکه چه مور ډیر

تکليفونه برداشت کړل او وي پاللو. ② لونړه ژوندې ښخول ئې هم حرام کړي دی. دجاهليت په زمانه کښې چه به کله لور پيدا شوه. نوهغه به ئې ژوندۍ ښخوله. نن صباهم دلورپه پيدا کيدوباندې دافسوس اظهارکيږی دابالکل غلطه ده لکه څنګه چه هلك دالله تعالى نعمت دې دغه شان جينۍ هم دالله تعالى نعمت دې. د لونړو پيداکيدل ددې وجې نه بدګڼړلې شی چه ددوی واده وغيره به څنګه کوم. ډيره خرچه به کيږی. دا بدګڼړل ښۀ خبره نۀ ده. چاچه پيداکړې ده هم هغه به خوراك اوڅكاك ورکوی. اوهغه به ئې د وادۀ انتظام کوی.

پريشان کيدل نۀ دی پکار. بهرحال لونړه ژوندې ښخول په هرخيال چه وی ناجائزاوحرام دی.

③ منع دامصدرهم لوستلې کيږی اوماضی هم. ددينه مرادبخل دې. اوکنجوسی (شومتيا) داناکاره اخلاق دی شرعی لحاظ سره چه کوم ځائې خرچ کول ضروری دی هلته خرچ نۀ کول ناجائز. درجه کښې کنجوسی ده. ④ هات د ت په کسرې سره. ددې معنی ده. راکړه يعنی غوښتل. که چرې ديوې ورځې اوشپې دخوراك اوڅكاك سامان وی نوبيا سوال کول حرام دی. دلته همدغه مراد دې. ⑤ فضول خبرې کول بغير دضرورت نه. اوږدې خبرې چيړل مکروه تنزيهی دی کله چه خبرې جائزدرجه کښې وی. ⑥ ډيرزيات سوال کول چه دهغې په وجه سوال کول پيشه اوګرځی دامکروه تحريمی دی. بلکه حرام دی. ⑦ مال ضائع کول مکروه تحريمی دی خواه سګريټ څکلوسره وی يافضول خرچۍ سره ياځۀ بل شکل کښې وی مال ضائع کول ناجائزاومکروه تحريمی دی.

**لغوي اوصرفي تحقيق:** حرّم دباب تفعيل نه دماضی ده په معنی دحرام ګرځولوسره. مجردئې سمع اوكرم نه راځی. په معنی دحرام کيدلوسره. امهات د اُم جمع ده په معنی د ① مور ② دڅه شی اصل. امات هم دام جمع راځی. دبعضوپه نزد امات صرف په ځاروکښې مستعمل دې. او اُمهات په انسانانوکښې. و اد دادباب دضرب نه مصدردې په معنی د ژوندۍ ښخولوسره. په قرآن کښې راغلی دی. ﴿ وَإِذَا ٱلْمَوْءُۥدَةُ سُئِلَتْ ۝ ﴾ کله چه تپوس اوکړې شی دژوندې ښخې شوې جينۍ نه) منع دامصدراوماضی دواړه لوستل جائزدی. دادفتح نه دې مرادترې نه بخل دې. هات اسم فعل دې په معنی د (راوړه) مرادغوښتل دی. کره دباب دسمع نه ماضی ده په معنی دناخوښه سره. قيل ماضی مجهول ده دنصرنه اوقال ماضی معروف ده دنصرنه کثرة دباب دکرم نه مصدر دې. سوال دباب فتح دنه مصدردې په معنی دتپوس کولو. که چرې مسئلة مصدر راشی نومعنی ې غوښتل دی. اضاعة دباب افعال نه مصدر دې په معنی دضائع کولوسره. اوپه مجردکښې دضرب نه مستعمل دې.

**ترکيب:** ان حرف مشبه بالفعل لفظ الله اسم دان. حرم فعل هوفاعل على جارکم مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق شوفعل پورې. عقوق مضاف الأمهات مضاف اليه. مضاف سره

دمضاف الیه نه معطوف علیه.واوعاطفه.وادمضاف البنات مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف اول.واوعاطفه منع مصدرمضاف.ددې مضاف الیه محذوف دې ماعلیکم اعطائه.ماموصوله علی جارکم مجرورجارسره دمجرورنه متعلق شوواجب پورې. واجب اسم فاعل سره دفاعل اومتعلق نه شبه جمله خبرمقدم.اعطاء مصدرمضاف ه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء موٴخر.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه صله دموصول.موصول سره د صلې نه مضاف الیه دمنع دپاره.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف ثاني.واوعاطفه.هات مضاف الیه دقول محذوف دپاره.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف ثالث.معطوف علیه سره دمعطوفات ثلاثه نه مفعول به شوه دحرم.حرم فعل سره دخپل فاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شوه معطوف علیه.واوعاطفه.کره فعل هوفاعل لکم جارمجرورمتعلق شویه فعل پورې.قیل په تاویل دلفظ سره مضاف الیه شو دقول محذوف دپاره.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف علیه.قال په تاویل دلفظ مضاف الیه شودقول محذوف.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف اول.واوعاطفه کثرة مضاف السوال مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف ثاني واوعاطفه اضاعة مضاف المال مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف ثالث معطوف علیه سره دخپل معطوفات ثلاثه نه مفعول به شو دحرم.حرم فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه معطوف شو.معطوف علیه سره دخپل معطوف نه خبردان.ان دخپل اسم او خبرسره جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۱۰۲﴾- اِنَّ اَحَبَّ الْاَعْمَالِ اِلَی اللّٰهِ تَعَالٰی اَلْحُبُّ فِی اللّٰهِ وَالْبُغْضُ فِی اللّٰهِ

(احمد وابوداؤد) [تخریج:_ مشکواة: ص:۴۲۷، س:۵ عن ابی ذرؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکه ډیر خوښ په عملونوکښې دالله تعالی په نزد ، دالله تعالی دپاره محبت کول.اود الله تعالی دپاره بُغض کول دی.

**تشریح**۞حضرت ابوذرغفاریؓ فرمائي چه حضورﷺ یوځل مونږته تشریف راوړه،او وې فرمائیل چه تاسوته پته ده چه الله تعالیٰﷻ ته کوم عملونه ډیر خوښ دی نویوصحابیؓ اوفرمائیل حضورﷺ مونځ اوزکوة دغوره اعمالونه دی.اوبل صحابیؓ اووئیل حضورﷺ جهاد دبهترعملونونه دې په دې باندې حضورﷺ داحدیث بیان کړلوچه دالله تعالی دپاره دچا سره محبت کول اودالله تعالی دپاره دچاسره بغض ساتل دابهتراعمال دی.دحب فی الله مطلب دادې چه دالله تعالی دوجې نه دچاسره محبت کول.که چرې په مخلوق کښې دچاسره محبت وی نوهغه هم دالله تعالی دپاره پکاردې ځکه چه محبت دځه ښځ ځیز سره یاښه انسان سره کیږی.دغلط انسان سره محبت کول جائزنه دی.ددې وجې نه چه کله دښوخلقوسره

محبت وی نودالله تعالی دپاره وی.یعنی دالله تعالی محبت دښوخلقوسره وی نوخمونږمحبت هم دهغوی سره دالله دپاره دي.دبغض فی الله مطلب دادي چه کله دیوغلط انسان سره بغض ساتل وی نوهغه هم دالله تعالی دپاره ساتل پکاردی ځکه چه غلط انسان دالله تعالی خوښ نهٔ وی.نوموني دهغهٔ سره څنګه دوستی جوړولی شو.د حُبِ فِی الله اوبُغض فی الله درجه دځان ختمولونه روستوحاصلیږی دیته چه احب الاعمال وئیلي شوی دی هسې نه دي وئیلي شوي. دکمال ولایت نه روستوداً درجه ملاویږی اوهرسړي دادرجه حاصلولې شی.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: دټولو الفاظوتحقيق تیر شوي دي.

**ترکیب**۞ ان حرف مشبه بـ فعل احب اسم تفضیل مضاف الاعمال مضاف الیه الی جارلفظ الله ذوالحال تعالی فعل هوفاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه حال ذوالحال سره دحال نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه اسم تفضیل پوري اسم تفضیل سره دمضاف الیه اوسره دمتعلق نه شبه جمله اسم دان.الحب ذوالحال فی الله جارمجرورمتعلق په ثابتًا پوري حال.ذوالحال سره دحال نه معطوف علیه.واوعاطفه البغض ذوالحال فی الله جارمجرورمتعلق پـه ثابتـاپوري حـال.ذوالحـال سـره دحـال معطـوف.معطـوف علیـه سـره دمعطوف خبردان.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۱۰۷﴾- أَلَاإِنَّ الدُّنْيَامَلْعُوْنَةٌمَلْعُوْنٌ مَافِيهَا إِلَّاذِكْرُاللّٰهِ وَمَا وَالَاهُ وَعَالِمٌ أَوْمُتَعَلِّمٌ (ترمذی) [تخـریج:ــ مشکواة: ص:۱٤٤١، س:۸، عن ابی هريرة رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ خبردار! بې شکه دنیا باندې لعنت کړې شوې دې.لعنت کړې شوې هرهغه څیزدې کوم چه په دې کښې دې.خود الله تعالی ذکر اوهغه کوم چه دالله ذکرته نزدې دې.او عالم او زده کونکې.

**تشريح**۞ دنیا اود دنیا ټول څیزونه دلعنت والادی.په ټوله دنیاکښې صرف څلورڅیزونه داسې دی چه دلعنت نه خالی اودرحمت نه ډك دی.په هغې کښې یو① دالله تعالی ذکردې دا لعنتی نهٔ دې.ذکرڅهٔ څیزدې.ددې تفصیل مخکښې تیرشوي دې.② هغه کارونه چه دهغې سره الله تعالی محبت لری یاهغه کارونه چه دذکرالله دمناسبت په وجه سره دلعنت نه خارج دی.③ څوك چه دعلم دین اوضروریات دین نه خبرداردې اوعمل کونکې هم دې هغه هم ددې لعنت نه خارج دې (دعمل کولوقید نورو احادیثوته کتلوسره لګولې شوې دې)

④ څوك چه علم دین په صحیح نیت سره زده کوی هغه هم په دې لعنت کښې داخل نهٔ دی. تلاوت دقرآن کریم اومونځ وغیره په ذکرالله کښې داخل شو.اودعالم لاندې احادیث داخلیږی ځکه چه اصلی علم علم حدیث دې ځکه چه دحدیث نه بغیر دقرآن کریم معنی په پوهه کښې نهٔ راځی.اواستاذان حضرات په عالم کښې داخل شو.مجاهدین اوتبلیغی حضرات په ذاکرینو

کښې داخل شو.اوشاګردان اولوستلووالاپه متعلم کښې داخل شو.او صحيح کاروبارکونکي اګرکه تجارت کونکې وي.يادفتري کارکونکي وي.يامزدوران وي ليکن مونځ کونکي وي داپه ذکرالله کښې داخل شو.ځکه چه دالله تعالى دټولونه لوئې ذکردادې چه دګناه نه بچ شي اودفرضوپابندي اوکړې شي اوخوك چه غلط كاروباركونكي دې هغه ټول په ملعون کښې داخل دي.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: ملعونة اوملعون دا دواړه دفتح دباب نه داسم مفعول صيغې دي. لعنائې مصدر راځي په معنى د① لعنت کولوسره.② کنځلو کولوسره.③ شرمولوسره. ددينه لعين په معنى دشيطان سره.والا.دادباب مفاعله ماضى ده.موالاة ئې مصدردې په معنى ددوستئ کولوسره.محبت کولوسره.عالم دباب دسمع نه اسم فاعل دې په معنى دخبردار.اومتعلم دباب تفعل نه اسم فاعل دې په معنى دزده کونکې سره.

**ترکيب**۞ الاحرف تنبيه،انّ حرف مشبه بالفعل الدنيا اسم د انّ، ملعونةٌ خبراول ملعون اسم مفعول.ماموصوله في جارهامجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه ثبت پورې.صله دموصول شوه.موصول سره دصلې نه نائب فاعل شودملعون دپاره.ملعون سره دخپل نائب فاعل نه شبه جمله مُفَسر.الاحرف استثناء لغوذکرمضاف لفظ الله مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه معطوف عليه.واوعاطفه.ماموصوله.والافعل هوفاعل ه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه.خبريه صله دموصول.موصول سره دصلې نه معطوف اول. واوعاطفه.عالم معطوف ثاني واوعاطفه متعلم معطوف ثالث.معطوف عليه سره دمعطوفات ثلثه نه مستثنى مفرغ نائب فاعل شود لايحمد محذوف دپاره.لايحمد فعل دخپل نائب فاعل سره جمله فعليه خبريه تفسير.مفسرسره دتفسيرنه خبرثانى دان.ان سره داسم اودواړو خبرونونه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۱۰۸﴾- إِنَّ مِمَّا يَلْحَقُ الْمُؤْمِنَ مِنْ عَمَلِهِ وَحَسَنَاتِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ : عِلْمًا نَشَرَهُ ، وَوَلَدًا صَالِحًا تَرَكَهُ ، وَمُصْحَفًا وَرَّثَهُ ، أَوْمَسْجِدًا بَنَاهُ ، أَوْبَيْتًا لِابْنِ السَّبِيلِ بَنَاهُ ، أَوْنَهْرًا أَجْرَاهُ ، أَوْصَدَقَةً أَخْرَجَهَا مِنْ مَالِهِ فِي صِحَّتِهِ وَحَيَاتِهِ ، تَلْحَقُهُ مِنْ بَعْدِ مَوْتِهِ

(ابن ماجه)[تخريج :_ مشكواة: ص:۳۶، س:۱۷، عن ابى هريرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکه دهغه څيزونونه کوم چه ملاويږي مؤمن ته دده دعمل او دده د نيکونه دده د مرګ نه پس،داسې علم دې کوم چه ده بل ته اوښودلو،او خور ئې کړو،او داسې نيك ځوئې چه ده پريښودلو،يا داسې صحيفه چه هغې لره ده ميراث جوړکړو،يا جمات چه ده جوړکړو، يا داسې کور چه هغه ده دمسافرو دپاره جوړکړو.يا نهر چه هغې لره ده جارى کړو،يا داسې

صدقه چه دهٔ اوويستله دخپل مال نه په خپل صحت او ژوند کښې.(دا ځيزونه) به ملاويږی دهٔ ته ددهٔ دمرګ نه پس.

**تشريح** مؤمن بنده ته دمرګ نه روستوپه کارراتلونکی ځيزنه دده نيکئ اودده عملونه دی. په دې حديث کښې داوو ځيزونو ذکردې کوم چه دمرګ نه روستوپکارراځی.① کوم چه دده زده کړل اونوروته ئې اوخودل اوهغه ئې خواره کړل په دې خورولوکښې بل ته خودل هم داخل دی.② دويم ځيزنيك اولاد دې چه دپلاردمرګ نه روستونيکی کوی.نوثواب ئې پلارته هم ملاويږی.③ دريم ځيزځهٔ نه کتاب دې چه څوك ئې دهغې وارث جوړکړې وی اودده دمرګ نه روستوچه څوك هم دغه لولی نوکتاب ورکونکی ته به ثواب ملاويږی.④ څلورم ځيزچه دمرګ نه روستوانسان ته ملاويږی هغه جومات (مسجد) دې چه دهغې ثواب جوړونکی ته ملاويږی دمرګ نه روستوچه په خپل ژوندکښې ئې دثواب په نيت جوړکړې وی يائې روپئ ورکړې وی.⑤ پنځم ځيزمسافرخانه ده چه چاد مسافرو دپاره جوړه کړې وی اوهلته مسافرد ګرمئ ياديخنئ نه ځان بچ کوی.⑥ نهرياوله ده چه دده روانه کړی وی.يعنی په يوکلی کښې يا کورکښې داوبو کمې وی هلته دهٔ داوبولاره پرانستله داهم دده دمرګ نه روستوپه کار راتلونکې ځيزدې.⑦ هغه صدقه چه په خپل صحت کښې ئې دخپل مال نه ورکړې وی دا ټول ځيزونه دکونکی دپاره صدقه جاريه ده.دمرګ سره به هم ده ته ثواب ملاويدل شروع شی.او قيامته پورې به ددې ذکر شوو نيکو ثواب ملاويږی.که خلق ترې روستو فائده اخلی.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: يلحق دباب دسمع نه دواحد مذکرغائب صيغه ده نشر د نصر دباب نه ماضی ده په معنی د خوَرولوسره مصحف هرمقدس کتاب ته وئيلې کيږی ورث دباب تفعيل نه ماضی ده.بناماضی ده دباب دضرب نه بيتا مفرددې.ددې جمع بيوت راځی.نهرا دا مفرد دې.ددې جمع انهار راځی.

**نکته** اُردو والا نهرته په عربئ کښې قناة وائی.اوعربئ والا نهرته په اردوکښې دريا وائی.او سمندرته بحروائې.اوجهيل ته په عربئ کښې بحيرة.اجرا دادباب افعال نه ماضی ده په معنی دجاری کولوسره اَخرج هم دباب افعال نه ماضی ده.

**ترکيب** ان حرف مشبه بالفعل من جارماموصول يلحق فعل هوفاعل المؤمن مفعول به من جارعمل مضاف ه مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه معطوف عليه.واو عاطفه. حسنات مضاف ه مضاف اليه.مضاف مضاف اليه معطوف معطوف عليه سره دمعطوف نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق شويه فعل پورې بعْدمضاف موت مضاف اليه مضاف.ه مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مضاف بيامضاف سره دمضاف اليه نه مفعول فيه شو دفعل دپاره.فعل دخپل فاعل(هو) اومفعول به المؤمن اومتعلق (من عمله

وحسناته) اومفعول فيه (بعدموته) نه جمله فعليه خبريه صله دموصول.موصول سره دصلې نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق شوثابت پورې ثابت صيغه داسم فاعل په ده کښې (هو) ضميردې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دفاعل اومتعلق نه شبه جمله خبرمقدم د إنّ. علماً موصوف علم فعل هوفاعل ه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبريه معطوف عليه.واو عاطفه نشرفعل هُوَ ضمير فاعل.ه مفعول به فعل سره دفاعل او مفعول به نه جمله فعليه خبريه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه صفت.موصوف سره دصفت نه معطوف عليه.واوعاطفه ولداموصوف صالحاصفت اول ترك فعل هوفاعل ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبريه صفت ثاني.موصوف سره د صفتينونه معطوف اول اوعاطفه مصحفًا موصوف. ورث فعل،هُوَ فاعل.ه مفعول به.فعل فاعل او مفعول به جمله فعليه خبره صفت شو.موصوف سره دصفت نه معطوف ثاني.واو عاطفه، مسجداً موصوف.بنا فعل هُو فاعل.ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبره صفت شو.موصوف سره دصفت نه معطوف ثالث.او عاطفه.بيتًا موصوف ل جارابن مضاف السبيل مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق مقدم شو دبنا دپاره.بنافعل هوفاعل ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق مقدم نه صفت دموصوف.موصوف سره دصفت نه معطوف رابع.اوعاطفه نهرا موصوف اجرا فعل هوفاعل ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبريه صفت موصوف.مَوصوف سره دصفت نه معطوف خامس.اوعاطفه صدقة موصوف اخرج فعل هُوَفاعل،هَا مفعول به،من جارمال مضاف ه مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مجرور دجار.جارسره دمجرورنه متعلق اول شوېه فعل پورې.فى جارصحت مضاف ه مضاف اليه. مضاف سره دمضاف اليه نه معطوف عليه.واوعاطفه.حيوة مضاف ه مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه مجروردجار.جارسره دمجرور نه متعلق ثاني شودفعل.فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلقينونه جمله فعليه خبريه صفت. موصوف سره دصفت نه معطوف سادس.معطوف عليه سره دشپږو معطوفاتونه اسم مؤخر د انّ.إنَ سره داسم مؤخر او خبرمقدم نه جمله اسميه خبريه شوه.تلحق فعل هى فاعل ه مفعول به من جاربعدمضاف موت مضاف اليه مضاف ه مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مضاف اليه شو.بيامضاف سره دمضاف اليه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق شوېه فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعليه خبريه مستاءنفه شوه.

﴿۱۰۹﴾- إِنَّ اللّٰهَ لَيُؤَيِّدُ هٰذَا الدِّيْنَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ (بخاری)

[تخريج:_ مشكواة: ص:٥٣٤، س:١٩، عن ابىهريرة مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکه الله تعالی مضبوطوی دا دین (کله کله) په فاجر سړی باندې.

**تشریح او شان ورود**۞ مکمل حدیث داسې دې چه راوی حضرت ابوهریرةؓ فرمائي چه مونږه دحضور ﷺ سره په غزوه حنین کښې حاضروؤ. نوحضور ﷺ اوفرمائیل دیو داسې سړی متعلق چه دحضور ﷺ سره وو. اوداسلام دعوی ئې هم کوله چه دې دوزخی دې. کله چه جنګ شروع شونودغه (منافق) سړی زبردست جنګ اوکړواوډیرزخمی شو. یعنی دمسلمانانو امداد ئې اوکړو. چه ددغه منافق نوم (قزمان) وو. نویوبل سړی حضور ﷺ ته اووئیل چه حضور ﷺ تاسواوښائې چه داسړې چه منافق دې اوجهنمی دې دهٔ. څنګه دالله تعالی په لاره کښې جنګ اوکړواوډیرزخمی هم شو په دې کښې خلق شك ته نزدې شونودغه منافق سړی دخپل تیردان (دغشوکسوړې) نه غشې رااوویستلواویه هغې ئې خپل ځان اووژلو. نوڅوتنه صحابهؓ حضور ﷺ ته په منډه راغلل اووئیل چه الله تعالی ستاسوخبره رښتیا کړه هغه خوخپل ځان اووژلو. په دې باندې حضور ﷺ اوفرمائیل چه: الله اکبراشهد انی عبدالله ورسوله. اې بلاله اودریږه اودا اعلان اوکړه چه دمؤمن نه سوابه جنت ته هیڅوك داخل نهٔ شی. بیشکه که چرې الله تعالی اوغواړی نوددې دین تائید او امداد کله په په فاجر (منافق) سړی سره هم کوی. (حدیث ختم شو) دفاجرنه مرادمنافق دې. درجل فاجرنه مراد (قزمان) نومې منافق دې.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: یؤید دادباب تفعیل نه مضارع ده په معنی د تاکید کولو اومضبوط کولوسره. رجل مفرددې. ددې جمع رجال راځی. اوفاجرمفرد دې. ددې جمع فجرة اوفجار راځی. دین هم مفرد دې. ددې جمع ادیان راځی. ددین مکمل تحقیق تیر شوې دې.

**ترکیب**۞ ان حرف مشبه بالفعل لفظ الله ئې اسم شو. ل تاکید یؤید فعل هو فاعل هذا اسم اشاره الذین مشارالیه. اسم اشاره سره دمشارالیه نه مفعول به. ب جار الرجل موصوف الفاجر صفت. موصوف سره دصفت نه مجرورد جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې. فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه خبر د إنّ. إنّ سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿۱۱۰﴾- إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يَتَبَاهَى النَّاسُ فِي الْمَسَاجِدِ (ابو داؤد)

[تخریج:- مشکواة: ص:۶۹، س:۱۷، عن انسؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بې شکه دقیامت د نخښو څینې داده چه خلق به فخرکوی د جماتونو باره کښې.

**تشریح**۞ دقیامت د ډیرو نخښو نه یوه داهم ده چه خلق به خپل مینځ کښې دیوبل سره د جوماتونو باره کښې په یوبل فخرشروع کړی. یوبه وائې چه زمونږجومات ډیرښائیسته دې او بل به وائی چه زمونږجومات ډیرښائسته دې دقیامت داعلامه واقع کیدل شروع شوې ده. نورې هم ډیرې نخښې د دیارلسمې، څوارلسمې صدئ نه شروع شوی دی چه دقیامت نزدې

کیدونښې دی.فخرکول هیڅ یوصورت کښې جائزنهٔ دی.اګرچه دافخرپه جوماتونوباندې وی. دفخرمعنی داده چه په ژبې سره تکبراوکړې شی.اودتکبرمعنی داده چه په باطن کښې تکبر وی.یعنی په زړه کښې خپل ځان لوئې اوګڼړی اونورخلق سپك ګڼړی.اومختال هغه ته وائې چه په ظاهری شکل کښې تکبرکوی.اودعجب معنی داده.چه صرف دخپلو صفتونو خیال ورسره وی.داڅلورواړه څیزونه (فخر،تکبر،مختال،عجب) په تکبراوکبرکښې داخل دی.څلور واړه یوشان ناجائزاوحرام دی.په قرآن کریم کښې دی:﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ﴾ او ﴿ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُسْتَكْبِرِينَ ﴾ تکبرد زړه هغه ګنده بیماری ده دکومې په وجه چه شیطان همیشه همیشه دپاره ذلیل اوګرځولې شو.بهرحال دحدیث نه داهم معلومه شوه.چه جُماتونه به د زبانی تعریف دپاره پاتې شی.یعنی په دې کښې به نیك کارونه نه کیږی.یا هسې په نوم به جُماتونه وی.

**لغوی اوصرفی تحقیق**: اشراط دادشرط جمع ده په معنی د① علامه،نښه ② بیکاره او حقیر مال،دویم لفظ شرط دې په سکون دراء سره په معنی دشرط لګولوسره.دادنصراوضرب نه مصدردې.ساعة په معنی د① ګهنټه ② قیامت ③ وخت.ددې جمع ساعات راځی یتباهیٔ دباب تفاعل نه مضارع ده په معنی دیوبل باندې فخرکول.

**نکته**۞ په باب تفاعل کښې اشتراك من الجانبین وی اوپه باب مفاعله کښې هم اشتراك من الجانبین وی.لیکن فرق دادې چه مفاعله کښې ددواړوطرفونونه اشتراك مساوی وی.اوپه باب تفاعل کښې دیوغلبه وی په بل باندې.الناس دانسان جمع ده.اومساجد دمسجد(په کسره دجیم سره) جمع ده.ددې تحقیق په حدیث نمبر۶۶ کښې تیرشوې دې.که چرې یادنوی نوهلته ئې ضروراوګوریٔ.

**ترکیب**۞ ان حرف مشبه بالفعل من جاراشراط مضاف الساعة مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابت پورې خبرمقدم د اِنّ.اِنّ مصدریه.یتباهیٔ فعل الناس فاعل فی جارالمساجدمجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شه په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدرسره اسم موٴخرد اِنّ دپاره.ان سره دخپل خبرمقدم اواسم موٴخرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

## اِنَّمَا

﴿۱۱۱﴾- اِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالُ (رواه ابوداؤد)

[تخریج:۔ مشکواة: ص:۵۵، س:۱، عن جابرؓ مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه د جهالت شفاء تپوس کول دی.

**تشریح او شان ورود** حضرت جابر رضی الله عنه فرمائي چه مونږ څوکسان ملګری په سفر اووتلو نو ديو ملګری په سرباندې کاڼړې راپريوتلواودهغهٔ سرزخمی شو کله چه هغه دشپې اوده شونو سحر هغهٔ ته دغسل حاجت پيښ شونودغه زخمی صحابی دخپلوملګرونه تپوس اوکړوچه آيا زما دپاره دتيمم وهلواجازت شته اوکه نه؟ نوبعضوصحابوٴ رضی الله عنهم اووئيل چه نشته غسل به کوې هغهٔ غسل اوکړونومړشو.راوی وائي کله چه مونږ حضور ﷺ ته راورسيدلو،نوهغوی ته مونږ ټوله قصه واوروله.په دې باندې حضور ﷺ اوفرمائيل چه هغه تاسووژلې دې.الله تعالی دې تاسوقتل کړی کله چه تاسوته دمسئلې علم نهٔ وو.نوتاسوتپوس ولې نهٔ کولو.بيشکه چه دجهالت شفاپه تپوس کولوکښې ده دهغهٔ دپاره تيمم کافی وو.يابه هغه په سر پټۍ تړلې وې ټول بدن به ئې وينځلې وې اودپټۍ په ځائې باندې به ئې مسح کړې وې.(حديث ختم شو)

**فائده** ددې حديث نه معلومه شوه چه کله دمسئلې پوره علم نهٔ وی نومخکښې هيڅ کله خودل پکارنهٔ دی.په تپوس کولوکښې هيڅ ذلت نشته.په تپوس سره جهالت لرې کيږی اوپه علم کښې زياتوالې کيږی.

**لغوي اوصرفي تحقيق**: شفاء دامصدردې دباب دضرب نه ددې جمع اشفيه راځی.جمع الجمع ئې شاف راځی.العی دسمع نه مصدردې په معنی دځهٔ کارکښې عاجزکيدل.سوال دفتح نه مصدردې په معنی دتپوس کولوسره اوکه چرې مسئلهٔ مصدرراشی نومعنی ئې کيږی غوښتل.

**ترکيب** إنّ حرف مشبه بالفعل ماکافه عن العمل شفاء مضاف العی مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مبتداء السوال ئې خبرمبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

﴿۱۱۲﴾- وَإِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالْخَوَاتِيمِ (بخاری ومسلم)

[تخريج:_مشكواة:ص: ۲۰،س:۷،عن سهل بن سعد رضی الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه** بې شکه چه د عملونو مدار دخاتمې په اعتبارسره دې.

**تشريح اوشان ورود** راوی فرمائي چه حضور ﷺ اوفرمائيل(ډيرځل) سړې عمل کوی د دوزخيانو اوهغه دجنتيانو نه وی او(ډير) ځل عمل کوی دجنتيانواوهغه ددوزخيانونه وی بيشک داعمالو دارومدار دخاتمې په اعتبارسره دې (انتهی) دانسان کاميابی هغه وخت وی کله چه دهغهٔ خاتمه ښهٔ وی ډير نيک متقی پرهيزګارصوفی اوکامل ولی دانه شی وئيلې چه زماخاتمه به ضرورښه وی.ځوک چه په صحيح معنی ولی کامل وی هغه دانشی وئيلې اوبو غټ کافردانشی وئيلې چه زماخاتمه به خرابه وی.الله تعالی چه دچانه څهٔ کارغواړی اخلی هغه چه اوغواړی دخسنړی نه دستنې کار واخلی اوچه دذرې نه اوغواړی نوپه هغې کښې دلوئې ګټ طاقت واچوی.اوچه اوغواړی نوګونګ دصفابيان والاجوړکړی.مطلب دادې چه

په ژوند کښې انسان.هرڅنګه چه وو ،دیته کتل دی چه هلته به څنګه وی. په دنیاکښې تکبر کولونه هیڅ فائده نشته.هرکله داپته نشته چه الله تعالی سره هم زماڅهٔ مرتبه شته یانشته.

شعر: جگه جی لگانے کی دنیا نهیں هے:: یه عبرت کی جاهے تماشا نهیں هے

،،دزړه لګولوځائې دنیا نه ده.دا دعبرت ځائې دې تماشه نه ده،،

**فائده** ددې حدیث نه دامعلومه شوه چه ګناه بالکل پرینښودل پکار ده.اوفورا نیك عمل شروع کول پکاردی.ځکه چه دخاتمې هیڅ پته نشته.② دعجب اوتکبرنه فورا خپل زړه صفاکول پکاردی ځکه چه دلته خپل ځان لوئې ښکاره کونکې به هلته پیمال کولې شی.③ چاته په یقین سره دانشی وئیلې کیدې چه داجنتی دې اوکه دوزخی.ځکه چه دخاتمې هیڅ پته نهٔ لګی.

**لغوي اوصرفي تحقيق**:اعمال دعمل جمع ده.خواتیم دخاتمې جمع ده.دادضرب نه دې په معنی د① مکمل کولو ② مهرلګول.

**ترکیب** اِنَّ حرف مشبه بالفعل ماکافه عن العمل.الاعمال مبتداء.ب جار.الخواتیم مجرور، جارسره دمجرورنه متعلق شو معتبرة پورې.معتبرة اسم مفعول هی ضمیریه کښې نائب فاعل.اسم مفعول سره دخپل نائب فاعل اومتعلق نه شبه جمله خبردمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.

﴿١١٣﴾- إِنَّمَا الْقَبْرُ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ أَوْ حُفْرَةٌ مِنْ حُفَرِ النَّارِ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:٤٥٨، س:٢ عن ابی سعید رضی الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه** یقینًا قبر یو باغ دې دجنت د باغونونه.یا یوه کنده ده دجهنم د کندو نه.

**تشریح او شان ورود**داورېدحدیث خلاصه داده چه یوځل حضور ﷺ مانځه دپاره تشریف راوړو نوحضور ﷺ صحابه اولیدل چه هغوی خندل.نوحضور ﷺ اوفرمائیل که چرې تاسوته مرګ یادوی نوتاسوبه نهٔ خندل.مرګ ډیریادوئ ځکه چه قبر هره ورځ وائی چه زهٔ دلرې والی کور یم.زهٔ دځانله والی کوریم،زهٔ دخاورو کوریم،زهٔ دچینجو کوریم کله چه نیك سړې ښخ کړې شی نو قبر ورته وائی مرحبا(ستا راتلل دې مبارك وی) ته په زمکه باندې ګرځیدونکو کښې ماته خوښ وې نن ستا معامله ماته سپارلې شوې ده زرده چه ته به زمامعامله اووینې.بیائې اوفرمائیل چه کوم ځائې پورې ددهٔ نظر رسیږی هغې پورې ددهٔ قبرفراخ کړې شی اودجنت دروازې ورته بیرته کړې شی.اوکله چه کافریا ګناهګار ښخ کړې شی نوقبرورته وائی لامرحبًا یعنی (ستاراتلل نامبارك دی) تهٔ په زمکه ګرځیدونکو کښې ماته ناخوښه وې.نن به تاته پته اولګی.نودڅلوروواړوطرفونونه وربانډې زمکهٔ را یوځائې شی اودده هډوکی اوېختئ یوبل کښې ننوزی.او اویا زهریله اژدهاګانې وربانډې پرینښودلې شی.هره یواژدهادومره زهریله وی که چرې هغه په زمکه باندې یوپوکې هم اوکړی نودنیابه ختمه شی اوپه زمکه باندې به

هيڅ شي زرغون نشي.داعذاب به كافرياګنهګار.انسان ته ترقيامته پورې وركولې شي.بيا حضورﷺ دا ارشاداوفرمائيلوچه قبريادجنت دباغونونه يوباغ دې.يادودوزخ دكندونه يوه كنده ده.(انتهى) اودا اول منزل دې كه چرې دابنه وې نوباقي منزلونه(پړاونه) به هم ښه وى. خدائې مه كړه.كه چرې داخراب شونوپه نورومنزلونوكښې به هم ناكام وى.

**لغوى اوصرفى تحقيق**۞ قبر دا دنصر اوضرب نه مصدردې مقبراً هم مصدر راځي په معنى د ښخولو سره.د قبرجمع قبورراځي.روضة مفرد دې په معنى دباغ ددې جمع رياض اوروضات راځي.داد نصرنه دې په معنى د① تللو.② خودلو.حفرة مفرد دې په معنى دكندې سره.حفر ئې جمع ده.

**تركيب**۞ ان حرف مشبه بالفعل ماكافه عن العمل القبرمبتداء روضة موصوف من جارږياض مضاف الجنة مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق شوثابتةً پورې.ثابتة اسم فاعل هى ضميرپه كښې دې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دفاعل اومتعلق نه شبه جمله صفت.موصوف سره دصفت نه معطوف عليه واوعاطفه حفرة موصوف من جارحفر مضاف النارمضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مجرور دجار. جار سره دمجرورنه متعلق شوپه ثابتة پورې ثابتة اسم فاعل هى ضميرپكښې دې هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه شبه جمله صفت دموصوف.موصوف سره دصفت نه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه جمله معطوفه خبردمبتداءشو.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه شوه.

## اَلْجُمْلَةُ الْفِعْلِيَّةُ

﴿۱۱۴﴾- كَادَ الْفَقْرُ اَنْ يَكُوْنَ كُفْرًا (بيهقى)

[تخريج:ـــ مشكواة: ص:۴۲۹، س:۱۷، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ نزدې ده غريبى چه شى كُفر.

**تشريح**۞ تش لاس اوغريبى كله سړې كفرته رسوى.وجه داده چه كله انسان په الله تعالى اعتراض اوكړى چه زه ئې ولې تش لاس غريب پيداكړې يم.وغيره وغيره(نعوذبالله من ذالك) نودا كفردې.ياپه تقديرباندې اعتراض كولوسره هم انسان كافركيږى.ياخدائې دې نكړى چه سړې مرتدشى.(دكفركلمه اووائې) چه په اسلام كښې خوغريبى ده راشه كافرشه.(نعوذبالله من ذالك) ددې وجې نه هرحالت كښې دالله تعالى شكر اداكول پكاردى.دغريبۍ نه ويريدل نه دى پكار.په يوبل حديث حضورﷺ ارشاد اوفرمائيلوچه غريب خلق به پنځه سوه كاله

مخکښې جنت ته ځی. اودعابه ئې هم کوله چه اې الله ماته دمسکینئ ژوند راکړه.اوما دمسکینئ په حالت کښې وفات کړه.اوما دمسکینانوسره د قبرنه پاسوه.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: فقرداد نصراوضرب اوکرم نه مصدردې.په معنی دغریب کیدلوسره، مفلس کیدلوسره.چه دنصرنه راشی نومعنی ئې کنستل ده اوکه دسمع نه راشی نودامعنی کیږی دملاپه هډوکی کښې دبیمارۍ په وجه دردکیدل.ددې جمع فقورارځی.ددینه دې فقیر په معنی دمفلس جمع ئې فقراء راځی.کفر داد نصرنه مصدردې په معنی دپټولوسره.هم ددینه کافرپه معنی د① پټوونکی سره ② تیارهٔ شپه.③ تیارهٔ ④ دکجورې د غونچې پرده. ⑤ سمندر.⑥ لویه کنده.⑦ دریاب.⑧ ناشکره.⑨ هواره زمکه.⑩ زمیندار.دکافرجمع کفار راځی.داعام طوردمؤمن مقابل راځی.اوکفرة هم دې داجمع عام طورباندې دناشکرئ په معنی کښې استعمالیږی.

**ترکیب**۞ کاد فعل د افعال ناقصه نه،الفقراسم دکاد.ان ناصبه مصدریه یکون فعل ناقص هُوَ ضمیرئې اسم شوکفرائې خبر.یکون سره داسم اوخبرنه په تاویل دمصدرسره خبرد کادَ شو. کادَ سره دخپل اسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه شوه.

**فائده**۞ په افعال ناقصهووکښې جمله اسمیه هم جوړولې شی،اوفعلیه هم.دلته فعلیه زیات مناسب ځکه ده چه بیان دجملې فعلیې نه شروع کیږی.

﴿۱۱۵﴾- يُبْعَثُ كُلُّ عَبْدٍ عَلٰى مَامَاتَ عَلَيْهِ (مسلم)

[تخریج:_مشکواۃ: ص:۴۵۷،س:۲،عن جابرؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ اوچتولې به شی هریو بنده په هغه حالت باندې په کوم چه هغه مړشوې دې.

**تشریح**۞ کوم سړې چه په کوم حالت کښې مری هم په هغه حالت باندې به پورته کولې شی.که چرې په دین باندې مړوی نوپه دین باندې به اوچتولې شی اوعزت به ئې کولې شی.اوکه په دنیا باندې مړشوې وی نوهغه به په دنیاباندې پورته کولې شی اوذلیل به وی ځکه چه دنیا دده مقصود وه اوهغه ئې بیامونده.اوچه په ایمان باندې مړوی نوپه ایمان باندې به پورته کولې شی اوخدائې دې نکړی که چرې په کفرباندې مړوی نوپه کفرباندې به اوچتولې شی (الامان والحفیظ) دغه شان که چرې په نیکئ باندې مړوی نوپه هغې باندې به پاڅولې شی. مقصد دادې چه ددنیا په ژوندکښې ئې چه څهٔ کړی وی هغه به ده ته ملاویږی.اوچه کوم نقصانات ئې جمع کړی وی هغه به هم ده ته ملاوشی.اوحساب به صفاشی.اصل دارومدارپه مرګ دې په کوم حالت باندې چه مری هم هغه شان به پاځی.الله تعالی دې زمونږه خاتمه په کامل ایمان اوکړی.(امین).

**لغوي اوصرفي تحقیق**: یبعث دادفتح نه دمضارع مجهول صیغه ده په معنی د① یوازې لیږلو سره② پاڅول③ دوباره ژوندی کول.هم ددینه باعثٌ دې په معنی دسبب.جمع ئې بواعث راځی.
**ترکیب**۞ یبعثُ فعل کل مضاف عبدمضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه نائب فاعل علی جارماموصوله مات فعل هوفاعل علی جاره مجرورجارسره دمجرورنه متعلق شو په فعل پورې فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه.خبریه صله دموصول.موصول سره دصلې نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۱۲﴾- كَفٰى بِالْمَرْءِ كَذِباً اَنْ يُحَدِّثَ بِكُلِّ مَاسَمِعَ (مسلم)
[تخریج:_ مشکواة: ص:۲۸، س:۲۷، عن ابی هریرة رض مرفوعًا]
**ترجمه**۞ کافی ده دسړی د دروغژن کیدو دپاره،چه خبره اوکړی دهر هغه څیز کوم چه هغهٔ واؤریدل.

**تشریح**۞ دانسان دروغجن کیدودپاره دومره هم کافی ده چه هره اوریدلې شوې خبره نوروته بیانوی.ترڅو چه دخبرې تصدیق نهٔ وی شوې نوبل چاته دهغې بیانول نه دی پکار.کوم سړې چه بغیر د تصدیق نه خبره نوروته بیانوی هغه به دروغژن اوکذاب به وی.دهغهٔ دهرې خبرې نه به اعتماد پورته شی.یادساتل پکاردی چه دروغ په هیڅ صورت کښې هم جائزنهٔ دی اگرچه په ټوقوکښې وی.دروغ په ټوقوکښې وئیل هم جائزنهٔ دی.په دې حدیث شریف کښې کومې خبرې داخل دی؟دمسئلو او احادیثو علوم دینیه وونه چه کومه خبره ده هغه بغیر دځهٔ تحقیق نه نوروته خودل جائزنهٔ دی.اوکه چرې عامه خبره وی یااخباری خبره وی نوکه چرې دهغې نه څهٔ نقصان نهٔ وی بیا جائزدی گنی نوجائزنهٔ دی. ددې وجې نه په هره خبره کښې احتیاط کول پکاردی.دیو دروغ وئیلودپاره یقینًا سل دروغ وئیلې کیږی.په بل حدیث شریف کښې داسې دی وایاکم والکذب یعنی د دروغ وئیلونه ځان بالکل بچ کړئ.په یوبل حدیث کښې دی چه د یو دروغ وئیلونه د رحمت فرشته یو میل لرې تختی.

**لغوي اوصرفي تحقیق**: دټولو الفاظوتحقیق تیر شوې دې.
**ترکیب**۞کفی فعل ب زائده جاره المرء ممیزکذابا تمیز.ممیزسره دتمیزنه مجرور دجار.جار سره د مجرورنه متعلق په فعل پورې.آن ناصبه مصدریه یحدث فعل هو فاعل ب جارکل مضاف ما موصوله سمع فعل هوفاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه صله.موصول سره دصلې نه مضاف الیه شو.مضاف سره دمضاف الیه نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق شو په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدر سره فاعل دکفی.کفی فعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۱۷﴾- يُغْفَرُ لِلشَّهِيْدِ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا الدَّيْنَ (مسلم)

[تخریج:_ مشكواة: ص:۲۵۲، س:۱۳، عن عبدالله بن عمروؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بخښنه کولې شی شهید دپاره دهر یوې گناه سوا د قرض نه.

**تشریح**۞ دشهیدهره گناه چه دحقوق الله سره متعلق وی معاف کولې شی لیکن قرض نشی معاف کیدلې. یعنی حقوق العبادنشی معاف کیدلې. په دې کښې قرض خاص طورسره نشی معاف کیدلې په دې حدیث کښې دشهیدفضیلت ذکرکولوسره سره دا خودل هم مقصود دی چه قرض بغیر دضرورت نه اخستل نهٔ دی پکار. په بل حدیث مرفوع کښې داسې دی "انَّ اَعْظَمَ الذُّنُوْبِ عِنْدَاللهِ اَنْ يَلْقَاهُ بِهَاعَبْدٌبَعْدَالْكَبَائِرِ الَّتِيْ نَهَى اللهُ عَنْهُ اَنْ يَمُوْتَ رَجُلٌ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ وَلَايَدَعُ لَهُ قَضَاءً". چه سړې مړشی اوپه ذمه ئې قرض وی اومال ئې دقرض اداکولو دپاره نه وی پرینښودې. نودا دټولونه لویه گناه ده. ددې مطلب دانه دې چه بالکل قرض اخستل نه دی پکار. بلکه ددې مطلب دادې چه په اداکولوکښې دې کوتاهی نهٔ کوی اود خلقوحق دې نهٔ وهی په یو حدیث قدسی کښې دی چه الله تعالی فرمائې چه څوك قرض اخلی اونیت ئې داداکولووی اوهغه مړشی نوالله تعالی به قیامت کښې دهغهٔ قرض اداکړی. اودچاچه داداکولونیت نه وی نوهغه ته به الله تعالی فرمائې: چه آیا تادا گڼړله چه زهٔ به دخپل بنده حق نهٔ اخلم پس دهغهٔ نیکئ به قرضداری(قرض غوښتونکی) ته ورکړې شی. گنی دهغهٔ گناه به ده ته ورکړې شی (طبرانی، حاکم) په یوبل حدیث کښې داسې راغلی دی چه کوم سړې دتکبر، خیانت اوقرض دې دریوارونه بری وی اومړشی هغه به نیغ جنت ته ځی. دا دواړه حدیثونه په مشکوة شریف ص۲۵۳ کښې موجود دی.

**لغوی اوصرفي تحقیق**: یغفردادضرب نه مضارع مجهول ده په معنی د ښتولوسره. شهیدپه معنی ① حاضر ② په گواهئ کښې امانت دار③ دچادعلم نه چه هیڅ شې پټ نوی ④ دالله تعالی په لارکښې وژلې شوې داکه چرته دسمع دباب نه راشی نومعنی ئې حاضریدل دی. اوکه چرته دا دکرم نه راشی نومعنی ئې داده. گواهی ورکول. دسمع نه هم دگواهئ په معنی کښې استعمالیږی.

**ترکیب**۞ یغفرفعل ل جار، الشهید مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې. کله مضاف ذنب مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه مستثنی منه. الاحرف استثناء الدین مستثنی. مستثنی منه سره دمستثنی نه نائب فاعل. فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۱۸﴾- لُعِنَ عَبْدُ الدِّيْنَارِ لُعِنَ عَبْدُ الدِّرْهَمِ (ترمذی)

[تخریج:_ مشكواة: ص:۴۴۱، س:۱۵، عن ابی هریرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ لعنت کړې شوې دې ددینار په غلام، او لعنت کړې شوې دې د درهم په غلام.

**تشريح** کوم سړي چه ددرهم اودينارداسې غلامی کوی چه خپل دين بربادکړی نوهغه ملعون (لعنتی) دي.اودمال حقيقی محبت چه دچا په زړه کښې دی هغه هم ملعون دي.که چرې الله تعالی پيسې ورکوی نودې راضی وی او کله چه نهٔ ورکوی نوناراضه وی.معلوم شوه چه دده په زړه کښې دمال عقلی محبت موجوددې.مال اګرچه دهرقسم نه وی.ددينارا ودرهم په شکل کښې وی يادسامان په شکل کښې وی.مطلب دادې چه کله دمال محبت وی نوپه دهٔ باندې لعنت دې.مال په جائزطريقه ګټل څهٔ بدخيز نهٔ دي.مقصددادې چه دمال سره محبت نهٔ دې پکار.اګرچه دورخې يولاکه روپۍ ګټی.

**لغوي اوصرفي تحقيق:** الدينارپه معنی د(سرو زرو يوه پخوانۍ سکه چه دسروزروڅلورنيمی ماشې (يوګرام وزنی سکه وی) داډباب تفعيل نه مصدرهم دې په معنی د دينار جوړولو سره. ددې جمع دنانير راځی.الدرهم دسپينو زرو سکه چه وزن ئې درې نيمې ماشې (يوګرام) جوړيږی.( په يوګلوکښې زرګرامه وی.ګرام اوماشه تقريبايو برابردې.په يوچټاکۍ کښې شپيته ماشې وی.دزيات تفصيل دپاره دمفتی محمدشفيع رساله اوزان شرعيه اوګورئ.

**ترکيب** لعن فعل عبدمضاف الدينارمضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه نائب فاعل. فعل سره دخپل نائب فاعل نه جمله فعليه خبريه معطوف عليه،واؤ عاطفه لعن فعل، عبد مضاف الدرهم مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه نائب فاعل.فعل سره دخپل نائب فاعل جمله فعليه معطوف شو.معطوف عليه دخپل معطوف سره جمله معطوفه شوه.

﴿۱۱۹﴾- حُجِبَتِ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ وَحُجِبَتِ الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ (رواه البخاری ومسلم)

[تخريج:_ مشکواة: ص:۴۳۹، س:۱۹، عن ابی هريرة رض مرفوعًا]

**ترجمه** جهنم پټ کړې شوې دې په خواهشاتوسره،اوجنت پټ کړې شويدې په تکليفونوسره.

**تشريح** دوزخ ته سړې هغه وخت ځی کله چه په ناجائزو خواهشاتوعمل کونکې وی اوجنت ته هغه وخت ځی کله چه څهٔ لړشان تکليفونه تيرکړی.يعنی هميشه بندګی اوډير ذکرکوی.په دې کښې پوره دين راځی.په دې کښې اول اول مشقت محسوس کيږی بيامزه راتلل شروع شی.چه لږشان مشقت برداشت کړی ددې په بدله کښې به جنت ته داخلولې شی.جنت په مشقتونوسره پرده کړې شوې دې. کله چه مشقتونه برداشت کړې شی نودجنت لاربه کُهلاو کړې شی.ددې مطلب داندې چه چاته الله تعالی په دنياکښې ارام ورکړې دې مونږه هغهٔ ته اووايوچه ته به جنت ته هله ځې چه خبنتې اوګټې اوچتې کړې ګنی نونشی تللې داغلطه ده. ځکه چه ﴿ ذَٰلِكَ فَضْلُ ٱللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَآءُ ﴾ د شهوتونو نه مرادشهوات محرمه دی لکه شراب څکل،زنا

کول.غیبت کول وغیره. کله چه انسان دګناهونونه بچ شی نوجهنم به په پرده کښې وی ګنی نودهغۀ تولې پردې به مونږدپاره لرې کړې شی.(الآمان والحفیظ).

**لغوي اوصرفي تحقيق:** حجبت دادنصرنه دماضی مجهول واحدمؤنث غائب صیغه ده.حجابًا ئې مصدر راځی په معنی دپټولو،پرده کولودننه راتلونه منع کولو.جمع ئې حجب راځی. شهوات داجمع د شهوة ده.شهوة مصدردې دنصراوسمع نه په معنی د① د خوښولو سره ـ ② ډیر خوښول.مکاره جمع مکرهة ده.مکرهة مصدردې دسمع نه په معنی دناخوښۍ سره. ددینه اَلکُرهٌ په معنی د① مشقت ② انکار.

**ترکیب**۞ حجبت فعل النارنائب فاعل.ب جارالشهوات مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شو په فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه.واوْ عاطفه. حجبت فعل الجنة نائب فاعل ب جارالمکاره مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه معطوف.معطوف سره دمعطوف علیه نه جمله معطوفه.

﴿۱۲۱﴾- **يَهْرَمُ ابْنُ آدَمَ وَيَشُبُّ مِنْهُ اِثْنَانِ الْحِرْصِ عَلَى الْمَالِ وَالْحِرْصَ عَلَى الْعُمْرِ** (رواه البخار ومسلم)[تخریج:ــ مشکواة: ص: ۴۴۹، س:۲۶، عن انس رضی مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بوډا کیږی بُنیادم او ځوانیږی په دۀ کښې دوه ځیزونه: په مال باندې لالچ اوپه عمر باندې لالچ.

**تشریح**۞ انسان بوډاکیږی اوپه ده کښې دوه لالچه زیاتیږی. ❶یودا چه دمال لالچ کونکې جوړیږی.هرڅومره مال چه راشی.خودې وائی داکم دې. ❷دویم داچه دعمر لالچی شی.چه په عمرکښې اضافه اوشی.یادلرئ! چه په مال کښې اضافه نۀ کیږی مګرپه زکواۃ سره یعنی مال په زکوة سره پاکولونه روستو.اوپه عمر کښې زیات والې نۀ کیږی.مګردګناه پریښودلونه روستو.کله چه انسان بوډاکیږی نودخپل عمر دزیاتیدلوتصورکوی. اودمال حریص جوړیږی چه په ناسته ناسته خورم څکم،اوبنګلې جوړوم.حال دادې چه ددۀ خپې په قبرکښې زوړندې دی.دمال محبت داسې ځیزدې چه انسان تباه کوی.لکه چه په یوحدیث شریف کښې تیرشوی دی چه دپیسوعبادت کونکې خو لعنتی وی.

**لغوي اوصرفي تحقيق:** یهرم دادسمع نه مضارع ده.هَرَمًا او مَهرُومًا او مَهرَمَةً ئې مصادردی.په معنی د ډیر بوډا کیدوسره اوکمزوری کیدلوسره.یشب دادضرب نه مضارع ده.شبابا او شبوبًا ئې مصادردی په معنی د① ځوانیدلوسره ② دبلوغ نه تردیرشوکلونوپورې زمانه. شباب دشاب جمع ده په معنی دځوان،حرص دنصراوسمع نه مصدردې په معنی دلالچ کولو اوډیرخوښولو.عمرپه معنی د ژوند سره.عمر مصدردې دضرب اونصرنه په معنی د ډیرعمر بیاموندل.ددینه عُمَر او عَمرو دواړه اسمونه دی.

**ترکیب** يهرم فعل ابن مضاف ادم مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه فاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعليه خبريه معطوف عليه.واوعاطفه.يشب فعل من جاره مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شو په فعل پورې.اثنانِ مبدل منه.الحرص ذوالحال علي جارالمال مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتا پورې.ثابتًا اسم فاعل،په دې کښې هُو ضميرددې فاعل، اسم فاعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه شبه جُمله حال شو.ذوالحال سره دحال نه معطوف عليه،واوْ عاطفه.الحرص ذوالحال.علي جار العمر مجرور،جارسره دمجرورنه ثابتًا سره متعلق حال شو.ذوالحال سره دحال نه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه په جمله معطوفه بدل شو.مبدل منه سره دبدل نه فاعل ديشب دپاره.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه جمله معطوفه شوه.

۱۲۲ - نِعْمَ الرَّجُلُ الْفَقِيْهُ فِي الدِّيْنِ اِنْ اُحْتِيْجَ اِلَيْهِ نَفَعَ وَاِنْ اِسْتُغْنِيَ عَنْهُ اَغْنٰى نَفْسَهٗ

(رواه رزين)[تخريج:_ مشكواة: ص:۳٦. س:۱۰. [illegible]]

**ترجمه** ښهٔ سړې په دين کښې پوهه لرونکې دې.که چرې هغهٔ طرف ته حاجت [illegible] ښکاره کړې شی نو نفع ورکړی اوکه دهغهٔ نه بې نيازی ښکاره کړې شی نوهغه خپل ځان بې نيازه اوساتی.

**تشريح** ښه عالم هغه دې کله چه خلق هغهٔ ته څهٔ حاجت راوړی نوهغه پوره کړی يعنی که څهٔ ددين خبره وی نوهغه ورته اوښائی.يادډين کاروی نوهغه اوکړی.اوکه خلق ورته متوجه نهٔ وی لاپرواهی او بې نيازی ښکاره کړی.نوهغه عالم ته هم پکاردی چه خپل ځان دهغوی نه مستغنی کړی.دهغوی محتاج نه جوړيږی.که چرې تيوشنې کوی نوهغه تولې دې پريږدی.

**فائده** ددې حديث نه معلومه شوه.چه چرته د دين ياد عالمانو بې عزتی کيږی.هلته تيوشنې ښودل جائزنه دی.ځکه چه په ﴿ أَنُلْزِمُكُمُوهَا وَأَنتُمْ لَهَا كَارِهُونَ ﴾ کښې هم داخل دې.

**ترجمه** آيا مونږ هدايت تاسو سره وينخلؤو،او تاسو دا نه خوښوئ.

**لغوی او صرفی تحقيق** نِعمَ په معنی دبهتر.چه دا دکرم نه راشی نوهمدغه معنی ده.اوکه چرې دفتح اونصرنه راشی نوپه معنی دخوشحالئ کښې استعماليږی.احتيج دباب افتعال نه صيغه دماضی مجهول ده.استغنی دباب استفعال نه ماضی مجهول ده.

**ترکيب** نعم فعل مدح الرجل مبدل منه الفقيه صفت مشبه فی جارِالدين مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په صفت مشبه پورې.صفت مشبه سره دخپل فاعل (هُو ضمير) اومتعلق نه شبه جمله بدل شو.مبدل منه سره دبدل نه فاعل دفعل.فعل سره دفاعل جمله فعليه انشائيه شوه.ان حرف شرط احتيج فعل هونائب فاعل الی جاره مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه شرط شوه.نفع فعل هو فاعل.فعل سره

دفاعل نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء نه معطوف علیه.واؤ عاطفه ان شرطیه استغنی فعل هونائب فاعل عن جاره مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.اغنی فعل هُو فاعل نفس مضاف ه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء نه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله معطوفه.

﴿۱۲۳﴾- **يَتْبَعُ الْمَيِّتَ ثَلَاثَةٌ فَيَرْجِعُ اثْنَانِ وَيَبْقى مَعَهُ وَاحِدٌ يَتْبَعُهُ أَهْلُهُ وَمَالُهُ وَعَمَلُهُ فَيَرْجِعُ أَهْلُهُ وَمَالُهُ وَيَبْقى عَمَلُهُ** (بخاری ومسلم)

[تخریج:۔ مشکوٰۃ: ص:۴۴۰، س:۱۲، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ مړی پسې روستو درې څیزونه ځی.پس دوه ترې واپس راځی اویو ورسره باقی پاتې کیږی یوڅیز،هغه پسې دهغه دکورخلق او دهغهٔ مال او دهغهٔ عمل ځی.پس واپس راځی دهغهٔ دکورخلق او دهغهٔ مال،او باقی ورسره پاتې کیږی دهغهٔ عمل.

**تشریح**۞ چه کله انسان مړشی نوهغه پسې روستو روستو درې څیزونه ځی.① دمړی دکورخلق او رشته داران اوڅوك چه هغهٔ لره پیژنی،تول ورسره دقبر پورې ځی.② دهغه مال هم ورسره ځی.دمال نه مراد دلته غلامان.نوکران،څاروی،سورلئ وغیره دی.③ دهغه عمل هم ده سره ځی.لیکن په دغه درې څیزونوکښې دوه واپس راځی یعنی کوم خلق چه ده سره قبرپورې تلی دی.اودهغه مال هم واپس راځی.دمړی سره که چرې څه شې پاتې کیږی نوهغه صرف دده اعمال دی کوم چه ده په دنیاکښې په اخلاص سره کړی دی.اعمال بنه وی یابدوی په هرحال کښې ده سره ځی.دهغې مطابق جزاء اوسزاء مرتب کیږی.

**سوال**: په حدیث کښې دی چه مال ورسره نهٔ ځی اوکه ځی نو تر قبر پورې ځی بیاواپس راځی.نوزکوة ورکول خومال دې اوپه زکواة ورکولوسره ثواب ملاویږی.نومال ورسره لاړو اوثواب ملاوشو.

**جواب**: زکواة ورکول یاصدقه کول دایوعمل دې چه په مال پورې متعلق دې اوهرقسم عمل هرڅه سره چه متعلق دی ضرورځی.ددې وجې نه کوم عمل چه دمال سره متعلق دی هغه به هم ضرورځی.

**لغوی اوصرفی تحقیق**۞ يَتَّبِعُ داد سمع اوفتح نه مضارع ده په معنی د(۱) روستوتللوسره.(۲) یوځای تلل.په نقش قدم تلل.ددینه تابعی دې(هغه څوك چه هغه صحابی لیدلې وی اوداسلام په حالت کښې وفات شوې وی) یرجع دادضرب نه مضارع ده.یبقی دادسمع نه مضارع ده اهل دادنصراوضرب نه مصدردې په معنی دواده کولوسره اوچه دسمع نه راشی نوبیائې معنی ده چاسره زړه لګول.اهل مفرد دې ددې جمع اهال اواهلات وغیره راځی په معنی د۔

① خاندان ② رشته دار.هم ددینه اهلاً وسهلاً دي.اصل عبارت دادي.صادفت اهلاً لاغرباء ووطئت سفلاً لاوغراء"یعنی تادخپل کورخلق بیاموندل نهٔ پردی.اوته نرمې زمکې ته راغلې نه سختې زمکې ته.

**ترکیب۞** ینبع فعل المیت مفعول به ثلاثة فاعل.فعل سره دفاعل اومفعول به جمله فعلیه خبریه شوه معطوف علیه.ف عاطفه یرجع فعل اثنان فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه معطوف اول.واوعاطفه یبقی فعل مع مضاف ه مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول فیه واحدفاعل.فعل سره دفاعل اومفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه معطوف ثانی شو.معطوف علیه سره دمعطوفینو نه مبین.یتبع فعل ه مفعول به اهل مضاف ه مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف علیه.واوعاطفه مال مضاف ه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف اول.واو عاطفه عمل مضاف ه مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف ثانی.معطوف علیه سره ددواړو معطوفینونه فاعل فعل سره دفاعل او مفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه شوه.واؤ عاطفه مال مضاف ه مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه.واوعاطفه یبقی فعل عمل مضاف ه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه بیامعطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه بیان شوداول جملې.مبین،سره ذبیان نه جمله فعلیه خبریه بیانیه شوه.

﴿۱۲۴﴾- كَبُرَتْ خِيَانَةً أَنْ تُحَدِّثَ أَخَاكَ حَدِيْثًا هُوَلَكَ بِهٖ مُصَدِّقٌ وَأَنْتَ لَهٗ بِهٖ كَاذِبٌ (رواه ابوداؤد)

[تخریج:۔ مشکوٰۃ: ص:۴۱۳، ص:۱۵، عن سفیان بن اسد الحضرمیؓ مرفوعًا]

**ترجمه۞** لوئې خیانت دادې چه ته اوښائې خپل رورته څه خبره،په داسې حال کښې چه هغه تاله په دغه (خبره) کښې رښتونې گڼړی.اوته په هغې کښې دروغجن ئې.

**تشریح۞** یومسلمان رورته څه داسې خبره بیانول چه هغه هغې لره رشتیا گڼړی.حالانکه هغه دروغ وی.نودا د دروغوگناه سره سره ډیرلوئې خیانت هم دې.ځکه چه چاته صحیح بیان کول دهغه حق دې اوهغه ته دروغ وئیل خیانت هم دې اوحق ضائع کول هم دی اوگناه کبیره هم ده.

**لغوی اوصرفی تحقیق۞**خیانة داد نصرنه مصدردې په معنی دامانت کښې خیانت کول.ددینه خان هم دې په معنی د دوکان سره جمع خانات راځی.

**ترکیب۞** کبرت فعل هی ممیزخیانة.ممیزسره دتمیزنه مفسر،ان ناصبه مصدریه تحدث فعل انت فاعل اخامضاف ك مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه ذوالحال هو مبتداء لك اوبه دواړه جارمجرورمقدم په مصدق اسم فاعل پورې متعلق شو.مصدق اسم فاعل دخپل

فاعل (هوضمير) اومتعلق نه خبر.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه معطوف عليه.واؤ عاطفه انت مبتداء به جارمجرورمتعلق شويه كاذب پورې خبر.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه معطوف.معطوف عليه سره دخپل معطوف نه حال.ذوالحال سره دحال نه مفعول اول حديثًا مفعول ثاني.فعل سره دفاعل او دواړو مفعولينونه جمله فعليه خبريه تفسير.مفسرسره دتفسيرنه فاعل دكبرت فعل سره دفاعل نه جمله فعليه خبريه شوه.

﴿۱۲۵﴾- بِئْسَ الْعَبْدُ الْمُحْتَكِرُ اِنْ اَرْخَصَ اللّٰهُ الْاَسْعَارَ حَزِنَ وَاِنْ اَغْلَاهَا فَرِحَ (بيهقى)[تخريج:_ مشكواة: ص:۲۵۱، س:۷، عن معاذ رضى الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بد دې ذخيره كونكې بنده، كه ارزان كړى الله تعالى نرخ،نوغمژن شى اوكه نرخ گران كړى نوخوشحاله شى.

**تشريح**۞ داحتكارمعنى ده څه څيز "ذخيره كول" په دې حديث كښې اقوات يعنى دخوراك څيزونه دقحط په زمانه كښې ذخيره كولونه منع كړې شوې ده.كه چرې الله تعالى نرخ ارزان كړى نوخفه شى چه اوس به زماكاربندشى اوخراب به شى.اوكه چرې نرخ زيات شى نو ډير خوشحاله شى چه اوس به ذخيره شوى دخوراك څيزونه ښه خرڅيږى.په بل حديث شريف كښې دخاطىء لفظ هم ذكرشوې دې. لهذا معلومه شوه چه دقحط په وخت كښې ذخيره كول دخوراك په څيزونوكښې ناجائزدى اوحرام دى اوكه دقحط زمانه نه وى يادخوراك څيزونه نه وى نوبيا ذخيره كولونه پس خرڅولوكښې هيڅ گناه نشته.

**لغوى اوصرفى تحقيق**۞ مُحتكر دادباب افتعال نه اسم فاعل دې.احتكارمصدردې په معنى دڅه څيز دگران خرڅولودپاره ساتل.ددې مجرد دضرب اوسمع نه راځى په معنى دظلم كولوسره اوكمى كولوسره.اسعار داجمع ده دسعرپه معنى دنرخ سره.دفتح اوسمع نه راغلې دې په معنى د"اورتيزيدل" اغلا دا دباب افعال نه ماضى ده په معنى د"گران بيامومندل"گران اخستل"مجرد ئې دنصرنه راغلې دې په معنى د(زياتولو اوچتولوسره) فرح دادسمع نه ماضى ده په معنى دخوشحاليدلوسره.

**تركيب**۞ بئس فعل ذم العبدفاعل المحتكرمخصوص بالذم فعل دخپل فاعل اومخصوص بالذم سره جمله فعليه انشائيه شوه.ان حرف شرط.ارخص فعل لفظ الله فاعل الاسعارمفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبريه شرط.حزن فعل هوفاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعليه خبريه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله شرطيه معطوف عليه.واوعاطفه ان شرطيه اغلافعل هوفاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعليه خبريه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله شرطيه جزائيه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه جمله معطوفه شوه.

## نَوْعٌ آخَرُ مِنَ الْجُمْلَةِ الْفِعْلِيَّةِ وَهُوَمَافِيْ اَوَّلِهٖ لَاالنَّافِيَةُ

﴿۱۲۶﴾- لَايَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَتَّاتٌ (بخاری ومسلم)

[تخريج:_ مشکواة: ص:۴۱۱، س:۲۶، عن حذيفة رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ چغلخور به جنت ته نه داخليږی.

**تشريح**۞ چغلي کونکي به جنت ته نه داخليږی. يعني څوك چه دچاخبره دجنګولودپاره کله دلته بيانوی، اوکله هلته.دۀ ته چغلخور وئيلې شی.دې دخپلې سزا موندلونه پس جنت ته تللې شی.په اول ځل نشی داخليدلې.خوکه چرې الله تعالی ئې معاف کړی نوبيانيغ جنت ته داخليدې شی ګنی دعذاب سخته خطره ده.دچغلخوربه جهنم کښې اپريشن کولې شی.نوبيا به جنت ته دتللوقابل شی.ددې وجې نه وئيلې شی چه اوله خبره تَله بيائې وايه.په جهنم کښې به هغه خلق زيات وی دچاچه دژبې ګناه زياته وی.غيبت وی که دروغ وی يا چغلخوری او بهتان وی وغيره وغيره داګناهونه خوهم دژبې دی اوپه دې کښې هره يوه ګناه کبيره ده او جهنم ته دبوتلوسبب دې.(الامان والحفيظ)

**لغوی اوصرفی تحقيق**۞ قتات داد مبالغې صيغه ده.ددې معنی چغلخورده.دادنصرنه مستعمل دې.قطا ئې مصدردې په معنی د دروغ وئيلوسره.نميمة هم چغلخوریٔ ته وئيلې شی.

**ترکيب**۞ لايدخل فعل الجنة مفعول فيه.قتات فاعل،فعل سره دفاعل اومفعول فيه نه جمله فعليه خبريه شوه.

﴿۱۲۷﴾- لَايَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَاطِعٌ (بخاری ومسلم)

[تخريج:_ مشکواة: ص:۴۱۹، س:۱۵، عن جُبيربن مُطعم رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ (تعلق) پريکونکې به جنت ته نه داخليږی.

**تشريح**۞ څوك چه رشته داری پريکونکې دې هغه نيغ جنت ته نه شی داخليدې.درشته داریٔ پريکولو سبب تکبر اوغصه وی.په حديث شريف کښې نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی.چه څوك تاسره تعلقات پريکوی نوته ورسره صله رحمی کوه.اوچه څوك تاسره بدکوی ته ورسره ښه کوه.او ددې حديث زيات تفصيل به په حديث نمبر ۱۳۵ کښې راشی.انشاءالله تعالی.

**لغوی اوصرفی تحقيق**۞ قاطع داد فتح نه داسم فاعل صيغه ده په معنی دپريکونکی،قطعًا ئې مصدردې په معنی دماتولوسره اوپريکولوسره جداکولوسره.ددينه سيف قاطع راغلې دې په معنی دپريکوونکی توري.

**ترکيب**۞ لايدخل فعل الجنة مفعول فيه قاطع فاعل.فعل سره دفاعل اومفعول فيه نه جمله فعليه خبريه شوه.

﴿۱۲۸﴾- لَايُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ (بخاری ومسلم)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:٤٢٩، س:٢٠، عن ابی ہریرۃ رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ نشي چیچلې کیدې مؤمن دَ یوې سورې نه دوه ځله.

**تشريح**۞ مسلمان د یوځل نه زیات نشي چیچلې کیدې.که یوځل ورته تکلیف رسیدلې وی. دځه کاربه وجه.نو بیا دپاره دا سرې هغه کارنۀ کوی.که چرې کامل مسلمان وی.اوکه چرې کامل مسلمان نۀ وی نوبیا یوځل خبرداری ورکولوسره دوباره هم هغه کارکوی اذافاتك الحياء فافعل ماشئت" چه کله درنه شرم اوحیالاړه شی نوچه ځه دې خوښه وی هغه کوه.

**شان ورود**۞ دجنګ بدرپه موقعه ابوغُره یوکافر شاعروو.هغۀ لره حضورﷺ قید کړو.بیائې په هغه باندې احسان اوکړو.هغه نه ئې داوعده واخستله چه ته به زماخلاف خلق نه راپاره کوې اوزما بدبه هم نه بیانوې.ازادئې کړلو.لیکن هغۀ وعده ماته کړه.دحضورﷺ خلاف ئې خلق راپارول.اودحضورﷺ بدئې هم بیانول.هغه حضورﷺ قید کړو.اوس هغه بیااحسان غوښتلوچه دوباره دجیل نه خلاص شم.حضورﷺ اوفرمائیل مؤمن دیوې سورې نه دوه ځل نشي چیچلې کیدې.

**لغوی اوصرفی تحقیق**۞ یلدغ دفتح نه مضارع مجهول ده په معنی دچیچلوسره جحر دامفرد دې په معنی دسورې، سره ددې جمع اجحارراځی اودفتح نه په معنی دسوره کښې ننوتل.

**ترکیب**۞ لایلدغ فعل المومن نائب فاعل من جار، جحرموصوف واحدئې صفت موصوف سره دصفت نه ممیز.مرتین ئې تمیز.ممیزسره دتمیزنه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پوې.فعل سره دخپل نائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۲۹﴾- لَايَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ لَايَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ (رواه مسلم)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:٤٢٢، س:٢٤، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ نه به داخلیږی جنت ته هغه سرې چه محفوظ نه وی دهغۀ ګاونډی دهغۀ د شرنه.

**تشريح**۞ هغه سرې هم نیغ جنت ته بغیر دسزا نه نه شی تللې.چاچه به خپل ګاونډیان تنګول. دهغۀ ګاونډیان به هروخت دهغه دشرنه ویریدل.اودهغوی سکون ختم وو.اودې به په شرارتونو کښې لګیاوو.نو ترڅوچه دې دهغوی نه معافی اونه غواړی ترهغې جنت ته نشي تللې.داسې موقعه کښې الله تعالی هم خوشحاله نۀ وی.یعنی دالله تعالی معافی دحقوق العباد معاف کولونه پس کیږی.داګرچه دشهادت درجه حاصله کړی.لیکن حقوق العباد بیاهم نه معاف کیږی.دچاصرف درې پیسې چه نن صباترینه درې نیمی روپۍ جوړیږی وهل. ددې په بدله کښې به اوه سوه قبول شوی مونځونه ورکولې شی.بهرحال خلاصه داده چه حقوق العباد بغیردمعافۍ نه نۀ معاف کیږی.اود ګاونډیانو ډیرحقوق دی دهغې خیال ساتل پکاردی اوګاونډیان خوشحاله ساتل پکاردی.تردې چه په یوحدیث شریف کښې وړاندې راځی.هغه سرې چه خپله خیټه مړه کړی اودهغه ګاونډی اوږې وی نوهغه مؤمن نۀ دې.

**د ګاونډي قسمونه**۞ دګاونډي درې قسمونه دي.① **کافر**: ددهٔ صرف د ګاونډيکېدو حق دی. ② **مسلمان**: ددهٔ دوه حقونه دي.دګاونډي کېدلوحق اود اسلام حق، ③ **رشته دار مسلمان ګاونډی**: ددهٔ درې حقونه دي.د ګاونډي کېدوحق،اوحق داسلام،اوحق د رشته دارئ.

**لغوی اوصرفی تحقیق**۞ جاردامصدردې دنصرنه په معنی دګاونډي سره جوړاً هم مصدرراځی په معنی د.لرې کېدلوسره.دبوائق جمع ده.دبائقة په معنی دمصیبت سره.شر،بدی دادنصرنه دې په معنی دجګړې کولو او شر کولوسره.

**ترکیب**۞ لایدخل فعل الجنة مفعول فیه من موصوله لایامن فعل جارمضاف ه.مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه فاعل بوائق مضاف ه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه صله شوه.موصول سره دصلې نه فاعل دلایدخل دپاره.فعل سره دفاعل اومفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۳۰﴾- لَايَدْخُلَ الْجَنَّةَ جَسَدٌ غُذِيَ بِالْحَرَامِ (بیهقی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۲۴۳، س:۹، عن ابوبکر رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞داخل به نشي جنت ته هغه جسم چه هغه ته خوراك ورکړې شوې وی په حرامو سره.

**تشریح**۞ هغه بدن به جنت ته داخل نه شی چه حرام خوړلو خوړلو سره ئې غذا حاصله کړې وی. دهغه پرورش په حرام خوراك سره شوې وی یائې قصداً بغیردځه مجبورئ نه حرام غذا خوړلې وی.غرض دا که چرې دهغه خیټې ته حرام خوراك رسیدلې وی نوهغه جنت ته دتللو قابل نه دې.لیکن په جهنم کښې دهغه داپریشن کولونه روستوبیاهغه جنت ته دتللوقابل کیدې شی که الله تعالی معاف نکړو.که چرې معاف ئې کړونوبیابه دهغه مزې وی.لیکن دا معلومه نه ده چه چاچانه معافی کیږی په غیرد سزا ورکولونه چه کله ددې معافئ باره کښې چاته علم نشته چه کیږی به هم اوکه نه.یابه چا چاته کیږی نوهربنده دسزامستحق دې ځوك هم چه ګناه کبیره کوی.حرام خوراك خوړل.مثلا دسود په پیسوباندې خوراك کول یائې رشوت واخستلواوئې خوړلویایئ بل څه ناجائزه ګټه اوکړه دهغې نه ئې خوراك اوکړوداپه ګناه کبیره کښې داخل ده.ددې معافی دتوبې نه روستودالله تعالی په رحمت باندې موقوف ده.که چرې په رشتیاسره توبه اوباسی نوالله تعالی معافی کوی په رشتینې توبه دالله وعده ده دحرامو د شبهې نه هم بچ کیدل ضروری دی.که چرې مجبوری وی چه دحرام خوړلونه بغیر ژوندې نه شی پاتې کیدلې نوپه دومره اندازه خوړل چه ژوندې پاتې شی جائزدی زیات خوراك بیاهم حرام دې.

**لغوی اوصرفی تحقیق**۞ جسد دا مفرد دې په معنی د(۱) انسانی بدن (۲) اوچه وینه جمع ئې اجساد راځی.غذی دادباب تفعیل نه ماضی مجهول ده تغذیه ئې مصدردې په معنی دچاته

خوراك وركول اوتربيت كول په مجردو كښې دنصرنه راغلې دې.

**تركيب** لايدخل فعل الجنة مفعول فيه.جسد موصوف غـذى فعل هو نائب فاعل ب جار، الحرام مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې.فعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه صفت.موصوف سره دصفت نه فاعل.فعل سره دفاعل اومفعول فيه نه جمله فعليه خبريه شوه.

﴿۱۳۱﴾- لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتّٰى يَكُوْنَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهٖ

[تخريج:_ مشكواة: ص: ۳۰، س:٦، عن عبدالله بن عمروؓ مرفوعًا]

**ترجمه** مؤمن نشى كيدې په تاسوكښې هيڅوك ترهغې چه تابع شى دهغه خواهش دهغه څيزكوم چه ما راوړلې دې.

**تشريح** ترڅو پورې چه ټول خواهشات دشريعت تابع نه شى ترهغې پورې انسان كامل مسلمان نشى جوړيدې.په يوبل حديث شريف كښې داسې راغلى دى چه يوځل حضورﷺ كرښه راښكله او وې فرمائيل چه داخط دالله تعالى لاره ده بيائې ښى طرف اوګس طرفته خطونه راخكل اووئې فرمائيل دادشيطان لارې دى.بيائې دا آيت تلاوت كړو﴿وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِىْ مُسْتَقِيْمًا﴾ چه دازما نيغه لاره ده.دارنګ په دې حديث شريف كښې ئې اوفرمائيل چه په تاسو كښې هيڅ يوانسان مؤمن نشى جوړيدلې چه ترڅوچه هغه خپل ټول خواهشات زماد راوړلى دين تابع نه كړى.په نورو الفاظوكښې وئيلې شى ترڅو دسنتو تابعدارى اونكړې شى ترهغه وخته په انسان كښې كامل ايمان نشى پيداكيدې.اونه صراط مستقيم انسان ته حاصليږى.

**لغوى اوصرفى تحليق** هَوٰى دادسمع نه مصدردې په معنى دخواهش،ددينه اَلْهَــوَاء په معنى دفضا.جمع ئې اَهوِيَة راځى.

**تركيب** لايؤمن فعل،احدكم مضاف دمضاف اليه فاعل حتى جاريكون فعل ناقص هواه مضاف مضاف اليه اسم.تبعا صيغه دصفت ل جارماموصوله جئت فعل فاعل،به جارمجرور متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه صله دموصول.موصول سره دصلې نه مجرور.جار سره دمجرورنه متعلق په صفت مشبه پورې.صفت مشبه دخپل فاعل (هو) او متعلق نه خبرد يَكون.يكون سره داسم اوخبرنه جمله فعليه خبريه په تاويل دمصدرسره مجرور.حتى جارسره دخپل مجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه.

﴿۱۳۲﴾- لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يُّرَوِّعَ مُسْلِمًا (ابو داؤد)

[تخريج:_ مشكواة: ص:۳۰۸، س:۱۰، عن ابن ابى ليلى مرفوعًا]

**ترجمه** نه دى حلال د يومسلمان دپاره دبل مسلمان ويرول.

**تشریح مع شان رود۞** ابن ابی لیلی تابعی دا فرمائی چه مونږته صحابه کرامو رضی الله عنهم بیان اوکړو. چه هغوی (صحابه کرام رضی الله عنهم) یوځل دحضور ﷺ سره دشپې په سفرکښې وو. یوصحابی رض اوده شو. بل صحابی رسۍ دهغه دبدن یوې حصې پورې اوتړله. نوهغه اویریدلو. په دې باندې حضورپاک ﷺ ارشاد اوفرمائیلو، «لایحلّ..الخ»، چه دیومسلمان دپاره دا جائزاوحلال نهٔ دی چه هغه بل یومسلمان اویره وی. ددې حدیث مطلب دا راؤوتلو. چه هرمسلمان دپاره بل مسلمان رور ویرول حرام دی. بیا ویرول عام دی. که په خبروسره وی اوکه په عمل سره وی. یا خبرو سره. مثلاً دهمکی ورکول وغیره. یاد ویرې په آوازسره ویرول وغیره، اوعمل سره مثلاً ټوپك دهغهٔ طرف ته نیول وغیره. یاد ګاډی لاندې کولو والا عمل کول وغیره، دا ټول صورتونه، غرض داچه هرهغه صورت ناجائزدې چه په هغې سره دبل مسلمان رور زړه اویریږی.

**فائده۞** هرمسلمان دپاره دیو بل مسلمان رورپه هرشکل سره که په خبرو سره وی اوکه عمل سره وی. اګرچه په ټوقوکښې ولې نه وی. ویرول ناجائز اوحرام دی. البته د کافرپه ویرولوکښې څه باك نشته بلکه بعضې وختونوکښې کافر یرول اوهغه ته دهمکی ورکول ضروری هم وی لکه دجنګ په موقعه باندې اومسلمان ویرول هغه وخت جائزکیږی. کله چه دهغه مسلمان نه دځان خطره وی.

**لغوی اوصرفی تحلیق۞** یُرَوِّعَ دَباب تفعیل نه د مضارع ړومبۍ صیغه ده. په معنی د ویرولوسره. په مجردوکښې دفتح نه راځی. رَاعَ، یَرُوعُ په معنی د واپس کیدلو. یودې رَوع په فتحې دراء سره په معنی د ویرې سره. بل یوروُع دې په ضمې دراء سره، په معنی دزړه کښې د ویرې ځائې

**ترکیب۞** لایحل فعل. ل جارمسلم مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې آن ناصبه مصدریه یروع فعل، هُو ضمیر فاعل مسلمًا مفعول. فعل سره دفاعل اومفعول نه جمله فعلیه خبریه، فاعل، فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۳۳﴾- لَاتَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًافِيْهِ كَلْبٌ وَلَا تَصَاوِيْرُ (بخاری ومسلم)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۳۸۵، س:۷، عن ابی طلحه رض مرفوعًا]

**ترجمه۞** نه داخلیږی فرشتې هغې کورته په کوم کښې چه سپې وی یا تصویرونه وی.

**تشریح۞** په دې حدیث شریف کښې څوبحثونه دی: ❶ **ړومبې بحث** په دې خبره کښې دې چه کوم قسم فرشتې هغه کورته نه داخلیږی. چه په هغې کښې سپې وی یاتصویرونه وی او ولې نه داخلیږی. ❷ **دویم بحث** په دې خبره کښې دې چه کوم سپې پکښې داخل نه دې اودسپی ساتلو مذمت. ❸ **دریم بحث** په دې کښې دې چه د تصویرحرام والې مقید دې اوکه مطلق، اود تصویر په حرمت باندې د احادیثو باران. ❹ **څلورم بحث** په دې خبره کښې دې. چه سپې ئې مفرد ذکر

کړو ،اوتصاوير ئې جمع، ⑤ **پنځم بحث** په دې خبره کښې دې چه دتصاوير سره ئې لا ذکر کړله. اود سپي سره ئې ذکر نکړله.اودا لا کومه لا ده.اوپه اخرکښې يوه فائده ده.

**رومبې بحث⑥** په کوم کورکښې چه سپې يا تصويرونه وی هغه کورته درحمت فرشتې نه راځی.ددې مطلب دادې چه الله تعالی هغه انسان سره دخصوصی رحمت معامله نه کوی.چه هغه په داسې کور يا کمره کښې وی چه په هغې کښې سپې وی.يا دساه لرونکی څيز تصويرونه وی،اوپه دې دوران کښې ثواب کښې کمې راځی.لکه چه عالمانو وئيلی دی.په دې حديث کښې مراد دَملائکونه ملائکې د رحمت دی.عام فرشتې نه دی.هم دغه وجه ده چه حفاظت کونکې فرشتې اودمرګ فرشتې راځی ليکن دهغوی تصويراوسپې خوښ نه وی اوډيرزيات ئې ناخوښه وی.ليکن دالله تعالی دحکم په وجه هغوی هلته ضرور وی.درحمت فرشتې نه تلل اودخدائې پاك خصوصی رحمت نه متوجه کيدل ډيره لويه سزاده.عقلمند چه داحديث اولولی يا واوری نود تصويراوسپی نه به نفرت کوی.

**سوال**: کوم ځائې چه سپې وی هلته درحمت فرشتې ولې نه راځی؟

**رومبې جواب**: دادې چه سپې ډيرزيات پليت څيزونه خوری اوپخپله هم پليت دې اودحرام ځناورونه دې.ددې وجې نه چه کوم ځائې کښې دې وی هلته درحمت فرشتې نه راځی.

**دويم جواب**: دسپی نه بدبوئی ځی اوفرشتې دبدبوئ ځائې ته نه ځی.دبعضوسپوپه نوم شيطان وی.

**دريم جواب**: اوملائکې دشيطان ضد دی ددې وجې نه کوم ځائې چه سپې وی هلته درحمت فرشتې نه ځی.(مرقاة شرح مشکوٰة ج۸ ص۲۲۶ س۸)

**سوال**: کوم ځائې چه د ساه لرونکی تصوير وی هلته درحمت فرشتې ولې نه ځی؟

**رومبې جواب**: تصويرويستل ياپخپله جوړول ياپه چاباندې جوړول يا بغير دشرعی ضرورت نه ساتل،يا دځۀ ساه لرونکی تصويرکتل ناجائزاوحرام دی.ځکه چه په تصويرجوړولوکښې دانسان دطاقت دحده پورې دخدائې دخالقيت يوقسم مقابله ده ځکه چه دبخاری شريف دروايت مطابق دحديث دا الفاظ هم دی (اَشَدّالناس عَذَابًا يَوم القيَامَةِ اَلّذِينَ يضَاهُون بخَلــقِ الله) يعنی ټولونه زيات سخت عذاب به دقيامت په ورځ دهغه خلقووی.څوك چه الله تعالی سره مشابهت اختياروی.يعنی پټه دادعوی کوی چه دالله تعالی پشان مخلوق مونږه هم جوړولې شو (نعوذبالله من شرذالك) هرکله چه دا ډيره دبې حيائې اوګنده قسم ګناه ده نوښکاره ده چه درحمت فرشتې داسې ځائې کښې چرته پاتې کيدلې شی.(حاشيه نمبر ٤ للمشکوٰة صفحه۳۸۵ بحواله طيبی،نيز کليدبهشت صفحه۱٤٤،س۵)

**دویم جواب**: بعضې کم عقل خلق څنې تصویرونه خدائې ګنړي اودهغې عبادت کوی ددې وجې نه مکمل طورباندې هرقسم تصویر (چه ساه لرونکی وی) نه منع کړې شوې ده.اوټول مکلفین (عاقلان بالغان منع کړې شو.نوپاك مخلوق چه درحمت فرشتې دی هغوی خوبه دټولونه مخکښې نفرت کوی اومنع کیږی به.(مرقات شرح مشکوٰة صفحه ۳۲۶،س ۷)

**دویم بحث**۞ ((عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من اتخذ کلبا الا کلب ماشیة اوصید اوزرع انتقص من اجره کل یوم قیراط)) (رواه البخاری ومسلم مشکوٰة صفحه ۳۵۹،س ۱۰)

**ترجمه**۞ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چاچه سپې اوساتلو سوادهغه سپی نه چه دڅاروُو دحفاظت دپاره وی.یا دښکارسپې وی یادفصل دڅوکۍ دپاره.نوکمیږی به ددغه سړی (چاچه سپې ساتلې ددې درې قسمه سپونه علاوه.داجرنه هره ورځ یوقیراط قیراط دایووزن دې چه دهغې اندازه ددانق نیمه (یعنی ددرهم دولسمه حصه) لګولې شوې ده لیکن صحیح مقدارالله تعالی ته معلوم دې.بهرحال په ثواب کښې کمې راځی.ددې کمی تعلق که چرې دراتلونکی وخت اعمالوسره وی نوحقیقی. کمې کیدلې شی اوکیږی.اوکه چرته تیرشوی اعمالوسره دکمی تعلق واخستلې شی نوبیاصرف دګناه زیات والې مقصود دې ځکه چه دتیرشوو اعمالو بربادیدل داهل سنت والجماعت په نزدباندې نه کیږی.سوا ددې نه چه مرتدشی (نعوذبالله منه) البته په احسان کولو سره) اوضرر رسولوسره نیکی ختمیږی.بهرحال د څاروُو دحفاظت دپاره، یاښکار دپاره، یاد فصل دحفاظت دپاره سپې ساتل جائزدی.څوکیدارۍ دپاره ساتل هم په دې کښې داخل او جائزدی.ددې نه علاوه سپې ساتل ناجائزدی.

**سوال**: سپې ساتل ګناه ده لیکن هره ورځ په ثواب کښې کمې ولې راځی؟

**رومبی جواب**: څومره وخت پورې چه سپې ورسره وی دومره وخت به هرقسم عبادت درحمت د فرشتو دنه موجودوالی په وجه ناقص وی پوره ثواب به ورته نه ملاویږی بلکه په ثواب کښې به کمې راځی.

**دویم جواب**: کوم خلق چه سپې ساتی (دهغه درې قسمه سپونه علاوه دکوموذکر چه اوس تیرشو) دهغوی دعبادت ثواب دسزاپه طورکمولې شی.دسپی په مذمت باندې نورهم ډیر احادیث دلالت کوی مثلا یوځل جبرئیل سره د وعدې حضور ﷺ ته رانغلو.کله چه دسپی بچې اوویستلې شو.نوبیا حضور ﷺ ته راغلو.حضور ﷺ ترې نه تپوس اوکړوچه ته د وعدې مطابق د شپې ولې رانغلې.هغوی ورته اوفرمائیل مونږه هغه کورته نهٔ داخلیږو.چه په هغې کښې سپې وی یاتصویر(داټول بحث د مرقات شرح مشکوٰة جلد۸ ص ۱۲۶ نه اخستلې شوې دې)

**دریم بحث**۞دتصویر حرمت مطلق دې هرقسم روح والا اوهرقسم تصویر چه په هغې کښې مخ جوړشوې وی.دهغې راښکل په کیمره پخپله ویستل یاپه بل چاباندې کیمرې سره ویستل،

پخپله جوړول، یاپه چاباندې جوړول.خپل ځان سره ساتل یابل چاسره ساتل ،پخپله کتل یابل چاته خودل داټول بغیر دشرعي ضرورت نه ناجنائزاوحرام دی.البته شناختي کارډ یا پاسپورټ یا ویزې یا لائسنس دپاره تصویر جوړولوکښې ګناه نشته ځکه چه داپه شرعي ضرورت کښې داخل دی لیکن بیاهم دې ته کتل یائې بل چاته خودل بغیرد مجبورئ نه جائزنه دی،دشناختي کارډ یا پاسپورټ وغیره دپاره تصویر ویستلوکښې مونږته ځکه اجازت دې.چه ددې ذمه داري په حکومت باندې ده.

**د تصویرپه حرمت باندې نقلي دلائل**۞ ❶ دا چه درحمت فرشتې نه راځي لکه چه تیرشو.بلکه علماءِ کرام فرمائي: چه دلعنت اوغضب فرشتې به راځي چه په هغې سره به دنیکئ توفیق اخستلې شي.زړه ئې سختیږي اوشیطانان به راجمع کیږي.که چرته په دې حالت کښې ددې خاتمه کیدونکې وی نودخرابې اوناکاره خاتمې ډیره یره کیدې شي.❷ دا دې چه په حدیث شریف کښې راغلي دي چه حضرت عائشې ﷺ یوه نَمرَقَه (وړه تکیه) واخستله.چه په هغې تصویرونه وو.نونبي کریم ﷺ چه کله اولیدل.نوپه دروازه کښې اودریدۀ.دننه ئې تشریف رانۀ وړو.حضرت عائشه ﷺ فرمائي.چه زۀ پوهه شوم.چه دوی دا نۀ خوښوي.مااووئیل چه اې دالله رسوله ﷺ زۀ توبه اوباسم ماڅه ګناه کړې ده نوحضور ﷺ اوفرمائیل چه ددې تکیه څه حالت دې.ما اووئیل چه داماستاسودپاره اخستې ده چه تاسو ورباندې کینئ اوتکیه ورته لګوئ نو وې فرمائیل چه تصویرونو والا ته به عذاب ورکولې شي دقیامت په ورځ او ورته به اوونیلې شي چه ژوندي کړئ هغه کوم چه تاسو پیداکړي (جوړکړي) دي.او وې فرمائیل: چه په کوم کورکښې تصویر وی هلته فرشتې (درحمت) نه داخلیږي.(رواه البخاري ومسلم مشکواة صفحه۳۸۵،س ١٤)❸ حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي.چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل.چه دټولونه د زیات سخت عذاب په لحاظ سره به دالله په نزد تصویر جوړونکي وی.رواه البخاري ومسلم مشکواة صفحه۳۸۵، س۲۵) ❹ حضرت عبدالله بن عباس فرمائي چه مادحضور ﷺ نه اوریدلې دي چه هرتصویر جوړونکې انسان به اورکښې وی.د ساه لرونکي هرتصویر جوړولو بدله کښې به په جهنم کښې عذاب ورکولې شي.عبدالله بن عباس ﷺ مخکښې خپل بیان کښې فرمائي:اې مخاطبه! که چرته ته څه تصویر جوړه وې نودڅۀ وُنې یا غیرذي روح تصویر جوړکړه.(رواه البخاري و مسلم،مشکواة صفحه۳۸۵،س۲۶ و۲۷،وصفحه۳۸۶،س۱)❺ عبدالله بن عباس ﷺ فرمائي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دټولونه سخت عذاب به دقیامت په ورځ هغه خلقوته وی چه ❶ هغۀ پیغمبروژلې وی ❷ چاله چه پیغمبر (په جهادکښې) قتل کړې وی.❸ هغه څوک چه خپله موریاپلارئې قتل کړې وی ❹ اوتصویر جوړه وُنکو لره ❺ اوهغه عالم چه دخپل علم نه فائده نه وی اوچته کړې په دې حدیث شریف کښې صفا ذکر شوی دی چه پنځه قسمه خلق داسې دی چه دټولونه زیات سخت عذاب به ورکولې شي په هغوی کښې

تصویر جوړونکي هم داخل دي.بیادزیات اوسخت عذاب دامطلب نهٔ دي چه همیشه به پهٔ عذاب کښې وی.بلکه معنی داده که چرته ددې حرکتونو کونکي مسلمان وی نوپه گنهگارانو مسلمانانو کښې دټولونه زیات عذاب په جهنم کښې هغه ته وی اوکه چرته کافروی نوبیا خو ښکاره ده چه همیشه عذاب به هم وی اوسخت به هم وی.❺ حضور ﷺ چه به په کورکښې تصویر اولیدلو.نوهمیشه به ئې شلولو.(رواه البخاری،مشکواة ص۳۸۵،س:۱۳)❻ حضرت؟؟ ته دنبی کریم ﷺ دطرفه حکم وو.چه چرته تصویر اووینې نوهغه وړانه وه.

**د تصویرپه حرمت باندې عقلی دلائل❁** عقلا هم تصویرونه ویستل حرام دی.تصویرته پخپله کتل اوبل ته خودل هم ناجائز دی.دلیل عقلی ❶ ړومبې داچه دبت پرستئ ابتداء دتصویرونونه شرع شوې ده.فرق دومره دې چه بت دکانړونه تراشلې شوې وی.اوتصویر دقلم تراشلې شوې دې.لهذا تصویر جوړول بت پرستئ ته نزدې دی نوځکه عقلا هم تصویر جوړول ناجائزدی.

❷ دالله تعالی دنومونونه یونوم المُصوّرهم دې.په صفت باندې ډیر نازدې.هغه دخپلې مصورئ کارنامې ځائې پځائې پیش کړې دی.اودهغه لویه کارنامه دانسان شکل اوصورت گرځولې شوې دې.نوچه څوك دالله تعالی ددې کارنامې نقل جوړول غواړی الله تعالی هغه نه معاف کوی.لهذا تصویر جوړول عقلاهم جائزنهٔ دی.❸ تصویر جوړولو کښې دانسانی طاقت ترحده پورې دخدائې پاك دخالقیت یوقسم مقابله هم په نظر راځی.ددې وجې نه تصویر جوړول عقل ناجائزگرځوی دادرې واړه دلیلونه دکلید بهشت (صفحه۴۴۱) نه اخستې شوی دی.(چه مولانا حاجی محمدطفیل قیوم" تصنیف کړې دې).

**څلورم بحث❁** دادې چه کلب ئې مفرد ذکرکړو،اوتصاویرجمع،ددې وجه ❶ داده چه دسپی نه اکثر نفرت کیږی بیاهم که چرته څوك سپې ساتی نوعام طورباندې صرف یوساتی.ددې وجې نه کلب مفرد استعمالیږی.❷ وجه داده چه سپې دډیر پلیت ډیر ذلیل،ډیر خسیس اوډیر حریص حیواناتونه دې.دده دډیر حرص نه یوه خبره داهم ده چه خپله پوزه په زمکه باندې ږدې اوزمکه بویه وی.گنده اومرداره غوښه دتازه غوښې نه زیاته خوښه وی.اودده په بد خوئی کښې داعجیبه خبره هم ده چه سپې کله دشلیدلوجامواوزړوجامووالاوینی نوغاپی اوحمله پرې کوی لکه چه هغه سپك گڼړی.اوکله چه د رعب او دبدَبې والاوینی.نولکئ خوزَوی اودهغهٔ تابعدارگرځی.بهرحال ددې ذلیل ځناور نه زیات نفرت پیداکول مقصود وُو چه کوم ځایې دایوهم وی دهغه ځائې نه درحمت فرشتې تختی.که چرته دجمع صیغه کلاب ذکرشوې وې نوکیدې شوه چه څوك داخیال اوکړی که چرته ډیرسپی نوبیا به درحمت فرشتې نه راځی. اوکه چرته یووی نوبیا راتلې شی.ددې خیال لرې کولودپاره ئې دمفردصیغه راوړه.( دادسپی باره کښې مضمون دکلیدبهشت ص۴۷تاص۴۸ نه اخستې شوې دې.

سوال: بيا تصاوير ذجمع صيغه ولې راوړې شوه؟ که چرې يوځائې کښې يو يادوه تصويرونه وی نوبياد رحمت فرشتې راځی اوکه نه؟

**رومبې** جواب کوم ځائې چه يوتصوير وی دهغه ځائې نه هم درحمت فرشتې لرې ځی.دليل دادې چه دبخاری اومسلم په روايت کښې دنبی کريمﷺ ارشاد مفرد لفظ سره دې: ،،انّ البَيتَ الَّذِی فِيهِ الصُّورَة لَاتدخُله الْمَلَائِکَة: پاتې شوه دا خبره چه دلته ئې جمع ولې استعمال کړه:ددې دا وجه هم کيدې شی چه دتصويرونو هرځائې ډيروالې وی په خلاف دسپو،چه په يوکورکښې دسپو ډيروالې نه وی.په دې وجه ئې کلب مفرد اوتصاوير ئې دجمعې صيغه استعمال کړله؟

**دويم** جواب دتصاوير جمع راوړلو وجه داده چه تصاوير دتصوير جمع ده.(لغات فيروزی ص:۹۵ اومرقات ج۸ص۳۲۵) اوډ احاديثوپه ذخيره کښې دتصوير لفظ نه وئيلې کيږی.ځکه چه دتصوير په تلفظ کښې لږشان ثقل (درونډوالې) دې اوهغه داسې چه صاد باندې جزم هم وی اوصادتلفظ صحيح کولودپاره دمخرج نه صحيح اداکول ضروری وی.ددې وجې نه دتصوير لفظ غير افصح دې.په خلاف دتصاويرنه چه په ده کښې هيڅ ثقل نشته.

**نکته**۞ تصاوير دتصويرجمع ده.اوصور جمع دصورة ده.په احاديثوکښې که چرته دمفرد لفظ راځی نولفظ دصورة استعماليږی اوکه چرته جمع استعماليږی نود تصاوير لفظ راوړې شی.

**پنځم بحث**۞ سوال: دکلب سره ئې لفظ دلاولې ذکرنکړوچه دتصاويرسره ئې ذکرکړو؟

جواب ځکه چه کلب په سياق دنفی کښې واقع دې.ددې وجې نه دلا ذکر کولوته ضرورت نشته.لکه چه په قرآن کريم کښې ﴿ وَمَآ أَدْرِی مَا يُفْعَلُ بِی وَلَا بِكُمْ ﴾ دې دلته هم لابی نهٔ دې ذکر شوې.ځکه چه روستو نفی ده.صرف په بکم باندې لادې.دغه شان دلته په حديث کښې دکلب سره لا نشته دې.

سوال: بياخوتصاوير هم په سياق دنفی کښې واقع دې هلته ولې لامذکوردې ؟

جواب تصاوير سره دلا ذکر صرف دتاکيد دپاره دې.چه داشبه لرې شی چه کوم ځائې سپې اوتصوير دواړه وی هلته درحمت فرشتې نهٔ راځی اوچه کوم ځائې يووی هلته راځی.نوچه لا ذکرشو داشبه لرې شوه چه کوم ځائې صرف سپې وی هلته هم درحمت فرشتې نه راځی اوچه صرف تصوير وی هلته هم درحمت فرشتې نه راځی.

**فائده**۞ دتصوير اوسپی په مذمت کښې چه څومره احاديث راځی هغه اکثردبخاری شريف اومسلم شريف مرفوع اوډير قوی احاديث دی.ددې وجه نه دتصوير حرام والې هم ډير قوی اومضبوط دې.يعنی بغير دضرورت شرعيه نه تصوير جوړول ياکتل وغيره ټول حرام دی

اودسپي ساتلوحرمت هم ډيرسخت دې.ددرې قسمه سپونه علاوه دباقي ټولوسپوساتل دعذاب باعث دې.اوكه چرته دمرګ وخت كښې هم هغه وى نودناكاره مرګ خطره ده.دسپو باره كښې داخبره يادساتل پكاردى هغه سپې چه دهغې ذكرپه حديث كښې شوې دې يعنى دښكاردپاره وى يادفصل دحفاظت (څوكې) يادځاروو دحفاظت دپاره وى دهغې مطلب دادې چه داساتل صرف حرام نۀ دى،دكراهت تنزيهى نه خالى هم نۀ دى.

**كلام خلاصه۞** دارا اووتله چه هرقسم تصويرجوړول ياكتل حرام دى كه هغه تصوير متحرك (حركت كونكې) وى يانه وى.په ټيلى ويژن وى ياپه اخبار،وى سى ار،باندې وى ياپه ګنده رسالوباندې.خواه ټيلى فون كولوكښې ليدلې شى دحاجيانووى يادمورپلار ياد پير ياد استاذ،غرض دادې چه بغير ددسخت ضرورت نه داټول صورتونه حرام دى.ددې زيات تفصيل اودمختلف مفتيانو.فتاوى كه چرته څوك كتل غواړى نودافضال احمد صاحب يو ترتيب شوې كتاب دې چه دهغه نوم دې (ٹی وی اور ریڈیو کےشرعی احکــام) دهغې مطالعه ډيره مفيده ده.باقي پاتې داخبره چه سپى ساتل څنګه دى هغه سپى چه دهغې اجازت داحاديثونه ملاويږى په هغې كښې دوه قوله دى❶ يودادې چه درې قسمه سپى ساتل چه دهغې اجازت داحاديثونه ملاو شوې دې بغير دكراهت نه جائزدى.هم دغه مذهب دې دټولوائمه وو❷ دامام نووىؒ په نزدباندې دهرقسم سپى ساتل منع دى دعموم په وجه.❸ دبعضوپه نزد دغه درې قسمه سپى ساتل هم مكروه دى.(كذافى الطيبى والمرقات جلد۸ ص۳۲۵هذاهوالمرام والله اعلم بحقيقة الكلام)

**لغوى او صرفى تحقيق۞** ملائكه دادجمعې صيغه ده ددې مفرد دملك دې په معنى د(فرشته) يَبَا مصدردې دضرب نه په معنى دشپې تيرولوڅائې.كلب مفرددې ددې جمع كلاب راځى په فتحې اوكسرې دكاف سره په معنى دسپى سره.جمع الجمع ئې اكالب اوكلابات راځى. تصاوير دادجمع صيغه ددې مفرد تصوير زيات صحيح دې (لغات فيروزى ص۹۵والمرقات جلد۸ص ۳۲۵)دتصوير لغوى معنى "شكل جوړول دى"( المنجد.كتاب التعريفات ص۵۹ والمرقات جلد۸ ص۳۲۵)

**تركيب۞** لاتدخل فعل الملائكة فاعل يبَا موصوف فى جار ه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه ثبت فعل محذوف پورې.كلب معطوف عليه واو عاطفه لا زائده للتاكيد،تصاوير معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه فاعل دثبت،ثبت فعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه صفت.موصوف سره دصفت نه مفعول فيه.فعل سره دفاعل اومفعول فيه نه جمله فعليه خبريه شوه.

﴿۱۳۴﴾- لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتّٰى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهٖ وَوَلَدِهٖ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ(رواه بخارى ومسلم)[تخريج:ـ مشكوٰة ص:۱۲، س:۷-۸ ، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه۞** مؤمن نه دې په تاسوكښې يوهم تردې پورې چه زۀ زيات خوښ نه شم هغۀ ته دهغۀ د مورپلار او اولاد اودټولو خلقونه.

**تشریح**۞ دمحبت دوه قسمونه دی ❶ طبعی محبت ❷ عقلی محبت.په حدیث شریف کښې عقلی محبت مراددې.طبعی محبت هغه دې چه دطبیعت په وجه محبت پیداشی.اوطبعًا دځه شی طرف ته میلان اوشی داغیر اختیاری دې.اعقلی محبت دادې چه: عقلی طورسره سوچ اوخیال سره درجه په درجه دټولوسره پکاردې یعنی دټولونه مخکښې اودټولونه زیات محبت عقلا دخالق سره پکاردې بیاپه مخلوق کښې په هغه ذات باندې چه دهغهٔ درجه دټولونه لویه وی.دادې واضحه وی چه په تمام مخلوق کښې دټولونه زیات اوچت مقام دمحمد ﷺ دې.دې لهذاپه دویم نمبر کښې دحضور ﷺ سره پکاردې.ددې حدیث شریف مطلب هم دادې چه حقیقی مؤمن هغه دې چه چاطبعًا هم خپل میلان دالله تعالی.اورسول ﷺ طرف ته اوګرځولو په بل حدیث شریف کښې (دبخاری اومسلم په روایت کښې دانس رضی الله عنه نه ) راغلی دی چه په کوم سړی کښې دادرې ځیزونه وی هغه به دایمان حلاوت (خوند) محسوس کړی (یعنی په نیکوکښې به ورته مزه راشی اودالله تعالی د رضا حاصلولوشوق ئې زیاتیږی، ❶ هغه کس چه هغه ته الله تعالی او رسول الله ﷺ زیات محبوب وی.ددې دواړونهٔ علاوه نه (یعنی دهر ځیزنه) ❷ هغه سړې چه هغه دچاسره محبت صرف زما په وجه کوی.❸ دکفرنه خلاصیدلونه پس کفرته واپس کیدل ورته داسې ناخوښ وی لکه چه اورته تلل نه خوښوی (انتهی) نودا سړې دایمان خوږوالې محسوس کوی.یارب یارب یارب هرمؤ من اوهرمؤمنې ته خاتمه دایمان حلاوة سره نصیب کړه.آمین ثم آمین یارب العلمین.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ تقریبا دټولو الفاظوتحقیقات تیرشوی دی.

**ترکیب**۞ لایؤمن فعل احدکم مضاف مضاف الیه فاعل.حتی جاراکـون فعل ناقص اناضمیر اسم داکون احب اسم تفضیل په دې کښې ضمیر دې (هو) هغه فاعل الیه جارسره دمجرورنه متعلق اول شود احب.من جاروالده مضاف مضاف الیه معطوف علیه واو عاطفه ولده مضاف مضاف الیه معطوف اول واؤ عاطفه الناس مؤکد ،اجمعین تاکید .مؤکده سر دتاکید نه معطوف ثانی.معطوف علیه سره دمعطوفینونه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق ثانی د احب.احب صیغه داسم تفضیل سره دخپل فاعل اودواړومتعلقینونه خبرد اکون.اکون سره دخپل اسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدر سره مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په لایؤمن پورې فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۳۵﴾- لَايَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَّهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَنْ هَجَرَ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَاتَ دَخَلَ النَّارَ (رواه احمد وابوداؤد)

[تخریج:ــ مشکواة: ص:۴۲۸، س:۱۲، عن ابی هریرة رضی الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه**۞ دهیڅ یومسلمان دپاره داحلال نه دی.چه هغه پریږدی خپل رور لره د دریو ورځونه زیات،پس چاچه پریښودلو د دریو ورځونه زیات او مړشو.نو داخل به شی جهنم ته.

**تشریح** ❶ ددې حدیث مقصد خودا دې.چه یومسلمان رورسره که څه تعلق وی نوهغه ختمول نه دی پکار.که بالفرض په څه وجه تعلق ختم شی.نوسلام کښې مخکښې والی سره تعلق بحال کول پکاردی.که چرته ددرې ورځوپورې ئې هم خفګان لرې نه کړونوبیا یاد ساتل پکاردی که چرته دناراضګئ (خفګان) په حالت کښې مړشونوجهنم ته به ځی.درې ورځی خودیرې دی. داصرف زمونږ داسانئ دپاره نرمی کړې شوې ده ګنې نودرې ګینتې هم کافی دې.❷ د ابوداؤد شریف په مرفوع روایت کښې راغلی دی،د ابی خراش الاسلمی نه روایت دې.(ددهٔ نوم خدرد اسلمی دې) که چرته یوکال پورې ئې خپل (مسلمان) رور پرېښودلو.نودا دهغهٔ د وینې بهیولوپه شان دی.یعنی یوکال پورې که تعلقات صحیح نه شول.نود یوقتل ګناه به وی.❸ اومسلم شریف کښې په روایت دابوهریره رضي الله عنه راغلی دی چه دپیر اوزیات په ورځ دجنت دروازې پرانستلې شی.دهرمسلمان بنده بخښنه کیږی.لیکن دهغه انسان چه بل مسلمان رورسره ئې دشمنی وی دهغه باره کښې دا وئیلې شی چه دوی ته دصلح کولوپورې مهلت ورکړئ.(انتهی) مطلب دادې چه دادوه جهګړه کونکی نشی بخښلی باقی ټول بخښلې شی.❹ خلورم حدیث دچاسره دتعلق ختمولوپه وعید (عذاب) کښې دی چه په ابوداؤدکښې راغلی دی.دابی هریره رضي الله عنه مرفوعًا روایت دې.چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل.هیڅ یومؤمن دپاره حلال نه دی چه دیومؤمن سره ددرې ورځونه زیات خبرې پرېږدی فان مرت به ثلث یعنی که درې ورځې تیرې شوې نوهغه سره دې ملاؤشی اوسلام دې ورباندې واچوی.که چرته هغه جواب ورکړونودواړه به اجرکښې شریك وی یعنی دخبرونه کولوګناه به ورباندې نه وی.اوکه چرته ئې جواب دسلام ورنه کړو،نوګنهګار به هغه وی.سلام اچونکې ګنهګارنه دې (انتهی)
❺ دقطع تعلق په وعید باندې پنځم حدیث په (ابوداود اوترمذئ کښې صحیح اومرفوع حدیث دې) ابی الدرداء رضي الله عنه فرمائی حضور ﷺ اوفرمائیل: چه آیا تاسوته دروژې،مونځ، صدقې غوره درجه اونه ښایم.صحابوٴ عرض اوکړو،ضرور اوښایئ.وې فرمائیل چه:اصلاح ذات البین وفسادذات البین هی الحالقة) داصلاح ذات یومعنی ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کښې داکړې ده چه د دوؤ کسانو مینځ کښې جنګ نه کول اوخبرې نه پرېښودل دی اوفساد ذات البین یومعنی ملاعلی قاری رحمه الله داکړې ده چه یوبل قتل کول داحالقه ده یعنی هلاکونکی ده.بهرحال دروژې.مونځ اوصدقې نه زیات ثواب هغه وخت ملاویږی.کله چه یومسلمان رورسره قطع تعلق نه وی(حاشیه مشکوة ۷-۸ په حواله دمرقات اولمعات) ❻ په یو مرفوع

حدیث کښې دحضرت ابن عباس ﷛ نه روایت دې چه د دریو کسانومونځ دهغوی سرنه یوه لیشت هم بره نه خیژی. ① هغه امام چه قوم هغه لره نه خوښوی ② هغه ښځه چه شپه تیره کړی په داسې حال کښې چه دهغې نه خاوند خفه وی. ③ هغه دوه رونړه چه په خپل مینځ کښې په جنګ وی. دامام نه مرادهغه څوك دې چه غلط كاركوی یعنی اودس صحیح نه کوی یابله څه ګناه کوی. (رواه ابن ماجه)

**رومبئ فائده** دا ټول احادیث چه په خبرونه کولودعذاب بیان کوی داټول صحیح اومرفوع دی. اودا احقر دمشکوة ص۴۲۸ نه اخستې دی. تراوسه پورې د احادیثوپه بیان کښې بحث وو.

**دویمه فائده** پاتې شوه خبره دمسئلې اوفتوې. نودا خبره پیژندل پکاردی چه دڅه وجې نه په خبرونه کولو(تعلق ختمولو) باندې وعیددې؟که چرته ددین په وجه خفګان وی. یعنی بل مسلمان بدعتی وی یاپه بل څه ګناه کښې مبتلادې نوداسې سړی سره خبرې نه کول شرعا جائزدی. او بغیر دعذرنه ده سره خبرې نه دی پکارځکه چه دبدمجلس اوصحبت اثر ډیر زرکیږی. بیابه دې هم ګناه شروع کړی. داخبره یادساتل پکاردی چه دکومې درجې ګناه وی نودغه ګناه ته کتونکې ( چه قصدا ورته ګوری) هم دومره ګناه ګاردې.

**سوال** احادیث خومطلق دی نودبد اونیك تقسیم دې څنګه اوکړو؟

**جواب** مؤمن هغه دې چه ساده اوشریف انسان وی. ددنیا داموررونه غافل وی لکه چه په حدیث شریف کښې دی (دابوداؤد اوترمذی) المؤمن غر کریم : ددې لاندې دمشکوة حاشیې په حواله دمرقات لیکلی دی. چه ددنیا داموررونه غافله وی (مشکوة ص۴۳۲ حاشیه۴) لهذا که چرته دیندارانسان سره تعلق وی. نوبیا دڅه دنیاوی مقصد دوجې نه دهغه سره تعلق پریکونکی دپاره داټول وعیدونه دی دفاسق اوفاجر سره تعلق په هرغرض چه وی مناسب ندې ګنی نودده په فسق اوفجور کښې به هم شکونه شروع شی. ځکه چه په حدیث شریف کښې راځی (من تشبه بقوم فهو منهم) اولکه څنګه چه حضور ﷺ دکعب بن مالك ﷛ اودهغه دملګروسره چه کله هغوی دغزوة تبوك نه روستوپاتې شو پنځوس ورځوپورې خبرې نه وی کړې.
(حاشیه زادالطالبین ص۲۱)

**ترکیب** لایحل فعل ل جار مسلم مجرور جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې ان ناصبه مصدریه یهجر فعل هو فاعل اخاه مضاف مضاف الیه مفعول به فوق مضاف ثلث مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول فیه. فعل سره دفاعل، مفعول به اومفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدر فاعل شود لایحلّ فعل سره دفاعل اومعلق نه جمله فعلیه خبریه شوه. ف تفریعیه، من شرطیه، هجرفعل هُوَ فاعل فوق ثلث مضاف مضاف الیه مفعول فیه، فعل سره دفاعل اومفعول فیه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه. ف. عاطفه مات فعل هو

فاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعليه خبريه معطوف شو.معطوف عليه سره دمعطوف نه شرط.دخل فعل،هو فاعل،النار مفعول فيه.فعل سره دفاعل اومفعول فيه نه جمله فعليه خبريه جزاء،شرط سره د جزاء نه جمله فعليه شرطيه شوه.

﴿۱۳۷﴾- اَلَا لَا يَحِلُّ مَالُ امْرِءٍ اِلَّا بِطِيْبِ نَفْسٍ مِنْهُ (بيهقی)

[تخريج:_ مشكواة، ص:۲۵۵، س:۱۸، عن ابي حرة الرّقاشي عن عمّه مرفوعًا رواه البيهقی]

**ترجمه**۞ خبردار! نه دی حلال د يوكس مال خو دهغهٔ دطرفه د زړهٔ په خوشحالۍ سره.

**تشريح**۞ ديوسړی دمال استعمال ترهغه وخته پورې جائزنه دې چه ترڅوپورې دمال مالک ئې دزړه په خوشحالۍ سره ورنکړی.دبخاری شريف په حديث کښې راځی چه حضور ﷺ اوفرمائيل: چه کوم سړی په ناحقه دزمکې څه حصه واخستله نودقيامت په ورځ به داومې زمکې پورې ښخولې شی (مشكوة ص۲۵۶ س۱۳عن سالم ابيه مرفوعًا)،په روايت کښې راځی (ددرې پيسوپه بدله کښې چه نن صباحساب سره ترينه پاؤ کم درې روپۍ جوړيږی ) به دهغه اووه سوه قبول شوی مونځونه ورکولې شی هغه سړی ته دچا چه پاوکم درې روپۍ اخستلی شوی دی.دا روايت دحضرت تهانوی رحمه الله په مواعظوکښې (احكام المال) کښې موجوددې.

**مسئله**۞ چنده جمع کولوسره دعوتونه کول صرف په هغه صورت کښې جائز دی.کله چه چنده ورکونکې سړې دزړه په خوشحالۍ سره ورکوی ځکه چه ددې حديث نه مخکښې،دا الفاظ هم دی الا لاتظلموا يعنی ظلم مه کوئ بعضې خلق دې ويرې نه ورکوی که چرې مونږه چنده ورنکړو،نودا زمونږه رسوائی ده.په داسې حالت کښې عام طور د زړه خوشحالی نه وی ددی وجې نه جائزنه دی.

**ترکيب**۞ الا حرف تنبيه لايحل:فعل مال مضاف امرئ مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه استثناء لغو ب جار طيب مصدر مضاف نفس مضاف اليه منه جار مجرور سره متعلق شوهٔ فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه شوه.

**نکته فائده**۞ دنفس خوشحالۍ اود زړه خوشحالۍ کښې باريك فرق دې.مثلا دانه (ننکې) په يوځيزسره ماتول.دايو داسې تکليف دې چه زړه خوئې غواړی.ليکن نفس ئې نه خوښوی ځکه چه نفس ته لذت نه ملاويږی دغه شان دلته چنده کولوسره دعوتونه کول ياخوړل په دې کښې دزړه رضا خوشته دې ليکن دنفس رضانشته چه دهغې موجودوالې ضروردې.(تبليغ دين)

۱۳۶- لَا تُنْزَعُ الرَّحْمَةُ اِلَّا مِنْ شَقِيٍّ (احمد وترمذی)

[تخريج:_ مشكواة: ص:۴۲۳، س:۴، عن ابي هريرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ رحمت نه شی اخستلې مگر د بدبخت نه.

**تشریح** ددې حدیث مقصددادې چه هرکار اوهره خبره په نرمۍ اوشفقت سره اومحبت سره کول پکاردی.دالله تعالی درحمت همیشه دپاره طالب جوړیدل پکاردی.دابوداؤد اوترمذی په حدیث کښې راغلی دی چه رحم کونکوباندې رحمن رحم کوی نورحم کوئ (اې خلقو) په زمکه کښې،رحم به کوی په تاسوهغه ذات کوم چه آسمان کښې دې یعنی الله تعالی (مشکوٰة ص۴۲۳س۵) بهرحال دالله تعالی رحمت ډیر فراخه دې.لیکن چه څوك بدبخت وی سخت زړه وی په چاباندې رحم نه کوی نوالله تعالی دداسې سړی نه رحمت راوباسی.ددې وجې نه دالله تعالی درحمت طالبانولره دا ضروری ده چه همیشه په کشرانوباندې رحم کوی اودمشرانو عزت کوی.ګنی نودالله تعالی د نیولو نه اویریږئ.﴿ إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيدٌ ﴾ چه بې شکه ستا درب نیول ډیرسخت دی.

**لغوی او صرفی تحقیق** تنزع داد فتح نه دمضارع مجهول واحدمؤنث غائب صیغه ده.ددې نه نزع په معنی د(مرګ ته نزدې حالت) اونازع مسافر راغلې دې.داماده که چرته دفتح نه مستعمل شی نوددې معنی ده په لاس سره وهل،ټونګې وهل،غیبت کول ،عیب لګول.شقی داصیغه دصفت مشبه ده په معنی دبدبخت کیدلوسره.اشقیاء ئې جمع ده.ددې نه دې اَلشِقَا وَ الشَّقَاء،په معنی دسختۍ،بدبختۍ، المِشقَی:(ګومنځ).

**ترکیب** لاتنزع فعل الرحمة نائب فاعل الا حرف استثناء لغو من جارشقی مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۳۸﴾- لَاتَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا كَلْبٌ وَلَاجَرَسٌ (رواه مسلم)

[تخریج:۔ مشکوٰة: ص:۳۳۸، س:۱۷، عن ابی‌هریرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه** نه ملګرې کیږی فرشتې هغه جماعت سره چه په هغې کښې سپې وی او(نه په هغې کښې کوم کښې چه) ټلۍ وی.

**تشریح** دا مخکښې تیرشوی دی چه کوم ځائې سپې وی هلته درحمت فرشتې نه وی اودا (خبره) ده چه په سفر کښې څوکسان ملګری روان وی اوسپې ورسره وی بیاهم دوی سره فرشتې ملګرتیانۀ کوی.اوکوم جماعت سره چه ټلۍ(یعنی ګونګرو) وی نوهم فرشتې دوی سره نه پاتې کیږی.څکه چه دمسلم په حدیث کښې تیرشوی دی چه جرس (ګونګرو) دشیطان شپیلۍ ده اوفرشتې دشیطان ضد دی.په دې معنی چه شیطان نافرمان اونافرمان دې او فرشتې مطیع اومطیع دی.ددې وجې نه چه شیطان چرته وی هلته درحمت فرشتې نه وی اوچه کوم ځائې درحمت فرشتې وی هلته شیطان نۀ وی.

**فائده** دجرس تعریف دادې (هغه ګونګروچه دڅاروو په غاړه کښې زوړندولې شی ددینه یو عجیبه شان اوازپیداکیږی چه په هغې کښې کراهت (ناخوښی) وی.چه کوم ځائې ګونکرو وی

هلته درحمت فرشتې نه راځي.ددې وجه علامه نووی دا بیانوی چه دګونګرو آواز د ناقوس سره مشابه وی.ناقوس هم یوقسم ګونګرودې اوداعمل دنصارئ دې.دجرس استعمال مکروه تنزیهی دې.دامام ابوحنیفه رحمه الله اوامام مالک رحمه الله په نزددبعض علماؤ په نزد دځاروُو جرس بغیر دځه مقصدنه غګول منع دې که چرې په دې کښې څۀ فائده وی نوبیا جائزدی.دبعضو متقدمینوپه نزدکراهت په لوئې ګونګرو کښې دې نه په وړوکی کښې(ماخوذ د مرقات نه جلد۷ص۳۲۷)

**د مروج ټلو استعمال جائزدې**۞ کومې چه کورپه کور لګیدلی دی (دخبرداری دپاره) ددې وجه داده چه په دې کښې ضرورت دې❷ دادجرس په معنی کښې نه راځي ❸ کراهت تنزیهی دې اوکراهت تنزیهی اوجائزجمع کیدلې شی.

**د ګنګرو والا پازیب اچول جائزنه دی**۞ ددې دمنع والی وجه ❶ په شرح السنة کښې یوروایت دې چه یوه جینئ حضرت عائشې رضی الله عنها ته راغله اودهغې په خپوکښې جلاجل (ګونګروګان) وو. نوحضرت عائشې رضی الله عنها ورته اوفرمائیل چه اوځه زما دخوانه.اې فرشتولره جداکونکې.

❷ دحضرت زبیر رضی الله عنه په خپوکښې ګونګروګان ووهغه حضرت عمر رضی الله عنه پریکړل او وې فرمائیل چه مادحضور ﷺ نه اوریدلی چه هغه فرمائیل چه دهرګونګروسره شیطان وی.

❸ دامسلسل (همیشه) غږیږی ددې وجې نه شیطان خوشحالیږی اورسره وی.ددې وجې نه ددې نه سخته منع راغلې ده.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ رفقة دا مثلثة الراء دې لکه چه قاموس کښې دی.اودامام نووی رحمه الله په نزد داپه ضمې دراء سره دې اوپه فتحې دراء سره په معنی دجماعت.جرس په فتح دجیم سره اودراء سره.دغه شان په مغرب کښې راغلې دې په معنی دټلئ (مرقات جلد۷ص۳۲۷)

**ترکیب**۞ لاتصحب فعل الملئکة ئې فاعل رفقة موصوف فیها جارمجرور متعلق شوپه فعل محذوف ثبت پورې کلب معطوف علیه واو عاطفه لازائده للتاکید جرس معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه فاعل دثبت.فعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه صفت دموصوف.موصوف سره دصفت نه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شوه.

## صِيَغُ الْاَمْرِوَالنَّهْيِ

﴿۱۳۹﴾- بَلِّغُوْاعَنِّيْ وَلَوْآيَةً (بخاری)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۳۲، س:۱۵، عن عبدالله بن عمرو رضی الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه**۞ اورسوئ زما نه اګرچه یو آیت وی.

**تشریح۞** یعنی کوم څه کوم څه چه تاسو اوریدلی دی اوڅه چه تاسوحاصل کړی دی زما نه بالواسطه یابغیر واسطې اقوال وی یاافعال یا تقریرات هغه مخکښې وړاندې اورسوئ.
څومره پورې چه ستاسو طاقت وی اګرچه یوایت وی یعنی اګرچه په لږ مقدارکښې وی.

**سوال** وَلَوآیةً ئې ولې اوفرمائیل ولوحدیثا ئې ولې اونه فرمائیلو آیا دحدیث تبلیغ ضروری نه دې؟

**وړومبې جواب** هرکله چه دایت دتبلیغ حکم دې سره ددینه چه دقرآن کریم دحفاظت ذمه واری الله تعالی باندې ده نوبیادحدیث تبلیغ خوپه اول درجه کښې ضروری دې.

**دویم جواب** چونکه علامه مظهری دایت نه مرادهرمفید کلام اخستې دې.ددې وجه نه په دې لفظ ایت کښې دقرآن کریم ایت هم راغې اواحادیث هم راغلل ځکه چه داټول مفید کلام دې.

**دریم جواب** دادې چه لفظ ایت دعامومسلمانانو دطبعیت په لحاظ سره ذکر شوې دې ځکه چه دعامومسلمانانوطبیعتونه دقران کریم طرف ته زیات میلان کونکی وی.(هذاکله من المرقات جلداص۲۶٤) په لمعات التنقیح فی مشکوة المصابیح کښې داخبره هم ده چه په بَلِّغُوا کښې دې خبرې ته هم اشاره ده چه دثقه او عادل راویانو متصل السندحدیث وړاندې اورسوئ اوهم هغه الفاظ چه څنګه مو اوریدلی وی بغیر دڅه بدلولو ئې مخکښې اورسوئ.دا اشاره دتبلیغ دتعریف نه راوځی ځکه چه دتبلیغ معنی ده (انتهاء الشئ الی غایته) یعنی دڅه شی پوره رسول. (لمعات جلداص۲۵۲)

**د تبلیغ شرعی حیثیت۞** دتبلیغ دوه قسمه دی ❶ فرض عین❷ فرض کفایه فرض عین هغه دې چه په هرمسلمان سړی اوښځه باندې دمونځ پشان فرض دې.برابره خبره ده چه ددې تعلق دتبلیغ کارکونکو دیوجماعت سره وی یانه وی.ددې حکم حضور ﷺ صفا صفا بیان کړې دې ((من رای منکم منکرا فلیغیّره بیده فان لم یستطع فبلسانه فان لم یستطع فبقلبه وذالك اضعف الایمان)) (رواه مسلم.مشکواة ص٤۳۶) داحدیث د زادالطالبین ص۳٤ په شروع کښې هم راروان دې.تفصیل به ئې هلته کولې شی.انشاءالله تعالی دلته ئې صرف ترجمه پیش کوم.چه کوم کس په تاسو کښې څه بدی (ګناه) اووینی.نوبکارده چه سمدستی ختم کړی دا بدعمل په خپل لاس سره، پس که طاقت ئې نه وی نوپه ژبې سره دې منع کړی.پس که چرته ددې طاقت ئې هم نه وی نوپه زړه کښې دې دغه بدعمل بداوګڼړی (یعنی په زړهٔ کښې دغه بدعمل بداوګڼړی) اودا دایمان دټولونه کمزورې درجه ده.داقسم تبلیغ فرض عین دې.دتبلیغ فرض کفایه مطلب دادې که چرې یوځائې داسې وی چه هلته دهغهٔ ځائې خلقوته علم نه وی نوپه داسې موقعه باندې په ټولومسلمانانوباندې دافرض دی چه هغوی څه خلق هغوی ته اولیږی اوداسلام دعوت ورکړی.که چرته چاهم دعوت ورنکړونوټول به ګنهګار وی.داخبره دیاده وی چه دا وخت په ټوله

دنیاکښې داسې هیڅ یوځائې نشته چه هلته داسلام دعوت نه وی رسیدلې. لهذا داوخت دتبلیغ دپاره تلل یاچله لګول څه وخت لګول مستحب دی فرض عین تبلیغ هغه دې چه دڅه ګناه به لیدلوسره کولې شی.دامضمون اخستې شوې دې دمفتی رشید احمد لدهیانوی مدظلّه درسالې نه چه دهغې نوم (تبلیغ کی شرعی حیثیت اور حدود) دې.د تفصیل طلب کونکی دپاره هغې ته رجوع پکارده.

**لغوی او صرفی تحقیق۞** دایت معنی ده ظاهری نښه.ددې جمع آیات راځی.

**عجیبه نکته۞** بلغوا عنی ولواية وحدثوا عن بنی اسرائیل ولاحرج ومن کذب علی متعمدا فلیتبوا مقعده من النار.دامکمل حدیث دې اوداحدیث شریف دبخاری دې چه مرفوع اوصحیح اومتواتردې. اودنکتې خبره داده چه په ټولو احادیثوکښې داهغه حدیث دې چه ددې ټول راویان ثقه دی.اوددې حدیث په راویانو کښې هغه ټول صحابهٔ کرام رضی الله عنهم هم دی چه هغوی ته حضور صلی الله علیه وسلم په یومجلس کښې دجنت زیرې ورکړی وو.چه هغوی ته عشره مبشره وئیلې شی اوبل کوم حدیث کښې چه عشره مبشره جمع شوی وی هغه روایت نه ملاویږی (مرقات جلدا ص ۲۶۶)

((وحدثواعن بنی اسرائیل ولاحرج)) ددې مطلب دادې چه دهغوی نه دنصیحت خبره اوواقعات (قصې اخستلې شئ.او مخکښې ئې بیانولې شی په دې کښې هیڅ نقصان نشته.لیکن دهغوی دکتابونو احکام وغیره نقل کول منع دی ځکه چه مخکنی ټول دینونه اوشریعتونه منسوخ ګرزولی شوی دی. دحضور صلی الله علیه وسلم په لیږلوسره.(لمعات جلد۱،ص۲۵۳)

**ترکیب۞** صیغ مضاف المر معطوف علیه واو عاطفه النهی معطوف.معطوف سره دمعطوف علیه نه مضاف.مضاف سره دمضاف الیه نه خبردمبتداء محذوف چه هذه.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه شوه.بلغوا فعل فاعل عن جار،نون وقایه ی مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه شوه.واومبالغه لو شرطیه وصلیه اية خبرفعل محذوف کانت فعل ناقص ضمیر پکښې دې هغه ئې اسم کانت سره داسم اوخبر نه شرط.ددې جزاء دماقبل قرینې په وجه مخذوف ده.هغه داده ولو کانت آية فبلغوا عنّی.

﴿۱۴۰﴾- أَنْزِلُوا النَّاسَ مَنَازِلَهُمْ (ابوداؤد)

[تخریج:_ مشکواة: ص:٤٢٤، س:۱۹،عن عائشهؓ مرفوعًا]

**ترجمه۞** ښکته کړئ خلق دهغوی مرتبې ته.

**تشریح۞** یعنی سړې په خپله مرتبه اوساتئ اوخبرې ورسره کوئ.اودهرسړی عزت کوئ دهغه دشرافت مطابق.شریف او رذیل مه برابروئ.دغه شان خادم اومخدوم مه برابروئ.دچا سپکوالې مه کوئ چه هغه ته تکلیف اورسیږی.

**ترکیب**۞ انزلوا فعل انتم فاعل الناس مفعول به منازلهم مضاف مضاف اليه مفعول فيه.فعل دخپل فاعل مفعول به اومفعول فيه سره جمله فعليه انشائيه.

**﴿۱۴۱﴾- اِشْفَعُوافَلْتُؤْجَرُوْا** (بخاری ومسلم)

[تخریج: مشکواة: ص:۴۲۲، س:۹، عن ابی موسیٰؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ سفارش کوئ پس تاسوته به اجر درکولې شي.

**تشریح اوشان نزول**۞ کله چه به حضور ﷺ ته څوك سوال کونکې راغې.یاعرض لرونکې به راغې نودابه ئې فرمائيل:اشفعو فلتوجروا) يعنې سفارش کوئ ثواب به درته ملاويږي.ددې حديث پاك وضاحت دادې که چرته سوال کونکې راشي (چاسره چه ديوورځ اوشپې دخوراك څکاك سامان نه وي) نوهغه له ورکوئ.اوکه چرته څوك دکار کولوډپاره دسفارش طلب کونکې وی نودهغه هم په جائزطريقې سره سفارش کوئ.مثلاً زيد ويزه اخلي خودهغه واقفيت نشته د ردکولو امکان دې.ددې وجې نه زيد ، عَمروته ورغې.اوورته ئې اووئيل چه ستا واقفيت شته دې نوته زما دپاره د ويزې باره کښې سفارش اوکړه.نوعمروته پکاردی چه سفارش اوکړی ځکه چه ددې ډير ثواب دې.که چرته دجائز کارسفارش وی نو جائز اوباعث د اجردې ځکه چه د رور سره امدادکښې شامل دې.اوکه چرته دنيکئ په کارکښې وی.مثلا دعُمرې ياحج وغيره نوبياافضل (بهتر) دې ځکه چه په دې کښې دنيکئ کونکی هومره ثواب سفارش کونکی ته ملاويږي.دګناه په کارکښې سفارش کول حرام دی ځکه چه داسفارش کونکې سبب جوړشوې دې دګناه کولو.ددې وجې نه جائزنه دې بلکه حرام دې.

**لغوی او صرفی تحقیق**۞ اشفعوا دسمع نه دجمع حاضر صيغه ده په معنی د"سفارش اوکړئ" او فلتوجروا دادضرب نه امر مجهول دجمع صيغه ده په معنی د اجر اوثواب.

**ترکیب**۞اشفعوا فعل معروف ضمير بارز فاعل.فعل سره دفاعل نه امر ،ف جوابيه.لتوجروا فعل مجهول.ضمير بارزنائب فاعل.فعل سره دنائب فاعل جواب امر.امرسره دجواب امرنه جمله فعليه انشائيه.

**﴿۱۴۲﴾- قُلْ آمَنْتُ بِاللّٰهِ ثُمَّ اسْتَقِمْ** (مسلم)

[تخریج:ـ مشکواة: ص:۱۲، س:۲۶، سفيان بن عبدالله الثقفیؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ ته اووایه: ما ایمان راوړلې په الله تعالی باندې بیا په دې باندې قائم اوسیږه.

**تشریح اوشان ورود**۞ حضرت سفيان وائي ماعرض اوکړو چه اې دالله رسوله ﷺ ماته داسلام متعلق داسې خبره اوښايئ چه بياماته ستاسونه روستوياستاسونه سوادهيچانه دتپوس کولو ضرورت نه وی.نوهغوی ﷺ اوفرمائيل: چه ته اووايه ماپه الله تعالی ايمان راوړلواوبياپه دې

باندې ثابت قدم پاتې شه.یعنی چه کوم د ایمان لوازمات دی (اعمال صالحه او ګناهونه پرېښودل) هغه مضبوط اونیسه یعنی دشریعت پوره پوره پابندی کوه دا ارشاد ماخوذ دې ددې ایت کریمه نه ﴿ رَبُّنَا اللَّهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا ﴾ بیاد استقامت معنی څۀ ده.په دې باره کښې صوفیاءِ کرام وائی چه استقامت دزرو کراماتونه بهتر دې.دغه شان استقامت پوره دین ته شامل دې.هریونیکۍ کولوته اوپه هغې باندې ثابت قدم پاتې کېدلوته اوهر ګناه نه بچ کېدلوته اوپه هغې ثابت قدم پاتې کېدلوته استقامت وئیلې شی.داځه معمولی څیزنۀ دې. ددې فاستقم وجې نه دحضور ﷺ ارشادمبارك دې چه زه سورة هود بوډاکړم ځکه چه پۀ دیکښې فاستقم نازل شوې دې.امام غزالی رحمه الله فرمائیلی دی چه ددین په لاره استقامت دومره مشکل دې لکه چه په پل صراط باندې تلل مشکل دی.ځکه چه استقامت دپوره دین دحق اداکولونوم دې اوپه دې کښې څه ناڅه غلطی هرسړې ضرور کوی.ددې وجه نه دحضور ﷺ ارشاد دې چه تاسو کښې هریو خطاکاردې اوپه خطاکارو کښې بهترین هغه خلق دی چه توبه ویستونکی دی.

**نکته**۞ سورة فاتحه په هرمانځه کښې اوهررکعت کښې ولې ضروری ده؟وجه داده چه استقامت علی الدین اواستقامت علی الحق ډېر زیات ګران کاردې اوډېر ضروری هم دې. ددې وجې نه په هرمانځه کښې ئې لوستل واجب دی.په صراط مستقیم داستقامت دعاپنځه واره وختونو کښې غوښتلې شی.(هذاکله من المرقات جلد۱۱ ۸۴ ۸۵)

**ترکیب**۞ قل فعل انت فاعل،امنت فعل فاعل،ب جار لفظ الله مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه.مقوله (مفعول) قل فعل امرسره دخپل فاعل اومقوله (مفعول) نه جمله فعلیه انشائیه معطوف علیه ثم عاطفه استقم فعل انت فاعل. فعل سره دفاعل نه جمله انشائیه معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله فعلیه انشائیه معطوفه شوه.

﴿۱۴۳﴾- دَعْ مَا يُرِيبُكَ اِلٰى مَا لَا يُرِيبُكَ (احمد وترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۲۴۲، س:۸، عن حسن بن علی رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ پرېږده هغه څیز کوم چه تا په شك کښې اچوی هغه څیز طرف ته کوم چه تاپه شك کښې نه اچوی.

**تشریح**۞ حضرت حسن بن علی رضی الله عنهما فرمائې چه ماحضور ﷺ نه داخبره یاده کړې ده چه هغه څیز پرېږده په کوم کښې چه شك دې اوهغه واخله چه کوم کښې شك نشته دې.ځکه چه رښتیا وئیل داطمینان باعث دی اودروغ دبې قرارۍ (بې ارامۍ) باعث دی (انتهی) په دې حدیث کښې په اولی اوبهتر باندې دعمل کولوارشاددې.ځکه چه شکی څیزونوباندې اګرچه

ددې قانون دلاندې چه (اليقين لايزول بالشك عمل كول جائزدى.ليكن خلاف اولى ضروردى. ددې اسان مثال دادې چه دچاشك پيداشوچه زما اودس شته دې.يعنى كړې خومې دې.خوچه مات كړې مې دې كه نه،كه چرې په دې كښې واقعى شك وى يعنى دواړه طرفونه برابر وى نوفتوى داده چه دده اودس شته دې ځكه چه دفقهاؤ اصول دى چه يقين په شك سره نه زائل كيږى.ليكن بيا هم نوې اودس كول په هرصورت كښې بهتردې.اود ډير اجرباعث دې.

**تركيب﴿** دع فعل انت فاعل ماموصوله ير يب فعل هو فاعل ك مفول به فعل سره دفاعل او مفعول به نه جمله فعليه خبريه صله شوه موصول سره دصلې نه مجروردجار.جارسره دمجرور نه متعلق شوفعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به متعلق نه جمله فعليه انشائيه شوه.

﴿۱۴۴﴾- اِتَّقِ اللّٰهَ حَيْثُ مَا كُنْتَ وَأَتْبِعِ السَّيِّئَةَ الْحَسَنَةَ تَمْحُهَا وَخَالِقِ النَّاسَ بِخُلُقٍ حَسَنٍ (ترمذى واحمد ودارمى)

[تخريج:_ مشكواة: ص:۴۳۲، س:۱، عن ابى ذرؓ (اسمه جندب) مرفوعًا]

**ترجمه﴿** ته اويريږه دالله تعالى نه چه چرته هم ته يې، او روسته كوه د بدئ نه نيكى،چه دا هغې لره ختمه كړى،اوخلقو سره اخلاق ساته ښه اخلاق، ،

**تشريح اوشان ورود﴿** حضرت ابوذ غفارى ؓ فرمائى چه يوځل ماته حضور ﷺ درې خبرې اوفرمائيلې ❶ چه ته چرته هم يې دالله تعالى نه ويريږه.يعنى هغه هرځائې تاوينى.صرف نيكئ كوه.چرته ستانه ګناه اونشى.❷ دګناه نه رورستوخه نيكى اوكړه چه ګناه ختمه كړى.اود خلقوسره ښه تعلق ساته.❸ دهغوى سره په ښو اخلاقوملاويږه (انتهى) داخطاب صرف صحابؓ دپاره نه وو بلكه هرمكلف ته خطاب دې.په بل مرفوع حديث كښې داخلاقوباره كښې ئې اوفرمائيل چه دټولونه زيات كامل ايمان والاپه مؤمنانوكښې هغه خلق دى چه داخلاقوپه لحاظ سره ښه وى (انتهى) ظاهرى اوباطنى اخلاق ټول ښه كول پكاردى.ظاهرى اخلاق مثلا مشرسره دهغه دمرتبې موافق ملاويدل ،دكشرانوسره دهغوى دمرتبې موافق ملاويدل اوچه څوك راشى هغه ته ځائې وركول.كه چرته ځائې نه وى نولږشان دځپل ځائې نه خوزيدل.چه دراتلونكى اكرام اوشى وغيره وغيره.__ اوباطنى اخلاق دوه قسمه دى ❶ رزيله.مثلا تكبر، حسد، بعض،حُب جاه،حب مال،حب دنيا وغيره اودا دزړه نه ويستل ضرورى دى.اودا دشيخ په مشوره باندې كيږى او❷ ښه اخلاق.مثلا صبروشكر ،محبت،اميد ،توبه، وغيره داپه زړه كښې پيداكول ضرورى دى.داهم دشيخ په مشوره په صحيح معنى كښې په زړه كښې پيداكيږى.

**تركيبونه﴿** اِتَّقِ اللّٰهَ حَيْثُ مَا كُنْتَ اتق فعل انت فاعل لفظ الله مفعول به حيث مضاف ماموصوله كنت فعل فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعليه خبريه صله دموصول.موصول صله مضاف اليه دمضاف شو.مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول فيه.فعل سره دفاعل اومفعول به

اومفعول فیه نه جمله فعلیه انشائیه شوه.ـ وَاتْبِعِ السَّیِّئَةَ الْحَسَنَةَ: واو استینافیه اتبع فعل انت فاعل لسیئة مفعول اول الحسنة موصوف.(الف لام عهدذهنی دنکره په حکم کښې وی) تمح فعل هی ضمیر فاعل ها مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه صفت دموصوف،موصوف سره دصفت نه مفعول ثانی.فعل سره دفاعل اوددواړومفعولینو نه جمله فعلیه انشائیه شوه وخالق الناس بخلق حسن.واو استینافیه.خالق فعل امر انت فاعل الناس مفعول به ب جار خلق موصوف حسن صفت.موصوف سره دصفت نه مجروردجار،جارسره دمجرورنه متعلق شو په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه شوه.

**سوال** الحسنة موصوف معرفه ده نوتمحها نکره صفت څنګه جوړیدلې شي.

**جواب** الحسنة معرفه په الف لام عهدذهنی سره ده اوداپه حکم دنکره کښې وی.

**﴿۱۴۷﴾- لَاتُصَاحِبْ إِلَّامُؤْمِنًاوَلَايَأْكُلْ طَعَامَكَ إِلَّاتَقِيٌّ**

(ترمذی وابوداؤد ودارمی)[تخریج:ـ مشکواة: ص:۴۲۶، س:۲۶، عن ابی سعید رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ ته ملګرې مه جوړه وه خو یومسلمان،اونه دې خوری ستاخوراك مګر پرهیزګارسړې.

**تشریح**۞ که څوك ملګرې یادوست جوړول وی نوصرف کامل به جوړول پکاردی.ځکه چه په دې سره ددین ترقی کیږی اوغفلت لرې کیږی.اوکه دکافریامنافق سره دوستی جوړه کړې نود دین نقصان دې که ددوستۍ اثبات دې نوصرف دکامل مؤمن سره دې.چه هغه دالله تعالی دوست (ولی الله) دې.اوکه ددوستۍ نفی ده نودکافرانو اومنافقانو اودغلط قسم خلقونه ده اګرچه هغه دمسلمانانونه وی.اوپه دویمه جمله کښې ئې اوفرمائیل:که چرې ستاخوراك خوری نوصرف نیك سړې دې اوخوری.ددې حدیث شریف دوه معانې دی❶ دخوراك نه مراد ددعوت خوراك دې چه اې مخاطبه ! ستاددعوت والاخوراك دصرف نیك سړې اوخوری یعنی نیکوخلقوته دې دعوت ورکړی.که چرې دعوت ورکوی هغه ځواه غریب وی یامالدار.
❷ معنی داده چه دنیك انسان نه علاوه دچاسره هم محبت مه جوړوه اودچاسره هم دوستی مه کوه.ځکه چه دبدوخلقونه بداثر کیږی.داصلاح په ځائې فساد خوریږی.

(هذاکله من المرقات من حاشیة المشکواة ۱۳ص۴۲۶)

**ترکیب**۞ لاتصاحب فعل انت فاعل،الا حرف استثناء لغومؤمنًا مفعول به فعل سره دفاعل او مفعول به نه جمله فعلیه انشائیه معطوف علیه شوه واوعاطفه لایا کل طعامك مضاف مضاف الیه مفعول به.الا حرف استثناء لغو تقی فاعل فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه انشائیه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله فعلیه انشائیه معطوفه شوه.

**﴿۱۴۸﴾- أَدِّالْأَمَانَةِإِلَى مَنْ ائْتَمَنَكَ وَلَاتَخُنْ مَنْ خَانَكَ** (ترمذی)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۲۵٤، س:۱۵، عن ابی هریرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه** امانت اداکړه هغه کس ته چاچه ته امانتدار جوړ کړې، اوخیانت مه کوه دهغه کس سره چاچه تاسره خیانت اوکړو.

**تشریح** یوسړی بل چاته څه څیز یاڅه رقم په طور دامانت سره ورکړواوهغه ئې امین اوګرځولو، نواوس په هغه باندې لازم ده چه هم هغه څیز سنبهال اوساتی او کله چه دده نه امانت کیخودونکې خپل امانت اوغواړی نوفورا هم هغه څیز هغه ته واپس کړی. که چرې دقرض په طور ئې څه څیز کیخودلې وی نووقتی طورسره ئې پخپله استعمالول جائزدی. اوکله چه ئې مالك اوغواړی نودهغې پشان څیز ورکړی په دې حدیث پاك کښې تنبیه (خبرداری) ده ددې خبرې چه ښه اخلاق ساتل پکاردی چاچه امانتدار ګرځولې دې دهغه امانت حفاظت سره واپس کول پکاردی. داسوچ کول نه دی پکار. چه تاخو ماسره خیانت کړې وونوزه به هم تاسره خیانت کوم، داسې کول بد کاردې. څوك چه تاسره بداوکړی ته هغه سره ښه کوه. بدل اخستل بدکاردې. دزادالطالبین حدیث ۳۰ کښې تیرشوې دی چه خیانت کول دمنافق نښه ده.

**فائده** که چرته زیددخالد په مال کښې خیانت اوکړو. بیادزیدمال ته دخالد لاس اورسیدلو. که چرته دخیانت کړې شوی مال هم جنس وی نود امام ابوحنیفهؒ په نزددخالدخیانت کول هیڅ ګناه نۀ ده بلکه غلاکولې یې هم شی. ځکه چه خپل حق وصولول دی. اوکه چرته خلاف جنس مال ته دخالدلاس اورسیدلوچه زید دروپوخیانت کړې وو. اودخالد لاس ته دزید کپړه وغیره راغله نوپه دې مسئله کښې دامام شافعیؒ په قول باندې د احنافوؒ فتوه ده چه هغه خلاف جنس مال هم خالد دخپل ځان سره ساتلې شی(قاله مفتی عبدالقادرصاحب مدظله)

**ترکیب** ادفعل انت فاعل الامانة مفعول به الی جار من موصوله ائتمن فعل هو فاعل ك مفعول به فعل سره دخپل فاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه صله شوه، موصول سره د صلې نه مجرور، جارسره دمجرورنه متعلق شو دفعل، فعل سره دخپل فاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه معطوف علیه. واوعاطفه لا تخن فعل انت فاعل من موصوله خان فعل هو فاعل ك مفعول به. فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول موصول سره دصلې نه مفعول به. فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه انشائیه معطوف. معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله فعلیه انشائیه معطوفه شوه.

﴿۱۴۹﴾- لِيُؤَذِّنَ لَكُمْ خِيَارُكُمْ وَلْيَؤُمَّكُمْ قُرَّاؤُكُمْ (ابوداؤد)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۱۰۰، س:۹، عن ابن عباسؓ مرفوعًا]

**ترجمه** پکارده چه اذان ورکړی ستاسو دپاره په تاسوکښې غوره، او پکارده چه ستاسو امامت اوکړی ستاسو قاری.

**تشريح** څوك چه په تاسوكښې بهتروې هغه دې اذان كوى يعنى چه نيك او پرهيزګار وى هغه دې آذان اوكړى اوامامت دې هغه اوكړى چه په قراءت ښه پوهيږى يعنى ښه لوستونكې وى. دحضرت ابوسعيد رضي الله عنه مرفوع حديث دې چه كله تاسو درې كسان يئ.نو يوكس دې تاسوته امامت اوكړى اوهغه دامامت كوى چه په قراءت پوهيږى يعنى ښه قارى وى (رواه مسلم) دا دامام شافعى رحمه الله دليل دې ځكه چه دهغوى په نزدچه څوك په تجويدښه پوهيږى هغه دامامت زيات حقداردې.زمونږ په نزد چه څوك زيات عالم وى هغه دامام شى زمونږ دليل په ترمذى كښې دعائشه رضي الله عنها مرفوع روايت دې چه په كوم قوم كښې ابوبكر رضي الله عنه وى هغوى ته دابوبكر رضي الله عنه نه علاوه بل څوك امامت نه كوى ځكه چه ابوبكر رضي الله عنه دټولونه لوئې عالم وو.ددې وجې نه دهغه خاص خيال اوساتلې شو.اودټولونه لوئې قارى ابى بن كعب رضي الله عنه په دويم نمبر كښې اوګرځولې شومعلومه شوه چه عالم دپاره امامت ور كول زيات بهتردى په نسبت دقارى.امام شافعى رحمه الله ددليل جواب دادې چه قارى په معنى دعالم كښې استعماليږى دغه شان قراءت اوتجويدته په مانځه كښې ديوركن ضرورت دې.اوعلم ته په ټولواركانوكښې: ركوع،سجده قعده،وغيره) ددې وجې نه أعلم احق بالامامت دې.

**تركيب** ليوءذن فعل لكم جارمجرور متلق په فعل پورې خياركم مضاف مضاف اليه فاعل دفعل.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه انشائيه معطوف عليه شوه.واو عاطفه ليؤمّ فعل كم مفعول به قرائكم مضاف مضاف اليه فاعل،فعل سره دخپل فاعل اومفعول به نه جمله فعليه انشائيه معطوف.معطوف عليه سره دخپل معطوف نه جمله فعليه انشائيه معطوفه شوه.

﴿ ۱۵۰ ﴾ لَاتَأْذَنُوْالِمَنْ لَمْ يَبْدَأْبِالسَّلَامِ (بيهقى)

[تخريج:ـ مشكواة: ص:۴۰۱، س:۱۷ عن جابر رض مرفوعًا]

**ترجمه** اجازت مه وركوئ تاسو هغه كس ته څوك چه شروع اونكړى په سلام سره.

**تشريح** دچاكورته چه ورشئ يادچاكمرې ته ننوځئ يابوځائې ته چاله ورشئ نودننوتلونه مخكښې داجازت اخستلو ضرورت وى.اواجازت اخستل سنت دى.اوس اجازت په څه طريقه سره اخستل پكاردى.دروازه ټكول ،ياپه زورسره سلام اچول.چه دننه خلق يې واورى. حضور صلى الله عليه وسلم چه به دچا دروازې له ورغلونوالسلام عليكم اوپه يوروايت كښې السلام عليكم ورحمة الله به يې وئيل (رواه ابوداؤد) معلوم شوه چه داجازت بهتر طريقه سلام دې.ددې وجې نه حضور صلى الله عليه وسلم دا ارشاد اوفرمائيلوچه كوم سړې تاسوته راشى اوسلام مخكښې وانه چوى نوهغه ته دننه تللواجازت مه وركوئ ځكه چه په راتلونكى باندې حق دې چه دټولونه مخكښې دسلامتې دعاء اوكړى بياڅه خبرې اوكړى.دامسئله په قرآن كريم كښې موجوده

اوډیره اهمه مسئله ده.په دې کښې ډیره کوتاهي کیږي.په روایاتو کښې راځي چه صحابه کراموبه ډیرډیر سلام اچولو.وړاندې دترمذي شریف په حواله حدیث ۱۰۱ کښې تیرشوی دی چه څوك په سلام کښې مخکښې والې کوي هغه الله تعالی ته په ټولو خلقوکښې خوښ وي.

**ترکیب** لَاتَاذَنُوا فعل فاعل ل جار من موصوله لم یبداء فعل هو فاعل بالسلام جار مجرور متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه صله.موصول سره دصلې نه مجرور.جار سره د مجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دخپل فاعل او متعلق نه جمله فعلیه انشائیه شوه.

﴿۱۵۱﴾- لَاتَنْتِفُوا الشَّيْبَ فِإِنَّهُ نُورُالْمُسْلِمِ (ابو داؤد)

[تخریج:_ مشکوٰة: ص:۳۸۲، س:۱۵، عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده مرفوعًا]

**ترجمه** مه اوباسئ بوډا والې (سپین ویښته) پس بې شکه دا دمسلمان نُوردې.

**تشریح** سپین ویښته مه اوباسئ ځکه چه دادمسلمان نوردې.ددې دامطلب نه دې چه خضاب لګول جائزنه دی.ځکه چه حضور ﷺ خضاب (نکریزې) لګولی دی.دحضرت عثمان رضی الله عنه نه روایت دی چه زه ام سلمه رضی الله عنها ته ورغلم نوهغې ماته دحضور ﷺ یوخضاب لګولې شوې ویښته راوړو(رواه البخاری مشکوٰة ص ۳۸٤ ص۱۱) لیکن دښائست دپاره تورخضاب ناجائز دی.دلته داخبره ده چه سپین ویښته دبیخ نه مه اوباسئ ځکه چه دادمسلمان نوردې.اود بخشش باعث دې.وړاندې ئې اوفرمائیل چه څوك په اسلام کښې بوډاشوالله تعالی دهغه دپاره یوه نیکي اولیکله اویوه ګناه معاف کړه اویوه درجه ئې اوچته کړه.مشکوٰة شریف کښې ددې حدیث نه روستودکعب بن مره رضی الله عنه مرفوع روایت دې چه حضور ﷺ اوفرمائیل چه اسلام کښې دبوډاګانودپاره دقیامت په ورځ به یو نور وي (رواه الترمذی والنسائی) مطلب دادې چه دماشوم والی نه مسلمان وو اوپه اسلام کښې بوډاشو،نودا دده دپاره باعث د اجردې اود مغفرت باعث دې دداسې بوډا باره کښې حدیث قدسي دې ❶ الله تعالی پخپله فرمائي چه زما هغه بنده ته دې مبارك وي اوهغه بنده دې خوشحاله وي چه په اسلام کښې بوډاشوې دی اوهغه شرك نه وي کړې (دیلمی) بل حدیث قدسی دې ❷ الله تعالی فرمائی چه بوډاتوب نور دې اونار(اور) زما مخلوق دې یعنی ددې نور په وجه به داورنه محفوظ وي.دا دواړه حدیثونه اخستلی شوي دی.د(خداکی باتیں) نه چه د "الاتحاف السنیه بالاحادیث القدسیة" وغیره کتابونونه احادیث اخستې شوي او اردو ترجمه ئې شوې ده.خداکی باتین ص ۳۰ اوص۲۸۹)

**لغوی او صرفی تحقیق** لاتنتفو دادباب افتعال نه صیغه دجمع ده دنفی دپاره.دانتفاء معنی کیږي منفی کیدل اولرې کیدل،بې ځایه کیدل.نفاه فانتفی یعنی هغه دځائې نه لرې کړو نولرې شو.

**ترکیب**۞ لاتنتفوا فعل فاعل.الشیب مفعول به، فعل سره دخپل فاعل اومفعول به نه جمله فعلیه انشائیه معلل شوه.ف تعلیلیه ان حرف مشبه بالفعل ه دده اسم نور المسلم مضاف مضاف الیه خبر دان.ان سره داسم اوخبر نه جمله اسمیه خبریه معَلِل.معلَل سره دخپل معَلِل نه جمله فعلیه تعلیلیه شوه.

﴿۱۵۲﴾- اِزْهَدْ فِي الدُّنْيَا يُحِبَّكَ اللّٰهُ وَازْهَدْ فِيمَا عِنْدَ النَّاسِ يُحِبُّكَ النَّاسُ

(ترمذی وابن ماجه)[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۴۲، س:۶، سهل بن سعدؓ مرفوعا]

**ترجمه**۞ خواهشات پریږده (او بې رُغبتي اختیارکړه) د دنیا باره کښې،نوالله تعالی به تاسره محبت اوکړی.او خواهشات پریږده دهغه ځیزباره کښې کوم چه خلقوسره دي نوخلق به تاسره محبت اوکړی.

**تشریح اوشان ورود**۞ سهل ﷜ راوی وائی چه یوسړي راغي اوهغه تلو سره اووئیل چه یارسول الله ﷺ ماته داسې کاراوښایئ چه زه هغه اوکړم نوالله تعالی ماسره محبت اوکړی.اوخلق هم ماسره محبت اوکړی.نوپه دې باندې حضور ﷺ اوفرمائیل چه ددنیانه اعراض اوکړه یعنی ددې زیب اوزینت ته اوددې مال ته شوق مه لره ځکه چه کله ته په دنیا کښې ننوځې نوبیابه دالله تعالی دبندګۍ نه غافل شې.اوکله چه تاد دنیا نه بې رغبتی اوکړه نوتاته به دالله دعبادت دپاره فارغ وخت ملاوشی.یوحدیث قدسی دې.ابی هریره ﷜ فرمائی چه نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو چه الله تعالی فرمائی چه اې دآدم ځویه.زما دعبادت دپاره ته ځان فارغ کړه اووخت اوباسه نوزه به ستاسینه دبې پرواهۍ اوغناء نه ډکه کړم اوستافقراواحتیاج به بندکړم ګنی نوستا لاس به دشغل اود کارونونه ډیر زیات ډك کړم اواحتیاج به دې لرې نکړم.په دې وجه دنیانه بې رغبتی چه دې ته زُهد وئیلې شی ضروری ده.(الاتحاف السنیة اردو ترجمه المعروف به خدا کی باتین صفحه۱۱۸،بحواله ترمذی وبیهقی) که چرې ددنیا نه بې رغبتی اوقطع تعلق اوساتلې شی نوالله تعالی به محبت کوی.ځکه چه دنیاملعونه ده.(روستوحدیث۱۰۸ کښې تیرشوی دی ) دغه شان که چره ته داغواړې چه خلق هم تاسره محبت اوکړی نوچه کوم ځیز دخلقوسره دې (یعنی مال) دهغې نه هم پرهیز اوکړه اوپه لږمال ګذاره اوکړه دخلقو مخکښې لاسونه مه خوروه نوخلق به پخپله تاسره محبت کوی په دې شرط چه دباقی عبادتونو هم پابند اوسیږې.انسان چه ددین پابندوی نودنیا پخپله ملاویږی.په یوحدیث قدسی کښې الله تعالی دنیاته خطاب کړې اوفرمائیلی ئې دی چه څوك زما خدمت کوی ته هم دهغه خدمت کوه(خداکی باتین ص ۲۹۰بحواله دیلمی)

**ترکیب** ازهد فعل انت فاعل فی جار الدنیا مجرور .جارسره دمجرورنه متعلق شویه فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه امر ،یحب فعل ك مفعول به لفظ الله فاعل.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جواب امرشو .امرسره دجواب نه جمله فعلیه انشائیه امریه معطوف علیه واو عاطفه ازهد فعل فی جار ماموصوله عندالناس مضاف مضاف الیه مفعول فیه شو ثبت فعل محذوف دپاره ثبت فعل سره دخپل فاعل (هوضمیر) اومفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول.موصول سره دصلې نه مجرور دجار.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې فعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه امر یحب فعل ك مفعول به الناس فاعل.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جواب دامر. امر سره دجواب نه جمله فعلیه انشائیه امریه معطوفه شوه.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله معطوفه شوه.

﴿۱۵۳﴾- كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ أَوْعَابِرُ سَبِيلٍ (بخاری)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۳۹، س:۲۲، عن عبدالله بن عمر رض مرفوعًا]

**ترجمه** ته شه په دنیا کښې داسې لکه چه ته مسافر یې بلکه د لارې تیریدونکې یې.

**تشریح اوشان ورود** حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی چه حضور ﷺ زما اوږه اونیوله بیائې اوفرمائیل چه په دنیا کښې داسې اوسه لکه چه مسافر اوسی بلکه څنګه چه په لاره تیریدونکې اوسیږی یعنی دنیا مسافر خانه ده خپل ځان مسافر اوګنړه بلکه تلونکې مسافر اوګنړه.اې مخاطبه چه کله ته ماښام کړې نودصباانتظار مه کوه او کله چه صباکړې نود ماښام انتظارمکوه اودخپل صحت نه فائده واخله اودخپل ژوندقدراوکړه.اول ئې اوفرمائیل چه خپل ځان مسافر اوګنړه ځکه چه انسان دلږوخت دپاره مسافروی.بیائې اوفرمائیل چه بلکه په لار دتلونکی پشان ځان اوګنړه.مطلب دادې چه مسافر دپاره بیا هم څه موده (زمانه) وی.مسافر په یوکور کښې دېنځلسوورځونه کموپورې هم اوسیدې شی په لاره تلونکې خوروان وی.ددې وجه نه لکه څنګه چه په لار تلونکې دهر یوقدم ځائې پریږدی اوروان وی. دغه شان انسان له داسوچ پکاردې چه ماله هم دغه شان خپل ژوند پریښودل.او نوی ژوند طرف ته تلل دی چه هلته به صرف اعمال اودالله تعالی رحمت په کارراځی.دلته اودبل په معنی دې.

**ترکیب** کن فعل امر ،انت ضمیر اسم د کُن،فی الدّنیا جار مجرورمتعلق په فعل پورې کان حرف مشبه بالفعل ك ئې اسم غریب معطوف علیه واوعاطفه عابرسبیل مضاف مضاف الیه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه خبر دکان ،کان سره دخپل اسم اوخبر نه جمله اسمیه خبریه خبرشو دکُن.کن سره دخپل اسم اوخبر نه جمله فعلیه انشائیه.

﴿۱۵٤﴾- لَا تَتَّخِذُوا الضَّيْعَةَ فَتَرْغَبُوا فِي الدُّنْيَا (رواه ترمذی)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۴۴۱، س:۱۲، عن ابن مسعودؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ مه نيسه جائيداد پس ته به شوق کونکې شې په دنيا کښې.

**تشريح**۞ دضـيعة دوه معنى دى ❶ پيشه❷ جائداد. كه چرې ړومبۍ معنى.واخلونو حديث شريف مطلب دادې چه داسې پيشه مه نيسۍ چه تاسودنياپسې اولګۍ.اوستاسو آخرت بربادشي.مثلا دسود كاروبار، يا بل څه ناجائزه پيشه مه نيسۍ چه دهغې په وجه دنياكښې مينه محسوسيږى.كه چرته دويمه معنى واخلۍ نومطلب دادې چه جائدادپسې دومره لګيا كيږۍ چه ددنيا طرف ته ستاسو زړونه مائل شى اواخرت موهيرشى ددې دامطلب نه دې چه دجائداد والاكيدل څه عيب ياګناه ده.بلكه ددې مطلب دادې چه الله تعالى هير نكړۍ او آخرت خراب نكړۍ دالله تعالى هروخت يادلرلو مطلب دادې چه څه ګناه اونكړۍ اود فرائضو،واجباتو،سنتوپابندى اوكړۍ.

**تركيب**۞ لَاتَتَّخِذُوا فعل فاعل الضيعة مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه نهى.ف جوابيه ترغبوافعل واوفاعل فى الدنيا جار مجرور متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل او متعلق نه جمله فعليه خبريه جواب دنهى.نهى سره دجواب نهى نه جمله فعليه انشائيه.

﴿۱۵۰﴾-أَعْطُواالأَجِيرَأَجْرَهُ،قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ(رواه ابن ماجه)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۲۵۸، س:۲۰، عن عبدالله بن عمرؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ وركړه مزدور ته دهغهٔ مزدورى مخكښې ددې نه چه اُوچه شى دهغهٔ خوَله.

**تشريح**۞ مزدورته مزدورى په وخت بلكه دزر وركولوحكم دې.دانه چه كارپرې تولـه ورځ كوې ياتولـه مياشته.اوكله چه دمزدورۍ وركولووخت راشى نوتهال متمول اوروستو والې ) كوى داسخته ګناه ده.ددې حديث معنى دمشكوة دكرښو مينځ كښې په حوالـه دلمعا ت ليكلى شوې ده چه زر مزدورى وركول پكاردى (داخبره ختمه شوه) دمشكوة هم په دغه صفحه باندې په حوالـه دبخارى شريف يوحديث قدسى ليكلې شوې دې.دابى هريرهؓ مرفوع حديث دې فرمائى.چه حضور ﷺ اوفرمائيل الله تعالى ارشادفرمائى چه دقيامت په ورځ به درې كسان وى چه زه به دهغوى خصم )جګړې والا( يم ❶ يوهغه كس چه هغه زما په نوم قسم اوخورى ياوعده اوكړى اوبيا دهوكه اوكړى ❷ دويم هغه كس چه چاآزادانسان خرڅ كړو اودهغه قيمت ئې اوخوړلو❸ هغه كس چه هغه څوك مزدور اونيولو اودهغه نه ئې كار پوره واخستلوليكن هغه ته ئې مزدورى ورنكړه.مزدورته مزدورى په جلتۍ سره وركول پكاردى كه چرته روستو وركول وى نود كار كولونه مخكښې هغه خبرول پكاردى.دهوكه وركول اومزدورتنګول حرام اوناجائزدى.

**لغوي او صرفي تحقيق** يجف دادنصر اوضرب دواړونه استعمال شوې دې دلته دضرب نه دې په معنى داوچيدلوسره.عرق دادسمع نه مصدردې.په معنى د ❶ خولې سره ❷ هغه هډوكي چه دهغې نه غوښه لرې كړې شوې وى ❸ دديوال لوندوالې.ددېنه عرق په كسره دعين په معنى د"رګ" سره دې.

**تركيب** اعطوا فعل واوفاعل الاجير مفعول اول اجره مضاف مضاف اليه مفعول ثانى.قبل مضاف،ان ناصبه مصدريه،يجف فعل،عرقه مضاف مضاف اليه فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعليه خبريه په تاويل دمصدرسره مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول فيه.فعل سره دفاعل اومفعول به اومفعول فيه نه جمله فعليه انشائيه.

﴿۱۵۶﴾- خَالِفُواالْمُشْرِكِيْنَ اَوفِرُوااللِّحِي وَأَحْفُواالشَّوَارِبَ (بخارى ومسلم)

[تخريج:_ مشكواة: ص: ۳۸۰، س: ۱۴، عن ابن عمرؓ مرفوعًا]

**ترجمه** دمشركانو مخالفت اوكړئ، ږيرې اوږدې كړئ او بريت ښه كټ كړئ.

**تشريح** په دې حديث شريف كښې دمشركانواوكافرانودمخالفت حكم هرمسلمان ته وركړې شوې دې.مشركان ږيرې خروى اوكموى اوبريت اوږدوى (زياتوى) مسلمانانوته داحكم دې چه تاسو ږيرې اوږدې كړئ اوبريت ښه كټ كړئ.

**د ږيرې شرعى حيثيت** ږيره ساتل په هرمسلمان سړي چه عاقل بالغ وى واجب دى.اوڅلورګوتې يعنى هرطرف ته يوموټې ساتل واجب دى.بعضې خلق په زنه راختلې ويښته ددې وجې نه پريكوې چه دهرطرفه ږيره راوڅيژى بيابه يې پريږدو.دا ددوى سخته غلطى ده اوګناه كبيره ده.اوبعضې خلق دڅلوروګوتونه كمه ږيره پريږدى داهم دږيرې نه پريښودلو ګناه لرى كه چرې ديو طرفه ږيره پخپله كمه وى نوپه دې كښې څه نقصان نشته.دټولو ويښتو برابرولو دپاره د يوځائې نه ويښته پريكول يا واړه كول جائزنه دى.دږيرې ثبوت اووجوب دقران اوحديث دواړونه ملاويږى. لَا تَأْخُذْ بِلِحْيَتِي ددې آيت نه دږيرې ثبوت اوشو،اودفَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللهِ ددې آيت نه وجوب ثابتيږى.ځكه چه دږيرې كټ كول دالله تعالى پيداكړې څيزخرابول دى.اوپه دې حديث كښې ثبوت اووجوب دواړه دى چه دمشركانوطريقه ږيره خرئيل دى.ددې وجې نه تاسوږيرې اوساتئ.دا ثبوت شو،اوچونكه امرسره ذكرشوې دې.ددې وجې نه وجوب هم ثابت شو.بهرحال ږيره ساتل واجب دى.ددينه بغير روژه،مونځ غرض داچه هرقسم عبادت ناقص ګرځى.يوسړې دنائى خواته ناست وو،ږيره ئې خرئيله.چا ورته اووئيل.ولې ږيره خرائې،هغهٔ جواب وركړو چه پخپل مخ باندې چاړه راكاږم تاته څه تكليف دې.تاته خوتكليف نه دركوم. رومبى سړى ورتهٔ اووئيلى په خدائې قسم چه ته زما دمحبوب ﷺ زړه ته تكليف وركوې. يعنى حضور ﷺ ددينه په تكليف كيږى لكه چه دهغه په سينه چاړه راښكلې شى.ددې وجې نه چه كوم سړې ته حضور ﷺ دنورو ټولوڅيزونونه محبوب وى (لكه چه دمؤمن كيدلودپاره

داشرط هم دې )اوزيات محبت لرى.هغه به هيڅکله ږيره ديوموټى نه کمه نه کړى.هغه ته په اورسوزيدل په نظرراځى اوپه مخ ګرمه چاره لګيدل محسوس کيږى.دږيرې په موضوع ډيرې رسالې ليکلې شوى دى.(❶داړهى کى شرعى حيثيت.❷ اسلام اورداړهى کامقام.❸ داړهى کاوجوب) چه کوم سړې زيات تحقيق کول غواړى هغه رسالوته دې رجوع اوکړى.دغه شان داخبره يادساتل پکارده چه دږيرې نه انکاراو وريورې خنداکول کفردې.او ږيره خرول، لنډول فسق اوفجور اوګناه کبيره ده په ږيره کښې لس څيزونه مکروه دى.بعض تحريمى اوبعض تنزيهى.زيات تفصيل په مرقات جلد ۸ ص ۲۹۱ کښې اوګورئ.

**د بريتو شرعى حيثيت**۞ دواړوطرفونوته غاړې پريښودل چه په خوله کښې نه لګى اولاندې طرف ته ځى مستحب دى اوباقى ټول بريت ښه کټ کول سنت دى.اوپه شونډوباندې دخولې دطرف نه اوچتول او باقى واړهٔ کول هم ټيك دى.يعنى ويښته واړه کول نيمه شونډه خالى ساتل اونيمه وړو وړو ويښتوسره پريښودل هم ټيك دى.په يومرفوع روايت کښې راځى چه حضور ﷺ به هره جمع بريت اونوکونه پريکول اوپه يو مرفوع روايت کښې راځى چه کوم سړې دجمعې په ورځ نوکونه پريکوى الله تعالى هغه تردويمې جمعې پورې دټولو مصيبتونو نه محفوظ ساتى.اوږده اوږده بريت ساتل چه په خوله کښې لګى مکروه دى.اود څلوېښتو ورځونه زيات تيرول او بريت نه پريکول هم مکروه دى.نوکونه، بريت اودنامه نه لاندې ويښته (کوم چه صرف په هګو باندې اودهغې نه لږ پورته دى) مکروه دى.اود ترخونو ويښته څلويښت ورځو کښې دننه دننه کټ کول ضرورى دى.ګنى نو زمونږ په نزد به د وعيد مستحق وى.(مرقات ج ص۲۹۱)

**لغوى او صرفى تحقيق**۞ اوفروا دافعال ته امردې په معنى دډير اوږدهٔ کړئ،اللحى په کسرې سره اوپه ضمې سره جمع ده دلحية اوکوم شي چه په اننګواوپه زنه باندې اوټوکيږى هغه لحيه (ږيره) ده.احفوا داهم دباب افعال نه امردې.معنى ئې ده چه ښه ئې کټ کړئ.

**ترکيب**۞ خالفوا فعل،واؤ فاعل،المشرکين مفعول به،فعل سره دخپل فاعل اومفعول به نه جمله فعليه انشائيه مبين شوه.اوفروفعل واوفاعل اللحى مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه معطوف عليه.واو عاطفه احفوا فعل فاعل الشوارب مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه جمله معطوفه بيان دمبين شو.مبين سره دبيان نه جمله فعليه انشائيه شوه.

﴿۱۵۷﴾ بَشِّرُوْا وَلَا تُنَفِّرُوْا يَسِّرُوْا وَلَا تُعَسِّرُوْا (بخارى ومسلم)

[تخريج:_ مشکواة: ص:۳۲۳، س: ۲۰، عن ابى موسىؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ خوشخبرى (زيرې) ورکړئ او نفرت مه خوروئ او آسانى اوکړئ اوپه مشکل کښې مه اچوئ.

**تشریح اوشان ورود۞** دا ارشاد به هغه وخت رسول اللهﷺ بیان فرمائیلو چه کله په څه معامله کښې به ئې یوصحابی چرته لیږلو،نو ورته به ئې فرمائیل چه خلقوته خوشخبری واوروه اوزیرې ورکړه چه ثواب ملاویدلو والا دې.غرض دادې چه دالله تعالی درحمت شان اومغفرت ډیر بیانوه اووې فرمائیل چه دخلقوپه ویرولوکښې دومره مبالغه مکوه.چه هغوی دالله تعالی درحمت نه ناامیده شی اواعمال صالحه پریږدی.اووئ فرمائیل چه معاملات آسان کړه خومره چه کیدلې شی دهرمؤمن رور رعایت ساته اوددوی دپاره دهرقسم اسانوخیال ساته. اودوی په تکلیف کښې مه اچوه چه په هغوی باندې مشقتونه واچوې.په دې امت کښې خو اسانئ اوآسانئ دی چه په لږه نیکئ ډیر زیات ثواب ملاویږی.ددې وجې نه عمرونه هم ددې امت کم مقررشوی دی.بهرحال دین آسان کړې شوې دې اودې امت ته په تحفه کښې ورکړې شوې دې ځکه دآسانئ خورولوحکم دې اومشقت نه منع کړې شوې ده.خامخا په مشقت کښې خپل ځان اچول نه دی پکار اود نورو خلقودپاره صرف دآسانی سوچ کول پکاردی. دخپل ځان دپاره که څه مشقت هم وی نودثواب په نیت سره برداشت کیدلې شی لیکن دنورودپاره د ړومبی نه داسانئ سوچ کولوحکم دې.خپل ځان هم دزیات مشقت نه بچ ساتل پکاردی ځکه چه په حدیث شریف کښې راغلی دی چه څوك دحدنه زیات خپل ځان مشقت کښې اچوی الله تعالی هغه په مشقت کښې پریږدی.

**ترکیب۞** بشروا فعل واوفاعل.فعل سره دفاعل نه معطوف علیه واو عاطفه.لاتنفـرُوا فعل فاعل،فعل سره دفاعل نه معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله فعلیه انشائیه معطوفه شوه،واو استینافیه یسروافعل واوفاعل.فعل سره دفاعل معطوف علیه.واوعاطفه لاتعسروا فعل.واوفاعل.فعل سره دفاعل نه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله فعلیه انشائیه معطوفه شوه.

﴿۱۵۸﴾- أَطْعِمُوا الْجَائِعَ وَعُودُوا الْمَرِيضَ فُكُّوا الْعَانِيَ (بخاری)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۳۳، س:۱۳، عن ابی موسیٰ؄ مرفوعًا]

**ترجمه۞** خوراك خوروئ په اوږی او بیمارپُرسی کوئ د بیمار،او خلاص کړئ قیدی.

**تشریح۞** په دې حدیث کښې هرمسلمان دپاره درې حکمونه دی ❶ اوږی ته خوراك ورکړئ. ددې مطلب څه دې: هربنده دخوراك نه مخکښې اوږې وی ایا هربنده به هربنده ته خوراك ورکوی؟داسې نه ده.په دې کښې درې صورتونه دی.فرض عین،فرض کفایه اوسنت.طعام ورکول هغه وخت فرض عین وی کله چه یوسړې داضطرار(مجبورئ) حالت ته اورسیږی او

دهغه سره صرف یوسړی دی نویه داسې صورت کښې دغه سړی دپاره فرض عین دی چه هغه دی اوږی ته طعام ورکړی کوم چه مضطردی اومړکیږی.فرض کفایه هغه وخت وی کله چه یوسړی حدداضطرارته اورسیږی اوطعام ورکونکی ډیر وی.که چرې په دوی کښې یوهم طعام ورکړو،نو دټولودطرفه به فریضه اداشی.ګنی نوټول به ګنهګار وی.اوکله چه هغه اوږی اضطرار(مجبوریٔ) ته نه وی رسیدلی نوهغهٔ ته طعام ورکول سنت اومستحب دی.❷ دویم حکم په حدیث کښې عیادت (بیماپرسی) ده.کله چه یومسلمان رور بیمارشی نودهغه دپاره که چرې ذمه دار او وارث یعنی څوك محافظ وی نوعیادت کول سنت علیٰ الکفایه (دشپې په وخت کښې) دی.ګنی نوعیادت واجب دی ❸ دریم حکم دادی چه هغه قیدی کوم چه په ناحقه باندې قیدوی هغه خلاص کړیٔ دا واجب علی الکفایه دی.چه یوکس ئې ازادکړی نود ټولوذمه فارغ شوه.ددې یوه معنی داهم کړې شوې ده چه غلامان ازادکړیٔ.

(حاشیه مشکواة صفحه۷، بحواله لمعات ومرقات جلد۳۴۶/۱۳)

**لغوی او صرفی تحلیق**❁ فکوا دادنصرنه امردې په معنی دخلاصولو سره العانی داهم دنصرنه صیغه دصفت ده په معنی دقیدی سره.

**ترکیب**❁ اطعموا فعل واو فاعل الجائع مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه معطوف علیه.واو عاطفه عودوا فعل واوفاعل المریض مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه معطوف ثانی.معطوف علیه سره دمعطوفینونه جمله فعلیه انشائیه معطوفه شوه.

﴿۱۵۹﴾- لَاتَسُبُّوْاالدِّيْكَ فَإِنَّهُ يُوْقِظُ لِلصَّلَاةِ (رواه ابوداؤد)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۳۶۱، س:۲۳، عن زیدبن خالد؆ مرفوعًا]

**ترجمه**❁ کنځل مه کویٔ چرګ ته،پس بې شکه دې بیداروی دمونځ دپاره.

**تشریح**❁ چرګ ته کنځل مه کویٔ ځکه چه دابیدرول کوی دمانځه دپاره یعنی دې اوازکوی سحرپه وخت کښې اومانځه دپاره ټول راخبره وی.ددې وجې نه ده ته بدمه وایئ.ددې حدیث شریف باره کښې خوخبرې دی❶ یوه باریکه اشاره ده هغه داچه په بعضوځناوروکښې ښه عادتونه وی چه دهغې په وجه هغوی ته کنځل کولونه منع اوکړې شوه.نودیومؤمن بل مؤمن ته کنځل کول څنګه جائز کیدلې شی ځکه چه هریومؤمن دخوخویونوماده لری.❷ په چرګ کښې دټولونه لویه عجیبه خبره داده چه هغه دشپې وختونه ښائی ❸.قاضی حسن رحمه الله او امام رافعی رحمه الله اومتولی رحمه الله په مجرب چرګ باندې دمونځونو د وختونو داعتماد دجواز فتوی ورکړې ده.❹ په جامع صغیرکښې دچرګ په فضیلت کښې ډیرڅه ذکرشوی دی.ډیر روایات اواحادیث موجوددی.❺ حضور ﷺ دپاره سپین چرګ وو.اوصحابؤ به په سفر کښې خان سره چرګ ساتلو.چه دمونځونو وختونه ورته معلوم شی.❻ په معجم طبرانی کښې

مرفوعا دی چه الله تعالی دپاره یوسپین چرګ دې دې چه دهغه دواړه وزرې ښائسته کړې شوی دی په سرو اوشنو کانړو او لعلونوسره.ددغه چرګ یووزر په مشرق اوبل په مغرب کښې دې اودهغه سردعرش نه لاندې اودهغه خپې په هواکښې دی.هغه اذان کوی هره ورځ دپیشمنی وخت کښې.دهغه اوازټول دزمکې والا اوری اوآسمان والا.سواد پیریانو اوانسانانو نه.نوپه دغه وخت کښې دزمکې ټول چرګان دهغه دآواز اوریدلوجواب ورکوی چه کله قیامت نزدې شی الله تعالی به اوفرمائی(چرګ ته) خپلې وزرې راغونډې کړه اوخپل اواز بندکړه نوټول داسمان اوزمکې اوسیدونکی به سوا دثقلین (جن وانس) نه پوهه شوچه قیامت نزدې دې.(هذاكله من المرقات ج۸ ١٤٤)

**لغوی اوصرفی تحقیق**۞ دَ دیك معنی ❶ چرګ ❷ دسپرلی موسم.یُوقِظُ دباب افعال نه مضارع ده په معنی د راویخول (بیدارول).

**ترکیب**۞ لاتسبوا فعل واوفاعل ا لدیك مفعول به.فعل سره فاعل اومفعول به نه معلل.ف تعلیلیه ان حرق مشبه بالفعل،ه ضمیر اسم دان یُوقِظُ فعل،هُوَ فاعل،ل جار الصلوة مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه خبر دان.ان سره داسم اوخبر نه جمله اسمیه خبریه تعلیل.معلل سره دتعلیل نه جمله فعلیه انشائیه تعلیلیه شوه.

﴿۱۲۰﴾- لَايَقْضِيَنَّ حَكَمٌ بَيْنَ اثْنَيْنِ وَهُوَغَضْبَانُ (رواه بخاری ومسلم)

[تخریج:۔ مشکواة: ص:۳۲٤، س:۱۲، عن ابی بکرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ بالکل دې فیصله نه کوی یوحاکم د دوؤ کسانو په مینځ کښې په داسې حال کښې چه هغه دغصې په حالت کښې وی.

**تشریح**۞ داحدیث شریف دهر دوؤ جهګړه کونکومینځ کښې دفیصلې کونکی باره کښې دې.په دې کښې ټول حاکمان ،قاضیان،وزیران وغیره شامل دی.مطلب دادې چه څوك حاکم (فیصله کونکې ) دې د دوه جهګړه کونکوپه مینځ کښې دغصې په حالت کښې فیصله نه کوی.ځکه چه غصه دفکر اوسوچ کولو دپاره یومنع کونکې څیزدې.دغه شان په سخته یخنۍ کښې هیڅکله فیصله اورول نه دی پکارځکه چه انسان په یخنۍ کښې (رچ نیولې) وی کیدې شی چه فیصله غلطه اوشی.دغه شان په سخته ګرمۍ کښې هم فیصله کول نه دی پکارځکه چه کیدې شی چه دګرمۍ په وجه ده ته (ګبراهټ) یعنی ویره وی اوددغه ویرې په وجه فیصله صحیح اونه شی.دغه شان دسختې لوږې په حالت کښې او دغه شان دسختې جلتۍ په حالت کښې فیصله ورکول نۀ دی ورکول پکار ځکه چه کیدې شی چه په جلتۍ کولوکښې فیصله خرابه شی.دغه شان دبیمارۍ په حالت کښې هم فیصله نۀ ده پکارځکه چه

په دې کښې هم دغلطۍ امکان دې.غرض دادې چه په دې ټولوموقعوکښې فيصله کول مکروه دی.ځکه چه په حديث شريف کښې دفيصلې دخرابيدلو په وجه دغصې په حالت کښې دفيصلې کولونه منع کړې شوې ده.نوپه دې موقعوکښې هم په فيصله کښې دغلطۍ دامکان په وجه فيصله مکروه ګرځولې شوې ده.

**ترکيب** لايقضين فعل حکم ذوالحال واوحاليه هومبداء غضبان خبر،مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه حال شوه.ذوالحال سره دحال نه فاعل بين مضاف اثنين مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليه مفعول فيه فعل سره دفاعل اومفعول فيه نه جمله فعليه انشائيه شوه.

﴿۱۲۱﴾-اَيَّاكَ وَالتَّنَعُّمَ فَاِنَّ عِبَادَاللّٰهِ لَيْسُوْا بِالْمُتَنَعِّمِيْنَ (رواه احمد)

[تخريج:۔ مشکواة: ص:۴۴۹، س:۱۱، عن معاذبن جبل رض مرفوعاً]

**ترجمه** ته ځان ساته د ناز اونعمت نه، پس بې شکه دالله تعالى بندګان نه وى د ناز اونعمت والونه.

**تشريح اوشان ورود** دتنعم معنى ده په خپل خواهشاتوپوره کولوکښې ډير زياتوالې کول او جلتى کول.کله چه حضور ﷺ معاذبن جبل رض يمن ته ليږلو هغه وخت يې ورته اوفرمائيل (هرمسلمان ددې مخاطب دې) چه ته نازاونعمت سره ژوندمه تيره وه.دالله تعالى بندګان په لږه باندې ګذاره کوى (وخت تيره وى) اوصبر کوى.کوم څه چه ملاو شى په هغې صبرکوى دچامخکښې شکايت (ګيله ) نه کوى.خصوصا دسفرپه وخت نازاونعمت سره اوسيدل ډيره بده خبره ده.داحقر شيخ حضرت مولانامسيح الله رح يوه ورځ جلال اباد کښې په مجلس کښې فرمائيلې وو(احقرمصنف پخپله اوريدلى وو) چه کله سفرکوئ نودوه څيزونه اوتوکئ ❶ غصه ❷ آرام غوښتل.چه کله دا دوه څيزونه په سفر کښې نه وى نوسفر به مزيداروى.ګنى نوسفرپه تريخ اوبې مزې وى دا ازمائيلې شوې بلکه تجربه شوې طريقه ده چه په سفرکښې که چرې څوك غواړى چه سفرېې مزې اوبې خونده نشى نوغصه دې نه کوى اوارام طلب دنه جوړيږى چه ګنى هروخت دې ارام اوسکون وى.بلکه په سفرکښې څه تکليفونه وى هغه برداشت کول پکاردى.دمشقت په وجه سره مونږ نيم کړې شوې دې څه نه څه مشقت ضروروى اګرچه دهوائى جهازسفروى.بهرحال نازونعمت سره اوسيدل منع کړې شوى دى. څنګه چه په سفرکښې آرام طلبى نۀ ده پکار.دغه شان خپل ځان هميشه مسافرګڼړل پکاردى. ځکه چه دنيا مسافر خانه ده.ددې تفصيل په حديث ۱۵۱ کښې تيرشوې دې.لهذا لکه څنګه چه سړې په سفرکښې ناز (نخرې) وغيره عام طور باندې نه کوى.دغه شان په عام حالاتو کښې اوسيدل پکاردى.

**ترکيب** اياك ضمير منصوب منفصل مفعول به.تقديردعبارت داسې شو.اتق نفسك.اتق فعل انت فاعل نفسك مضاف مضاف اليه،مضاف سره دمضاف اليه نه معطوف عليه،والتنعم

معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه معلّل.ف تعلیلیه ان حرف مشبه بالفعل عبادالله مضاف مضاف الیه،مضاف سره دمضاف الیه نه اسم د ان.لیسوا فعل ناقص واوضمیر اسم د لیسوا،ب جاره زائده المتنعمین ئې خبر.لیسوا سره داسم اوخبر نه جمله فعلیه خبریه خبر.**ان** سره داسم اوخبر نه تعلیل.معلل سره دتعلیل نه فعلیه انشائیه تعلیلیه.

﴿۱۲۲﴾- اِعْتَدِلُوافِي السُّجُودِوَلَايَبْسُطْ أَحَدُكُمْ ذِرَاعَيْهِ انْبِسَاطَ الْكَلْبِ

(بخاری ومسلم)[تخریج:_ مشکوٰۃ: ص:۸۳، س:۲۲، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه۞** میانه روی (اعتدال) اختیارکړئ په سجدوکښې،اونه دې خوَروی په تاسوکښې څوك خپلې څنګلې (لاسونه) د سپی د خوَرولو په شان.

**تشریح۞** په سجدو کښې داعتدال ساتلومطلب دادې چه سجده دمیانه روئ په حالت کښې اداکوئ.مخکښې ئې تفصیل هم اوفرمائیلو چه خپلې څنګلې دسپی دڅنګلوپشان مه خوره وئ.بلکه اوچتې ئې ساتئ اودزمکې نه ئې جدالرئ دحضورﷺ څنګلې به دزمکې نه دومره اوچتې وې چه دترخونو مبارکو سپین والې به په نظرراتللو.اودهغوی متې به دېتون نه دومره لرې وې چه دیوې چیلئ بچې به پکښې تیریدلې شو.غرض داچه داعتدال تعلیم ورکړې شوې دې.اعتدال دمانځه په هررکن کښې ضروری دې او واجب دې لیکن سجده دمانځه یولوئې رکن دې.ددې وجې نه ددې ذکرخاص طور سره اوکړې شو.(مشکوٰۃ حاشیه نمبر ۱۱ بحواله مرقات) زیات تفصیل دپاره اوګورئ! رساله:"نماز سنت کے مطابق پڑھئے")

**ترکیب۞** اِعتَدِلُوا فعل واوفاعل فی جارالسجودمجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شو په فعل پورې.فعل سره دخپل فاعل نه اومتعلق نه معطوف علیه واوعاطفه لایبسط فعل احدکم مضاف مضاف الیه فاعل ذِرَاعَیه مضاف مضاف الیه مفعول به انبساط الکلب مضاف مضاف الیه مفعول مطلق.فعل سره دخپل فاعل اومفعول به اومفعول مطلق نه جمله فعلیه انشائیه معطوف شوه.معطوف علیه سره دخپل معطوف نه جمله فعلیه انشائیه معطوفه شوه.

﴿۱۲۳﴾ - لَاتَسُبُّوا الْأَمْوَاتَ فَإِنَّهُمْ قَدْ أَفْضَوْا إِلَى مَاقَدَّمُوا (بخاری)

[تخریج:_ مشکوٰۃ: ص:۱۴۵، س:۲۷، عن عائشه رض مرفوعًا]

**ترجمه۞** بدې رَدې مه وایئ مړو ته،پس بې شکه هغوی اورسیدل هغه څیزته کوم چه هغوی وړاندې لیږلې.

**تشریح**۞ هیڅ یومړی ته که نوې وی یازوړ وی،نیك وی اوکه بد، کنځل کول یابدوئیل ترهغه وخت پورې ناجائز دی چه ترڅو یقیني، طورسره دانه وی ثابت چهٔ هغه کافروو.لکه فرعون (ولید بن مصعب) یاابی‌لهب (عبدالعزی) یاابوجهل (عمربن هشام) یاقارون (منوّر) ددوی کفر قطعی طورسره ثابت دې.ددې وجې نه هغوی ته بدوئیل گناه نه ده.مړی ته بدوئیلونه دمنع کولووجه حضورﷺ وړاندې دابیان کړه.چه هغوی کوم څهٔ مخکښې لیږلی دی یعنی اعمال وغیره ئې کړی دی هغې ته هغوی رسیدلی دی.اوس چه هغوی څنګه عمل کړې دې هم هغه شان به بدله بیامومی.تاسو هغوی ته بدولې وایئ.تاسوبه خپلوقبرونوته ځئ.خپل عملونه به ځان سره اوړئ اوهغوی ځان سره خپل عملونه اوړلی دی.ددې وجې نه اګرچه هغوی گنهګار وی هغوی ته کنځل مکوئ.په بل حدیث کښې راغلی دی چه تاسودالله تعالی گواهان یئ په زمکه باندې.تاسوچه څنګه گواهی کوئ هغه شان به الله تعالی کوی.یعنی که تاسومړی ته ښهٔ وایئ نوهغه به جنت ته ځی.اوکه چرې تاسودهغه بد وایئ نوجهنم ته به ځی.ددې وجې نه پخپله نیکی کول پکاردی.چاته بد ردوئیل نهٔ دی پکار.اوپه یوبل حدیث کښې دحضورﷺ ارشاددې چه څوك مسلمان مړشی اودهغه دپاره دوه کسان هم دخیراودنیکئ گواهی ورکړی نوالله تعالی به هغه جنت ته داخل کړی.

**ترکیب**۞ لاتَسُبّوا فعل واوفاعل الاموات مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه معلّـل،ف تعلیلیه ان حرف مشبه بالفعل هم ضمیر دده اسم.قدافـضوا فعل فاعل الی جار ماموصوله قدموا فعل فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه صله.موصول سره دصلې نه مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې فعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه. خبرد اِنَّ شو.اِنَّ سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه تعلیل شو.معلل سره دتعلیل نه جمله فعلیه انشائیه معطوفه شوه.

﴿۱٦٤﴾ مُرُوْا أَوْلَادَكُمْ بِالصَّلَاةِ وَهُمْ أَبْنَاءُ سَبْعِ سِنِيْنَ وَاضْرِبُوْهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرِ سِنِيْنَ وَفَرِّقُوْا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ

(ابوداؤد) [تخریج:۔ مشکواة: ص:۵۸، س:۱۳، عن عمروبن شعیب عن ابیه عن جده مرفوعًا]

**ترجمه**۞ حکم کوئ خپل اولادته د مانځه،په داسې حال کښې چه هغوی د اووهٔ کالو وی.او وهئ هغوی لره (یعنی په مونځ نه کولوباندې) په داسې حال کښې چه هغوی دلسو کالو وی، او جدائی اوکړئ دهغوی په مینځ کښې د اودهٔ کیدوپه ځایونوکښې.

**تشریح**۞ کله چه اولاد ( نارینه وی یازنانه) د اوؤه کالوشی نوهغوی ته دمونځ کولوحکم کوئ. چه دمانځه سره ئې محبت پیداشی.اوکله چه دلسوکالوشی نوبیاکه مونځ نهٔ کوی نوهغوی د تربیت دپاره معمولی شان وهئ.چه دبالغ کیدلونه مخکښې دمانځه مضبوط عادتیان جوړشی.

**داووه کالو او لسو کالو د تخصیص وجه** ۞ دشریعت احکام سړو اوښځو ټولوته پاره دی.اومونځ دټولونه لوی عبادت دې اودمانځه حکم دټولونه زیات سخت دې اوعام دې.ددې وجې نه شریعت هلك اوجینئ ته دبالغ کیدونه مخکښې دمانځه دعادت جوړولوحکم ورکړې دې. جینئ دنهوکالونه ترینځلس کالوپورې بالغه کیدې شي.اوهلك د دولس کالونه ترینځلسو کالوپورې بالغ کیدې شي.ددې وجې نه چه کله ماشوم د اووه کالوشی.نوهغهٔ ته دمونځ طریقه خودل پکاردی.چه دمانځه عادت ئې جوړشی.اوکله چه دلسو کالوشی نوبیاپه هغه باندې مونځ په وهلوسره کول پکاردی.ځکه که چرې هغه جینئ وی نوکیدې شي چه هغه بالغه شوی وی یابالغ کیدوونکې وی.اوکه چرې هلك وی نوهغه بالغ کیدوته نزدې دې.ددې وجې نه مانځه سره دمحبت پیداکولوپاره هغه هم دمانځه عادتي جوړکړئ.غرض دادې چه دبچې تربیت په ماشوم والی کښې څهٔ طریقې سره اوشی هغه به هم هغه شان ژوندتیره وی.اوکله چه دلسوکالوشی نوبیاهلك اوجینئ ځانله ځانله اودهٔ کوئ لسوکالونه روستودهلك اوجینئ یوځائې اودهٔ کولونه ئې منع اوفرمائیله.لیکن دوه هلکان (لوئ وی یاواړه) چه ځانته ځانته جامې ئې اغوستې وی اوپه یوڅادر یایو بړستن کښې اودهٔ شی،یا دوه جینکئ چه (ورې وی یاغټې) چه جدا کپړې ئې اغوستې وی.دغه شان په یو بړستن یاڅادرکښې څملی په دې کښې هیڅ ګناه نشته چه کله څه خباثت (غلط کار) نه کوی جینئ اوهلك چه ترڅوپورې دواړه واده شوی نهٔ وی په هرحال کښې به ځانله اوده کیږی ښځه اوخاوند یوځائ اوده کیدې شی ددوی نه علاوه ټول صورتونه دسړی اوښځې دیوځائې څملاستویعنی په یوڅادرکښې ناجائزدی.

**ترکیب** ۞ مُرُوا فعل.واو ضمیر بارز هغه ئې فاعل اَولَادَکُــم مضاف مضاف الیه ذوالحال.واو حالیه هم مبتداء اَبنَاء مضاف سبع مضاف الیه مضاف سنین مضاف.مضاف سره دمضاف الیه بیامضاف الیه شو.مضاف سره دمضاف الیه نه خبر.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه حال شو.ذوالحال سره دحال نه مفعول به.بالصلوة جارمجرورمتعلق شوفعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه معطوف علیه.واؤ عاطفه اضربوا فعل فاعل هم ذوالحال واوحالیه (هُمْ اَبنَاءُ عَشَرَسِنِینَ) مبتداء خبر جمله اسمیه خبریه حال شو.ذوالحال سره دحال نه مفعول به عَلَیهَا جارمجرورمتعلق شو فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه معطوف اول.واوعاطفه فَرِّقُوا فعل فاعل بَینَهم مضاف مضاف الیه مفعول فیه.فی المضاجع جارمجرور متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول فیه اومتعلق نه معطوف ثانی. معطوف علیه سره دمعطوفینونه جمله فعلیه انشائیه معطوفه شوه.

﴿۱۲۵﴾- تَعَاهَدُوا الْقُرْآنَ فَوَالَّذِی نَفْسِی بِیَدِهِ لَهُوَ أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنَ الْإِبِلِ فِی عُقُلِهَا

(بخاری ومسلم) [تخریج:_ مشکواة: ص: ۱۹۰، س: ۱۳، عن ابی موسی الاشعری رض مرفوعًا]

**ترجمه** ۞ یادکړئ قرآن، پس قسم دې په هغه ذات دچا په قبضهٔ قدرت کښې چه زما ساه ده! البته دا زیات سخت دې د اوښ نه،دخپلې رسئ په خلاصولوکښې.

**تشريح** دقرآن نه چه څه حصه ياده وی ياټول يادوی نودهغې حفاظت کوئ اوهميشه تلاوت کوئ.چه دزړه نه اونهٔ اوځی.قرآن نه لوستلوسره هيريږی دقرآن څه حصه ياپوره قرآن يادولوپه وخت کښې څومره چه يادوی.يادساتل په هرمسلمان سړی اوښځه باندې فرض عين دې.مثلاً چاچه سورهٔ يسين يادکړو نوديادولوپه وخت کښې ئې پکښې يوغلطی کوله.څهٔ زمانه پس دوه غلطئ شوې نواوس ئې دفرضوپريښودلو پشان گناه ده.دغه شان حافظ ته چه دحفظ پوره کولو په وخت کښې څومره يادوو هغومره ترمرگ پورې يادساتل فرض عين دی.که چرې ديوې غلطې اضافه هم اوشوه نودگناه کبيره ارتکاب به وی.روزانه تلاوت نهٔ کولوسره قرآن کريم دزړهٔ نه زر اوځی.ددې مثال حضور ﷺ بيان کړوچه يواوښ په خپل رسئ خلاصولوکښې دومره تيز اوبهادرنهٔ دې څومره چه قرآن.يعنی قرآن ديواوښ نه هم زيات په جلتئ سره کار کوی اود زړونونه زر اوځی.په يوبل روايت کښې دغه شان راغلی دی.چه قرآن يادکړئ ځکه چه داد انسانانودسينونه ډير سخت دې په وتلوکښې داوښانوخلاصيدلونه.اصل روايت فِی عُقُلِهَا دې يعنی فی هم موجود دې اوهغه دمن په معنی سره دې عقل په ضمه دعين اوقاف سره دې دعقال جمع ده لکه کتب دکتاب جمع ده.په دې کښې يولغت په سکون دقاف سره دې ليکن هغه ضعيف دې.(مرقات جلد۲\۱۵)

**ترکيب** تعاهــدوا فعل فاعل القرآن مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه معلل ف تعليليه واو قسميه جاره الذی موصول نفسی مضاف سره دمضاف اليه نه مبتداء ب جاره يده مضاف مضاف اليه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثبت فعل محذوف پورې.ثبت فعل سره دفاعل(هوضمير اومتعلق نه جمله فعليه خبريه خبردمبتداء.مبتداء سره دخبرنه جمله اسميه خبريه صله.موصول سره دصلې نه مجرور دجار.جار.جارسره دمجرورنه متعلق په اقسم محذوف پورې.اقسم فعل سره دفاعل (آنا ضميرنه) اوسره دمتعلق نه قسم.ل.تاکيديه، هُو مبتداء،اشد اسم تفضيل،من الابل جارمجرور متعلق شود اسم تفضيل،په اشدّ کښې هو ضمير مميز تفصياً مصدرفی جار عقلها مضاف مضاف اليه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په تفصيا مصدر پورې.مصدر سره دخپل متعلق نه تميز.مميز سره دتميز نه فاعل دَاَشَدُّ.اسم تفضيل سره دفاعل اومتعلق نه شبه جمله خبر.مبتداء سره دخبرنه جواب دقسم. قسم سره دجواب نه جمله قسميه تعليليه شوه.معلل سره دتعليل نه جمله فعليه انشائيه معلله شوه.

﴿۱۲۲﴾- لَاتَجْلِسُوا عَلَى الْقُبُورِ وَلَا تُصَلُّوا إِلَيْهَا (مسلم)

[تخريج:_ مشكوٰة: ص:۱۴۸، س:۱۰، عن ابی المرثد الغنوی رضی الله عنه مرفوعاً]

**ترجمه** مه کينئ په قبرونو باندې اومه مونځ کوئ هغې طرف ته.

**تشریح** په قبرونو مه کیني دادصاحب قبرحق تلفی ده.اومړې سپك مهٔ ګڼرئ.اومهٔ ئې دومره تعظیم کوئ.چه قبرونونه قبله جوړه کړئ اومونځ ورته شروع کړئ.یعنی دحدنه زیات تعظیم نه دې پکار.اونه د حدنه تجاوزپکاردې اونه په قبرکیناستل.نو قبرونوته زیارت دپاره تلل اوهلته لوستل اوثواب ښښل جائزدی.خصوصا دشعبان په پنځلسمه شپه کښې او عام طور دجمعې په ورځ تلل بهتردی اودعا غوښتل سنت دی.بهتر داده چه بغیردلاس اوچتولونه دعا اوغواړی باقی ټول کارونه په قبرونویاندې یاقبرونوسره مکروه تحریمی دی اوبعضې تنزیهی دی مکروه تحریمی لکه❶ قبرونوسره بول (اودس ماتې) وغیره کول.❷ په قبرونویاندې اوده کیدل ❸ قبرونوته مخ کول اومونځ کول.اوقبرونونه دسجدې ځایونه جوړول وغیره.کله چه مینځ کښې څهٔ دیوال وغیره نهٔ وی.اومکروه تنزیهی لکه: قبردیولویشتې نه زیات اوچتول. اودمسلم په یوحدیث کښې راغلی دی چه حضوردقبرپخولواوپه قبرباندې عمارت جوړولو اوپه قبرباندې کیناستلونه منع فرمائیلې ده.امام نووی رحمه الله ددې حدیث شریف په شرح کښې لیکی چه په قبرباندې عمارت جوړول چه ذاتی(خپل) ځائې وی اود جوړونکی ملکیت وی نومکروه دی.اوکه عام قبرستان وی نوبیاحرام دی.غرض دادې چه دمړی سپکاوې نهٔ دې پکار.چه په قبرباندې.کینی اوقبر پائمال کړې شی وغیره.ددې ټولو کارونونه منع کړې شوې ده.اونه دومره تعظیم پکاردې چه قبرونه سجدهٔ ګاه جوړکړې شی اوقبرونوته مخ کړی اومونځ شروع کړی اعتدال (میانه روی) پکارده.

دزیات تفصیل دپاره دمولانا سرفرازخان صاحب مدظلهم تصنیف"راه سنت" کتل پکاردی (ص۱۷۰ تا۱۹۴) اودملاعلی قاری مرقات (جلد۴ص۶۸او۶۹)

**ترکیب** لاتجلسوا فعل فاعل علی القبورجار مجرورمتعلق په فعل پورې فعل سره دفاعل اومتعلق نه معطوف علیه.واو عاطفه لاتصلوا فعل فاعل الی جار ها مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله فعلیه انشائیه معطوفه شوه.

**﴿۱۲۷﴾- اِتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ فَإِنَّهُ لَيْسَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللّٰهِ حِجَابٌ**

(بخاری ومسلم)[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۵۵، س:۵، عن ابن عباس رض مرفوعًا]

**ترجمه** ځان ساته دمظلوم د ښیرونه،پس بې شکه نشته دهغې اودالله تعالی په مینځ کښې څه پرده.

**تشریح اوشان ورود**۞ حضرت عبدالله بن عباس﵄ نه روایت دې چه حضورﷺ کله معاذبن جبل﵁ یمن ته لیږلو ،نوحضرت معاذ﵁ ته ئې اوفرمائیل چه:کله ته اهل کتابو(یهود اونصاری) ته ورشې نودټولونه مخکښې ورته کلمه شهادت طرف ته دعوت ورکړه که هغه ئې اومنله نوبیاورته دا اوښایه چه اللهﷻ په شپه اوورځ کښې په تاسوپنځه مونځونه فرض کړی دی.که چرې هغوی داهم اومنله نوبیاهغوی ته دا اوښایه چه الله تعالی صدقه(زکوة) فرض کړې دې چه دمالدارونه به اخستلې اوغریبانانوته ورکولې شی.که چرې هغوی داخبره هم اومنله.نوته ځان اوساته دهغوی دښه مال اخستلونه (انصاف کوه) که چرې هغوی په خوښه سره ښه مال درکوی نوواخله ګنی نوبیا یادساته چه دمظلوم دخیرونه ځان بچ ساته.ځکه چه دمظلوم دخیرو اودالله تعالی په مینځ کښې هیڅ پرده نشته یعنی دمظلوم خیره ډیره زرقبلیږی.دینه په هرحال کښې ځان بچ ساتل پکاردی ځکه چه دمظلوم امداد.ضرورکیږی.حدیث قدسی دې ابی هریرة ﵁ نه روایت دې چه حضورﷺ اوفرمائیل چه درې کسان دی چه دهغوی دعانشی ردکولې.

❶ **روژه دار**: چه کله روژه ماته کړی. ❷ **انصاف دار بادشاه**.(یعنی مسلمان بادشاه) ❸ **مظلوم**: دمظلوم دعاالله تعالی دوریځونه دپاسه اوچتوی.اودآسمان دروازې دمظلوم د دعاپاره پرانزی او(رب) فرمائی چه زما په خپل عزت قسم دې چه ستا امدادبه کوم اګرکه دا امداد څه موده پس وی(خداکی باتیں ص۱۲۵بحواله ترمذی) داحدیث دمظلوم باره کښې وو.اوس یوحدیث قدسی دظالم په باره کښې لیکلې شی.دابن عباس﵄ نه روایت دې چه الله تعالی په حضرت داؤد﵇ باندې وحی نازله کړه چه اې داؤد﵇ ظالمان اُمراء اوحُکام خبرکړه چه هغوی د زما ذکر نه کوې ځکه چه زما دا اصول دی چه څوك زما ذکرکوی نو زه دهغوی ذکرکوم اوددغه ظالمانوذکر زما سره دا دې چه په دوئ باندې لعنت اوکړم(انتهی) ددې وجې نه هغوې دې زمادَ ذکرنه ځان بچ کړی (دیلمی ابن عساکرپه حواله (خداکی باتیں ص۵۶)

**ترکیب**۞ اِتَّقِ فعل انت فاعل دعوة المظلوم مضاف مضاف الیه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه مُعلل ف تعلیلیه ان حرف مشبه بالفعل ہ ضمیر اسم دلیس دفعل ناقص.بینها مضاف مضاف الیه معطوف علیه.واوعاطفه بین الله مضاف مضاف الیه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه مفعول فیه شو دثابتًا محذوف دپاره،ثابتًا اسم فاعل (هو ضمیر) او مفعول فیه سره خبرمقدم دلیس.حجاب اسم مؤخر.لیس سره دخپل اسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه دانَّ.انَّ سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه تعلیل.معلل سره دتعلیل نه جمله فعلیه انشائیه.

﴿۱۲۸﴾-اِتَّقُوااللّٰهَ فِي هٰذِهِ الْبَهَائِمِ الْمُعْجَمَةِ فَارْكَبُوهَا صَالِحَةً وَاتْرُكُوهَا صَالِحَةً (ابوداؤد) [تخریج:- مشکواة: ص:۲۹۲، س:۶، عن سهل بن الحنظلیة﵁ مرفوعًا]

**ترجمه** تاسو او ويرېږئ دالله تعالى نه ددې بې زبانه څاروؤ باره کښې، پس تاسو سورېږئ په دې باندې په داسې حال کښې چه دا ټهيك وى اوتاسو پرېږدئ دې لره په دې حال کښې چه دا ټهيك وى.

**تشريح اوشان ورود** راوى حضرت سهل رضى الله عنه وائى چه يوځل حضور ﷺ داسې اوښ سره تيرشو چه دهغه شادهغه خيټې سره لګيدلې وه(ډير اوږې تږې اوښ وو) نووې فرمائيل چه تاسو اوېرېږئ دالله تعالى نه.ددې بې زبانه څار . باره کښې،پس (اوس واورئ ترقيامته پورې فيصله) چه په دوى باندې هغه وخت سورېږئ.کله چه دا تندرست (څاربه او ماړه) وى او دوى پرېږدئ په داسې حال کښې چه تندرست (او څاربه) وى.مطلب ① دادې چه تاسو په څاروو سورلى كوئ نوپه دوئ کښې که چرې دتللو طاقت وى نوسورلى وربانديې كوئ ګني نوپه تکليف کښې ئې مه اچوئ.اوکله چه تاسوهغه دخوراك دپاره پرېږدئ نودهغې ښه خيال ساتئ چه څاربه وى ② معنى داهم کړې شوې ده چه تاسو په څاروو باندې سورلى كوئ چه کله هغه دسورلئ صالحه وى يعنى من غير اتعابها چه ستړې نهٔ وى.اوهغه پرېږدئ قَبلَ اتّعَابِهَا يعنى د ستړې کيدلونه مخکښې څاروى پرېږدئ.چه هغه ارام اوکړى غرض دادې چه د دوى حفاظت كوئ اوددوى دخوراك څکاك خاص خيال ساتئ.اوبغير دځه وجې هغه مهٔ وهئ اوپه دوى باندې زيات بوج مهٔ اچوئ.

**تركيب** اِتَّقُوا فعل فاعل لفظ الله مفعول به في جار هذه اسم اشاره البهائم موصوف المُعجَمَة صفت.موصوف سره دصفت نه مشاراليه.اسم اشاره سره دمشارٌ اليه مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه مفسر.ف.تفسيريه اركبوا فعل فاعل ها ضميرذوالحال صالحة حال.ذوالحال سره دحال نه مفعول به.فعل سره دځپل فاعل اومفعول به نه جمله فعليه انشائيه معطوف عليه.واوعاطفه اتركـوا فعل فاعل ها ذوالحال صالحة حال.ذوالحال سره دحال نه مفعول به فعل سره دځپل فاعل اومفعول به نه جمله فعليه انشائيه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه جمله معطوفه تفسير.مفسر سره دتفسيرنه جمله فعليه انشائيه تفسيريه شوه.

﴿١٢٩﴾- لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ وَلَا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ

(بخارى ومسلم)[تخريج:_ مشکواة: ص:٢٢١، س:١٣، عن ابن عباس رض مرفوعًا]

**ترجمه** هيڅ کله دې يواځې والې نه كوى يوسړې دښځې سره،اوهيڅ کله دې سفرنه كوى يو ښځه مګر داچه دهغې سره ځوك محرم وى.

**تشریح او پوره حدیث** هرکله چه حضورﷺ دا ارشاد اوفرمائیلو چه هیڅ کله دې سړې اجنبی او غیرمحرم ښځې سره نۀ ځانله کیږی.نه دې ورسره په یواځې والی کښې کینی.نۀ د ورسره خبرې کوی بلکه نه د ورسره ځانله کیږی هم.اوهیڅکله دې یوه ښځه دخپل بالغ محرم نه بغیر شرعی سفر (اته څلویښت میله فاصله) کوی.دې اوریدلوسره یوصحابی اووئیل(اُکتبت فی غزوة کذا وکذا) یعنی زما نوم ورکړې شوې دې جهاد دپاره زه جهادته ځم او زما ښځې دحج احرام تړلې او وتلې ده نوپه دې باندې حضورﷺ اوفرمائیل : چه ته لاړشه اودخپلې ښځې سره حج اوکړه.ددینه معلومه شوه چه دښځې سره دمحرم تلل په سفرکښې ډیرزیات ضروری دی.ځکه ئې دیته ترجیح ورکړه اوپه جهادباندې ئې مخکښې کړلو.شریعت دښځې دپاکدامنۍ څومره خیال ساتلې دې چه دسړی ذمه داری یې اولګوله چه ته به ورسره یوځائې ځې.دښځې سفر ئې یواځې ناجائزاوحرام اوګرځولو.دبخاری اومسلم په بل حدیث کښې راځی.ابوهریرهؓ فرمائی حضورﷺ اوفرمائیل چه هیڅ کله دې یوه ښځه شپه او ورځ سفرنۀ کوی یعنی (شپاړس میله) بغیر دخپل محرم نۀ.مقصددادې چه کوم ته په عرف کښې سفر وئیلې شی هغه به ښځې ځانله نۀ کوی.دکم نه کم سفرشپاړس میله وی یعنی دیوې شپې او ورځې سفر.ددې وجې نه بهتره داده چه هیڅ یوه ښځه به بغیر دمحرم نه سفرنۀ کوی.خصوصا دفتنې زمانه کښې.ځکه چه نهی تاکیدسره شوې ده لیکن دشپاړس او اته څلویښت میله فاصله کښې تطبیق په دې طریقه کولې شی چه یوصورت داکیدې شی چه شپاړس میله کښې دننه دننه ځانله سفرکولې شی لیکن بیاهم بهتره نه ده.اود شپاړس میله نه ترآته څلویښت میله پورې دبالغ محرم اود نورو ښځوسره سفرکولې شی.اوداته څلویښت یا ددینه زیات میله چه وی نوبغیر دنابالغ محرم نه نا جائزاوحرا م دې.(والله اعلم بالصواب)

په بعضو روایاتوکښې شپږمیله اوپه بعضوکښې اته اوپه بعضوکښې دولس داټول په افضلیت باندې محمول دی.

**نکته** لیکن بیاهم یوه موقعه ده چه هلته شریعت دښځې بغیر دمحرم نه تلل نه دی منع کړی.هغه موقعه صرف اوصرف دهجرت ده.اوهغه هجرت چه فرض شوې وی چه دانسان مونځ روژه وغیره اداکول ممکن نۀ وی بیابغیر دمحرم نه هم سفرکولې شی.(مرقات جلد۵ص۲۶۸)

**ترکیب** لَايَخلُوَنَّ فعل رجل فاعل ب جارامراة مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه معطوف علیه واوٌ عاطفه لَاتُسَافِرَنَّ فعل اِمرَاءَ ةٌ ذوالحال الا حرف استثناء لغو واوحالیه معها مضاف الیه مفعولٌ فیه شو دثابت محذوف دپاره.ثابت اسم فاعل په دې کښې ضمیردې هو.هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه خبرمقدم،محرم مبتداء موٴخر مبتداء سره دخپل خبرنه جمله اسمیه خبریه حال

شو.ذوالحال سره دحال نه فاعل لاتسافرن فعل سره دخپل فاعل نه معطوف.معطوف علیه سره دخپل معطوف نه جمله فعلیه انشائیه.معطوف شوه.

﴿۱۷۰﴾- لَاتَتَّخِذُوْاظُهُوْرَدَوَابِكُمْ مَنَابِرَ (ابوداؤد)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۳٤۰، س:۲، عن ابی هریرۃؓ مرفوعًا]

**ترجمه** مه جوړوئ دخپلو څاروو شاګانې منبرونه.

**تشریح اومکمل حدیث** بغیر دځه ضرورت نه په څاروو باندې سوریدل یاپه تلوتلو کښې چاسره اودریدل.فضول خبرې کول اواخستل خرڅول شروع کول.وغیره داکارپه څاروو باندې دظلم حیثیت لري ددینه ئې منع اوفرمائیله.چه دخپلوڅاروو شاګانې ممبرمهٔ جوړوئ یعنی په څاروو دپاسه اودریدلونه پرهیز اوکړئ هغه هم دالله تعالی مخلوق دې.هغوی ته هم دزیات وزن نه تکلیف وی.بیائې وړاندې اوفرمائیل چه الله تعالی څاروی ستاسودپاره تابع ګرځولی دی.چه تاسواورسیږئ هغه ښارته چرته چه تاسوته پیاده تللوکښې تکلیف رسیږی.اووې فرمائیل: چه الله تعالی ستاسودپاره زمکه پیداکړې ده تاسوپه دې باندې خپل ضرورتونه پوره کړئ.څاروی ولې تنګوئ.حضورﷺ پخپله په عرفات باندې په خپله سورلئ باندې خطبه اولوستله هغه هم په ضرورت کښې داخل وه.غرض دادې چه یوڅاروی ته بغیر دضرورت نه تکلیف ورکول نهٔ دی پکار اودضرورت په وجه دضرورت په اندازه کفایت کول پکاردی.دغه شان داخیال ساتل پکاردی چه چرته ستړې شوې خونهٔ دې یا اوږې تږې خونهٔ دې.اوبغیر دضرورت نه یوڅاروې تنګول نهٔ دی پکار.اونهٔ ئې وهل پکاردی.الله تعالی دې مونږ ټولوته صحیح پوهه نصیب کړی.آمین ثم آمین یاربّ العالمین (مرقات ج۷ص٤۳٥)

**ترکیب** لَاتَتَّخِذُوا فعل فاعل ظهور مضاف دواب مضاف الیه مضاف کم مضاف الیه.مضاف سره دخپل مضاف الیه بیامضاف الیه شو.مضاف سره دخپل مضاف الیه نه مفعول به اول منابر مفعول به ثانی.فعل سره دفاعل اودواړومفعولینونه جمله فعلیه انشائیه شوه.

﴿۱۷۱﴾- لَاتَتَّخِذْ شَيْئًافِيْهِ الرُّوْحُ غَرَضًا (مسلم)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۳٥۷، س:۲٦، عن ابن عباسؓ مرفوعًا]

**ترجمه** مه جوړوئ د روح والا څیز نښه.

**تشریح** دساه والا څیزنښه (نشانه) مهٔ جوړوئ.ددینه مخکښې په مشکوة کښې دابن عمرؓ نه مرفوعًا روایت دې.چه حضورﷺ لعنت فرمائیلې دې په داسې سړی څوک چه دیو ژوندی څیز یو اندام (بغیر دسخت ضرورت نه) پریکوی.یویل حدیث دې په جامع صغیرکښې دابن عباسؓ مرفوعا روایت دې(مرقات جلد۸ ص۱۱٦) چه حضورﷺ منع کړې ده د داسې څیز نشانه

ګرځول چه په هغې کښې ساه وی.امام نووی دابيان ورکړې دې چه دانهی اوممانعت دحرام والی دپاره دې چه بغير دځه وجې نه يو ساه لرونکې وهل يايو اندام پريکول مکروه تحريمی دی اوناجائز دی دځو وجونه① دساه والا ځيزته عذاب ورکول دی اوداناجائز دی② دساه والا ځيزهلاکول دی.کومه چه سخته ګناه ده ③ د ساه والا ځيزماليت ضائع کول دی داهم ناجائز اوحرام دی.بهرحال يو ساه والا ځيز بغير دسخت ضرورت نه وژل نهٔ دی پکار،بلکه بعضې ساه والاځيز دانسان دپاره دمغفرت دعاکوی نو زمونږدپاره دځناورو وهل دعقل نه هم خلاف دی.ليکن دقربانۍ په وخت کښې ځناور ذبح کول داپه ځناورظلم نهٔ دې ځکه چه داد خلق اومالك حکم دې.(مرقات جلد۸ ۱۱۶)

**ترکيب** لَاتَتَّخِذُوا فعل فاعل شيئا موصوف فيه جار مجرورمتعلق په ثابتا پورې الروح فاعل دثابتا دپاره.ثابتا اسم فاعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه شبه جمله صفت شو.موصوف سره د صفت نه مفعول به اول غرضًا مفعول ثانی فعل سره د فاعل اود دواړو مفعولينو نه جملہ فعليه انشائيه شوه.

﴿۱۷۲﴾- لَاتَجْلِسْ بَيْنَ رَجُلَيْنِ إِلَّا بِإِذْنِهِمَا (ابوداؤد)

[تخريج:_مشكواة: ص:۴۰۳، س:۲۴، عن عمروبن شعيب عن ابيه عن جده مرفوعًا]

**ترجمه** ته مه کينه د دوو سړوپه مينځ کښې مګر دهغوی دواړوپه اجازت سره.

**تشريح** د دوو سړوپه مينځ کښې بغيراجازت نه دکيناستلونه سخته منع راغلې ده.ډيرو حديثونو نه دا معلوميږی.چه کله دوه کسان يوځائې کيناستل غواړی نو د دريم کس دپاره دهغوی دواړوميځ کښې جدائی راوستل دضرر رسولوسبب ګرځی اودتکليف سبب دې اودا منع ده لهذا د دوو کسانومينځ کښې بالکل کيناستل نهٔ دی پکار ځکه چه دمختلفو احاديثو نه منع ثابتيږی مثلا① هم دا حديث چه دابو داؤد شريف روايت دې② دبيهقی روايت دې دابن عمرو رضی الله عنه مرفوعا چه حضور ﷺ منع کړې ده د دوو کسانو مينځ کښې دکيناستلونه،بغير دهغوی داجازت نه ③ په مشکواة کښې (ص۴۳-۲۳) باندې د عبدالله بن عمرو رضی الله عنه نه مرفوعًا روايت دې چه ديوانسان دپاره حلال نهٔ دی چه هغه جدائی راولی د دوو کسانو مينځ کښې (په هغوی کښې کيناستلوسره) مګردهغوی په اجازت سره.(رواه الترمذی وابوداؤد)

**د دوو کسانو په مينځ کښې دناستې شرعی حکم** **مسئله** ① که چرې هغه دواړه راتلونکې پيژنی اوراتلونکی ته هم دامعلومه وی چه ماپيژنی او زما په ناسته دوئی ته تکليف نهٔ رسی.بياد سلام اچولونه روستو اجازت اخستلوسره په ناسته کښې (چه کله دهغوی دواړواجازت وی) هيڅ ګناه نشته.② که چرې ناستودوه کسانو راتلونکې اوليدلو نوپاسيدل يائې ځائې پريښودلو،نو راتلونکی دپاره سلام اچولو سره کيناستل کافی دی ځکه چه دهغوی اودريدل ياځائې ورکول دليل

دي چه څۀ تکليف نشته بلکه خوشحاليږي③که چرې راتلونکی تـه پتـه وی چه دا دواړه څۀ خاص خبره کوی نود ده کيناستل دهغوی د رضانه بغير اواجازت نه بغير جائزنۀ دي.

**ترکيب**۞ لاتَجلس فعل انت فاعل بين مضاف رجلين مضاف اليه.مضاف سره دمضاف اليـه نـه مفعول فيه الا حرف استثناء لغو،ب جاراذنهما مضاف مضاف اليه مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول فيه اومتعلق نۀ جمله فعليه انشائيه.

﴿۱۷۳﴾- بَادِرُوْا بِالصَّدَقَةِ فَاِنَّ الْبَلَاءَ لَا يَتَخَطَّاهَا (رزين)

[تخريج:_ مشکواة: ص:۱۶۷، س:۷، عن علیؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞جَلتی کوئ په صدقه کښې،پس بيشکه مصيبت مخکښې کيدې نشی د صدقې نه.

**تشريح**۞ جَلتی کوئ په صدقه کولوکښې ځکه چه دمصيبت هيڅه پته نۀ لګی چه کله نازليږی ځوك چه په صدقه کولوکښې جَلتی کوی نودمصيبت نـه بـه محفوظ شی.داهم وئيلې شوی دی چه صدقه اومصيبت دهغه دوؤ آسونوپه شان دي چه په هغوی شرط لګولې شوې وی کوم يوچه مخکښې اوځی.نو دويم اونۀ رسيږی.دغه شان صدقه که چرې مخکښې شی نومصيبت به نۀ رسيږی اوکله چه صدقه اونکړی نوتکليف اومصيبت به نازل شی.(مرقات جلد ۱۹۹\٤)

**دصدقې فضيلت**۞ **حديث** نمبر① تيرشو.**حديث** نمبر② سخاوت کونکې الله تعالی تـه نـزدې وی. جنت ته نزدې وی.اوجهنم نه لرې وی.بخل کونکې دالله تعالی نه لرې وی.دجنت نـۀ لـرې وی. دخلقونه لرې اوجهنم تـه نـزدې وی.سخاوت کونکې جاهـل(يعنی ځوك چـه صرف فـرائض ادا کوی اونوافل پريږدی اوسخاوت کوی.) هغه الله تعالی ته زيات محبوب دې دهغه سړی نه چه ډيرعبادت کونکې وی او بخيـل وی (عن ابی هريرةؓ مرفوعًا مشکواة ص ١٦٤س٢٥په حوالـه دترمذی)

**حديث**③ پـه صدقه کولوسره انسان دخراب مرګ نۀ بـچ کيـږی اودالله تعالی دغضب نـه بـچ کيږی.داحديث شريف روستوحديث نمبر۹۷ کښې تيرشوې دي.

**صدقه څه ته وائی**۞ دصدقې دائره ډيره وسيع ده صرف مـال ورکولوتـه صدقه نـشی وئيلې. بلکه دصدقې مختلف صورتونه دی ① دټولونـه بهتـره صدقه هغـه ده کومـه چـه دمـال نـۀ کيـږی چـه پـه هغې سره دغريب امدادکيږی.② چاتـه ښـه خبره خودل هم صدقه ده.③ يومسلمان رورسره پـه خوشحالئ سره ملاويدل هم صدقه ده.④ دلارې نـه ازغـې ياهډوکې ياکـانړې يابل څۀ دتکليف څيز لرې کول هم صدقه ده.⑤ هره نيکی صدقه ده.

**ترکيب**۞ بَـادِرُوا فعل فاعـل بالصدقة جـارمجرورمتعلق پـه فعـل پـورې.فعـل سره دفاعـل اومتعلق نه معلل.ف تعليليه ان حرف مشبه بالفعل البلاء اسم د اِنَّ لايَتَخَطَّا فعل هو فاعل

ها مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبريه خبردان شو. انَّ سره داسم اوخبرنه جمله اسميه خبريه تعليل شومعلل سره دتعليل نه جمله انشائيه تعليليه شوه.

﴿۱۷٤﴾- لَا تُظْهِرِ الشَّمَاتَةَ لِأَخِيكَ فَيَرْحَمَهُ اللّٰهُ وَيَبْتَلِيكَ (ترمذى)

[تخريج:_ مشكواة: ص:٤١٤،س:٨، عن واثلةؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ مه ښکاره کوه ددُشمن په تکليف باندې خوشحالي دخپل رور دپاره.پس رحم به اوکړي په هغۀ باندې الله تعالىٰ اوپه ازميښت کښې به واچوی تا.

**تشريح**۞ شَـمَاتَت وئيلې شی.دشمن مـصيبت کښې ليدلوسره خوشحاليدل.ددينه ئې منع اوفرمائيله چه ځوك ددشمن مصيبت کښې ليدلوسره نۀ خوشحاليږی.ځکه کيدې شی چه الله تعالى دغه دشمن ته دمصيبت نه خلاصې ورکړی اوپه هغه رحم اوکړی اوتا (په خوشحاليدو) مصيبت کښې اخته کړی.ددې وجې نه چالره په تکليف کښې ليدلوسره خوشحاليدل نۀ دی پکار.ځکه چه دوخت وخت خبره وی په يووخت کښې يوسړې خوشحاله وی اوبل خفه وی. ددې برعکس معامله هم کيږی.په دې حديث شريف کښې چه ددشمن په مصيبت دنۀ خوشحاليدلوحکم دې.ددينه معلومه شوه چه ځوك دشمن نه وی.دوست وی ياجنبی(نااشنا) وی نودهغه په تکاليف باندې خوشحاليدل ډيره ناپوهی‌اوکم عقلی ده.

**ترکيب**۞ لاتُظهِر فعل اَنتَ فاعل الشماتة مفعول به ل جاراخيك مضاف اليه مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به نه معلل ف تعليليه يرحم فعل ه ضمير مفعول به لفظ الله فاعل فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبريه معطوف عليه شوه.واؤ عاطفه يبتلی فعل هوضميرفاعل.ك مفعول به.فعل سره دفاعل او مفعول به نه جمله فعليه خبريه معطوف معطوف عليه سره دمعطوف نه تعليل.معلل سره دتعليل نه جمله فعليه انشائيه تعليليه شوه.

﴿۱۷۵﴾- اِتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ (بخاری)

[تخريج:_ مشكواة: ص:٥٢٤، س:٢٤،عن عدی بن حاتم مرفوعًا]

**ترجمه**۞ او ويريږئ د اورنه اګرچه د کهجورې ټکړې سره وی پس ځوك چه بيانه مومی،نو ښې خبرې سره.

**تشريح اوشان ورود**۞ دا اوږد حديث دې.د دې مفهوم(معنی) کتونکوته وړاندې کولې شی.راوی عدی بن حاتمؓ فرمائې چه زه دحضورﷺ سره ناست ووم چه يوسړې راغې اودلوږې شکايت ئې اوکړوچه هروخت لوږه وی.ددې په جواب کښې حضورﷺ پيشن ګوئی اوفرمائيله: که چرې ستا عمر اوږد شو.نود کسری خزانې به فتح شی.اوکه ستاعمر اوږد شی نوداسې وخت به

راشی چه دزکوة اوخیرات اخستونکې به هیڅوك نهٔ وی.اوبل یوکس راغې هغهٔ د ډاکې (شوکې ) باره کښې خبره اوکړه چه شوکې کیږی د دې په جواب کښې حضورﷺ اوفرمائیل چه اې عدی آیا تا حیره (کوفې سره یوښاردې) لیدلې دې.په بل روایت کښې راځی چه عدی اووئیل چه نهٔ می ده لیدلې.ددې جواب کښې ئې اوفرمائیل چه داسې وخت به راشې چه مسافره ښځه به دحیره مقام نه دمکې پورې ځی اوهغې ته به هیڅ قسم ویره نهٔ وی سوادالله تعالی نه.یعنی دومره امن به وی چه دځه ډاکې وغیره ویره به نهٔ وی.او وې فرمائیل: چه په کومه ورځ الله تعالی سره بلاواسطه ملاقات وی نوالله تعالی به تپوس اوکړی چه ولې ما تاته رسول نهٔ وو درلیږلې؟ ولې ماتاته مال نهٔ وو درکړې؟ بنده به اوځ.اوځ کوی نوچه بنده ښی طرف ته اوګوری نو جهنم به ورته په نظرراځی.اوګس طرف ته چه اوګوری نوده ته به جهنم په نظر راځی.بیائې اوفرمائیل: اتَّقُوالنَّارَ الخ چه د اورنه اوېریږئ یعنی زکوة ورکړئ اګرچه دکجورې دټکړې برابر وی.یعنی که لږ واجب شوې وی نو لږ ورکړئ.اوکه زیات واجب شوزیات ورکړې.غرض دادې چه هغه په واجب کیدوباندې منحصردې.وړاندې ئې اوفرمائیل: څوك چه مال نهٔ لری هغه له پکاردی چه چاته ښه خبره اوښائی داهم صدقه ده.راوی (عدی) فرمائی چه دسفرکونکې ښځې باره کښې چه کومه پیشنګوئی ورکړې شوې وه هغه ماپخپله اولیدله چه دحیره نه ترمکې پورې ښځه لاړه اوهغې ته دهیچانه ویره نهٔ وه بغیر دخدائې پاك نه.یعنی هرځائې امن امن ؤ.اود دویمې پیشنګوئ باره کښې دوه قوله دی.هغه وخت چه دزکوة اخستلو والابه پاتې نشی.یاخودعمر بن عبداالعزیز زمانه وه یابه دحضرت عیسیؑ دنزول نه روستووی.دازیات راجح (قوی) قول دې.ځکه چه داوخت یقینا راتلونکې دې.ځکه چه په دغه وخت کښې به مکمل اسلامی نظام وی.اوزکوة به هرسړې ورکوی تردې چه اخستلووالابه ډیرځل نهٔ ملاویږی.

**ترکیب**﴿﴾ اتَّقُوفعل فاعل النارمفعول به.واو وصلیه لوحرف شرط.ب جار شق مضاف تمرة مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور جار سره دمجرورنه متعلق په فعل پورې. فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه امر ف جوابیه من (په معنی دان) شرطیه (لَم یَجِـد) فعل فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه ب جار کلمة موصوف طیبة صفت.موصوف سره دصفت نه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل اتقوا محذوف پورې.اتقوا فعل سره دفاعل اومتعلق نه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله شرطیه جزائیه جواب دامرشو.امرسره دجواب امرنه جمله فعلیه انشائیه امریه شوه.

﴿۱۷۶﴾- جَاهِدُواالْمُشْرِكِيْنَ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ وَأَلْسِنَتِكُمْ (ابوداؤد)

[تخریج:۔ مشکواة: ص:۳۳۲، س:۱، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه** جهاد کوئ تاسو مشرکانوسره خپلو مالونو ،او ځانونو او ژبوسره.

**تشریح** مشرکانوسره په هرشان جهادکوئ مال سره هم، ځان اوژبې سره هم مال سره جهاد دادې چه سامان جنګ تیارکړئ اود مجاهدینو امداد کوئ څومره چه زیات خرچ په جهاد کښې اوکړې شی هغومره به زیات ثواب وی.ځکه چه دمشکوة په حدیث کښې (ص۳۳۲س۱۰) خریم بن فاتك نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمائی. چه کوم سړی په جهاد کښې څه خرچ کړل نودهغه دپاره اوه سوه(۷۰۰) چنده ثواب لیکلې شی (رواه الترمذی والنسائی) اوپه ځان سره جهاد دادې چه خپل ځان دالله تعالی په لارکښې دکفارو سره دجنګ دپاره پیش کړی.وړاندې که هغه ئې اوبلی(قتل شی) نوشهید .اوکه اونه بلی نوغازی ئې.شهید اوغازی الله تعالی سره ډیر اوچت مقام لری.په مشکوة ص۳۳۳س۴ باندې حدیث دې.دمقدام بن معدیکرب نه روایت دې چه حضور ﷺ اوفرمائیل: چه دشهید دپاره الله تعالی سره شپږخصلتونه (انعامونه) دی ① رومبئ مرتبه کښې بخښلې شی اوجنت به ورته اوخودلې شی.② دعذاب قبرنه به بچ کړې شی.③ دلوئې ویرې نه به محفوظ کړې شی.④ دده په سرباندې به دیاقوت تاج کیخودلې شی.⑤ داویا حوروسره به دده نکاح اوکړې شی.⑥ داویاکسانودپاره به سفارش کوی ژبې سره جهاد دادې چه کافران ویره وی اومسلمانانوکښې دجهادشوق راپیداکوی. ددې هم ډیر زیات فضیلت دې اوهغه داچه داهم جهاد دې اودجهادپه ټولوفضیلتونو کښې شامل دې.

**ترکیب** جَاهِدُوا فعل فاعل المشرکین مفعول به.ب جار اموالکم مضاف مضاف الیه معطوف علیه واو عاطفه انفسکم مضاف مضاف الیه معطوف اول.واو عاطفه (اَلْسِنَتِکُم) مضاف مضاف الیه معطوف ثانی معطوف علیه سره د دواړو معطوفینونه مجرور دجار،جار سره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دخپل فاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه شوه.

﴿۱۷۷﴾- اِغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ شَبَابَكَ قَبْلَ هَرَمِكَ وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ وَغِنَاكَ قَبْلَ فَقْرِكَ وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ وَحَيٰوتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ (رواه الترمذی مرسلا)

[تخریج:_ مشکواة: ص:٤٤١، س:٢، عن عمروبن میمون الاودیؒ مرسلا مرفوعا]

**ترجمه** ته غنیمت اوګڼره پنځه څیزونه د پنځونه مخکښې،خپله ځوانی د بوډاوالی نه مخکښې،اوخپل صحت دخپلې بیمارئ نه مخکښې،اوخپله مالداری دخپلې غریبئ نه مخکښې اوخپل فراغت دخپلې مشغولتیا نه مخکښې اوخپل ژوند دخپل مرګ نه مخکښې.

**تشریح او شان ورود** حضرت عمرو بن میمون فرمائی چه حضور ﷺ یوسړی ته نصیحت کولو اودپنځه څیزونو دقدرکولونصیحت ئې اوفرمائیلو.

(۱) اې مخاطبه ته دخپلې ځوانئ قدر اوکړه.بوډا کیدونه مخکښې.یعنی په کومه زمانه کښې چه دعبادت کولوزیات طاقت وی هغه طاقت په دغه زمانه کښې په عبادت کښې خرچ کړه ځکه چه بوډا شې نوبیابه ته دغه شان عبادت نشې کولې.

(۲) اودخپل صحت قدراوکړه دبیمارئ نه مخکښې.یعنی اګرچه بوډاسړې وی دصحت قدرلازم دې یعنی خپل طاقت په عبادت کښې صرف کړه.

(۳) اودخپلې مالدارئ قدزدغریبئ نه مخکښې اوکړه.یعنی مالدارکیدلوسره دتکبرنه ځان بچ کړه.فخر او غرورمه کوه.کیدې شی.چه صباته غریب شې.ددې وجې نه نن غریبانوته اوګوره اوپخپله مالدارئ شکرګذارشه اوقدرئې اوکړه.

(۴) اودخپلې اوزګارتیا قدر اوکړه.دخدائې پاك په ذکرکښې مشغول شه.اوڅومره زیات عبادت چه کولې شې هغه اوکړه دخپل مشغول کیدلونه مخکښې یعنی په څۀ دنیاوی جائز کارکښې مشغول کیدلونه مخکښې.یعنی اوس په لږوخت نوکری کوې یابالکل نوکری نه کوې نواوس وخت فارغ دې اوپه عبادت کښې خرچ کړه.اوکله چه څۀ لږه نوکری یادډیروخت کارکولونوکړې اولګیده.نوبیابه دعبادت کولو وخت کم ملاویږی.او ددې دامعنی هم ده.( زما په نزد ) چه دواده نه مخکښې مخکښې فراغت شان وی.په دې وخت کښې زیات عبادت کول پکاروی.اود وادۀ نه روستو مشغولتیا زیاتیږی.ددې وجې نه ئې اوفرمائیل چه دخپل فراغت قدراوکړه دخپلې مشغولتیانه مخکښې مخکښې.

(۵) اودخپل ژوندقدراوکړه دمرګ نه مخکښې.دټولو خبروخلاصه داشوه چه مرګ ضرور راتلونکې دې اوپه هرسړی راتلونکې دې اوداضروری نۀ ده چه صرف.په بوډاوالی کښې مرګ راشی بلکه په هرعمرکښې مرګ راتلې شی.ددې فکرپکاردې.دفرضو، واجبو، سنتو پابندئ سره سره دالله تعالی درحمت دنجات امیدلرل هم ساتل پکاردی.الله تعالی دې زمونږ دټولوخاتمه په ایمان سره اوکړی اوبغیر دعذاب نه دې زمونږه بخښنه اوکړی. (آمین ثم آمین یارب العلمین)

**فائده اونکته** په ټول زادالطالبین کښې صرف دوه حدیثونه مرسل دی باقی ټول مسند دی. دمرسل هم معنی مسندحدیثونه هم موجود دی.

**سوال** بیائې مرسل دمسندپه ځائ ولې ذکرکړل؟

**جواب** وجه داده چه په نحوی اعتبارسره په یوشان جملوکښې حدیثونه ذکرشوی دی.ددې وجې نه دلته دامرسل مناسب دې.

**سوال** په زادالطالبین کښې هغه کوم کوم حدیثونه دی چه مرسل دی؟

**جواب** ① هم دا حدیث دکوم چه اوس تشریح بیان شوه. ② د زادالطالبین په ص۳۱ اودمشکوة په ص۳۱ باندې دبدعت باره کښې داحدیث دې: (مَن وقّرصَاحب بدعَةٍ فقد اَعان عَلی هَدَم الاسلاَم)

**سوال** دحدیث مرسل اومسندتعریف څهٔ دې؟

**جواب** حدیث مرسل هغه حدیث دې چه دهغې دسندپه اخرکښې یو راوی غورزیدلې وی.او مسند هغه حدیث دې چه په هغې کښې ټول راویان ذکرشوی وی.داتعریف اخستلې شوې دې د خیر الاصـــول فی حدیث الرسول ص٤ او ص٦ نه.

**فائده** دلته چه کوم داحدیث مرسل دې د دې دامعنیٰ نهٔ ده چه داضعیف دې اودعمل قابل نهٔ دې.بلکه ددې مضمون بل مسندحدیث دمرقات په (جلد۹ص۳۶۱) باندې په حواله دبیهقی لیکلې شوې دې ددې وجې نه دامرسل هم دمسندپه حکم کښې دې.

**ترکیب** اِغْتنِمْ فعل انت فاعل خَمسًا مبدل منه اول شَبَابَكَ مضاف مضاف الیه معطوف علیه واو عاطفه صِحَّتَكَ مضاف مضاف الیه معطوف اول،واو عاطفه غِنَــاكَ مضاف مضاف الیه معطوف ثانی واو عاطفه فَرَاغَكَ مضاف مضاف الیه سره معطوف ثالث،واوْ عاطفه،حیوتك مضاف مضاف الیه سره معطوف رابع، معطوف علیه سره دمعطوفات اربعه نهٔ بدل مبدل منه اول سره دخپل بدل نه مفعول به قبل مضاف،خمس مضاف الیه.دواړه مبدل منه ثانی. قبل مضاف هرم مضاف الیه مضاف ك مضاف الیه، مضاف سره دمضاف الیه بیامضاف الیه بیامضاف الیه شو.مضاف سره دمضاف الیه نه معطوف علیه واو عاطفه قبل سقمك داهم دغه شان ټول مضاف مضاف الیه نه معطوف اول واوْعاطفه قبل فَقْــرِكَ په مخکنی ترکیب سره معطوف ثانی واوعاطفه قبل شغلك معطوف ثالث واوعاطفه قبل موتك معطوف رابع.معطوف علیه سره دمعطوفات اربعه نه بدل مبدل منه ثانی سره دخپل بدل نه مفعول فیه.فعل سره دخپل فاعل اومفعول به اومفعول فیه نه جمله فعلیه انشائیه شوه.

## لَیْسَ النَّاقِصَة

﴿۱۷۸﴾- لَیْسَ الشَّدِیدُ بِالصُّرَعَةِ إِنَّمَا الشَّدِیدُ الَّذِی یَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَضَبِ

(بخاری ومسلم)[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۳۳، س:۱۰، عن ابی هریرة رض مرفوعًا]

**ترجمه** نه دې پهلوان راپرزونکې بې شکه پهلوان هغه دې څوك چه دخپل نفس مالك وی دغصې په وخت.

**تشریح** مضبوط اوپهلوان هغه سړې نهٔ دې چه خلق راپرزوی اویوخوا بل خوا تکبرسره ګرځی اوخلق دهغهٔ نه ویریږی.بلکه بهادر اوپهلوان هغه څوك دې چه دغصې په وخت کښې خپل

نفس قابو کښې ساتی فوراً دغصې تقاضا پوره کولوباندې عمل نۀ کوی.دحضرت تهانوی رحمه الله ارشاد دې چه غصه اوشهرت دوه څیزونه داسې دی چه ددې په مقتضی باندې فوراً عمل کول نۀ دی پکار.ددې په درمیانه درجه باندې عمل کول پکاردی.دغصې درې درجې دی ① تَهَوّر یعنی دومره زیاته غصه چه دقابونه بهر شي داناجائزدرجه کښې ده.ددې مثال داسې دې چه یوانسان دبجلۍ په ځائ پکې.اوچلولو اوس داسړې دپکی چلونکی سره دومره جهګړه کوی چه وهلوته ئې تیارشی.داپهلوانی نۀ ده.دادغصې ګرمائش اوبې وقوفی ده کوم ته چه دغصې اوچته درجه یعنی تَهَوّر وئیلې شی.

② جبن یعنی بزدلی دغصې ډیرکم والې یاغصه نۀ موجودیدل داهم په شریعت کښې ناجائزده.ددې مثال دادې چه دیوسړی دخور یا مورعزت لوټ کولې شی ده له هډوغصه نۀ راځی.یاقاضی په عدالت کښې دجرم ثابت کیدلونه روستوسزانۀ ورکوی.دابزدلی ده داهم په شریعت کښې ناخوښه ده.شریعت اعتدال خوښوی.③ شجاعت یعنی بهادری داپه غصه کښې درمیانه درجه ده.دداسې غصې په هرسړی کښې موجود والې ضروری دې ددې مثال داسې دې چه ماشوم شرارت اوکړو،پلارپوهه کړلو بیا ئې شرارت اوکړونویوه څپیړه ئې اووهلو،دانه چه لړشان دطبیعت نه خلاف خبره اوشوه یاڅۀ کار اوشو،اوسمدستی پرې راباندې کړی دابهادری نۀ ده.بهادری داده چه سوچ نه پس ئې بدله واخستله اودومره ئې واخستله چه څومره تکلیف ورته شوې وُو.زیاته بدله اخستلوسره به بیاظلم شی.

**دکلام خلاصه** ۞ خلاصه داده چه طبیعت نه خلاف قول یافعل باندې دوینې جوش کول غصه ده اوپه غصه کښې میانه روی داده چه دشریعت په حدودوکښې ژبه یالاس استعمال کړی او غصه قابوکړی دانه چه جنګ په کور کښې شوې دې لیکن دغصې اظهار بهرهم کیږی یا برعکس زمونږشریعت هرځائې دمیانه روئ سبق ورکوی.

**ترکیب** ۞ لَیْسَ موصوف الناقصة ئې صفت موصوف سره دصفت نه مفعول به شو د اقراء محذوف فعل دپاره اقراء فعل دخپل فاعل (انت) اوسره دمفعول به نه جمله فعلیه انشائیه شوه.لیس فعل ناقص الشدید اسم دلیس ب جار الصَّرْعَةِ مجرور،جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتا محذوف پورې،ثابتاً صیغه داسم فاعل.اسم فاعل سره دخپل فاعل (هوضمیر) نه او متعلق نه خبردلیس.لیس سره داسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه شوه.انماکلمه دحصر،الشدید مبتداء الذی موصول یملك فعل هو فاعل.نفسه مضاف مضاف الیه مفعول به عندالغضب مضاف مضاف الیه،مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول فیه فعل سره دفاعل اومفعول به اومفعول فیه نه صله دموصول.موصول سه دصلې نه خبر.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه مستانفه شوه.

﴿۱۷۹﴾- لَيْسَ مِنَّا مَنْ خَبَّبَ اِمْرَأَةً عَلٰى زَوْجِهَا أَوْعَبْدًا عَلٰى سَيِّدِهٖ (ابوداؤد)

[تخريج:_ مشكواة: ص:۲۸۲، س:۶، عن ابی هريرهؓ مرفوعاً]

**ترجمه** نه دي زمونږنه هغه كس چاچه دهوكه وركړه يوې ښځې ته دهغې په خاوند باندې يايو غلام ته دهغې په آقا باندې.

**تشريح** يوې ښځې ته دهغې دخاوندخلاف دهوكه وركول اوفساداچول په دې شكل چه فلانكې سړې ډيرښه دي داستا خاوند خوهيڅ څيز هم نۀ دې هغه فلانكې خومالدارهم دې اوستا حقونه هم په ښه طريقه سره اداكولې شي.غرض داچه دپردى سړى صفتونه ئې بيان كړل چه دابنځه دخاوندنه جداشي.يايوغلام(مرئى) ته دهغه دمالك خلاف خبرې كوى.چه دا غلام اوتختى.داسې حركتونوسره ايمان ډيركمزورې كيږي.ځكه چه دښځې اود خاوند خلاف اود غلام او مولا خلاف خبرې كول حرام دى.دحضورﷺ د ارشاد مطابق (ليس منا) چه هغه زمونږنه نۀ دې يعنى زمونږپه اتباعوكښې نۀ دې (تابع دارانوكښې نۀ دې) هغه فاسق اوفاجر دې،كمزورى ايمان والادې (مرقات ج۶ص ۲۷۴) دكامل اومكمل ايمان والاڅوك دې؟ په دې باره كښې په مشكوة شريف كښې دذكرشوى حديث نه روستوپه حواله دترمذى دحضرت عائيشة نه مرفوعا روايت دې چه حضورﷺ اوفرمائيل چه دايمان په لحاظ دټولونه كامل ايمان والا هغه سړې دې چه دخلقو سره په ښو اخلاقوملاويږي.اودخپل كور خلقوسره ښه سلوك كوى.او ددې نه وړاندې په مشكوة شريف كښې دى.دحضرت ابوهريرةؓ حديث دې په حواله دترمذى چه دټولونه كامل ايمان والا هغه دې چه ښه اخلاق لرى اوپه تاسوكښې دټولونه بهتر هغه دې چه دخپلو ښځودپاره بهترين وى.

**تركيب** لَيْسَ فعل دافعال ناقصه نه من جارنا مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتا پورې.ثابتًا اسم فاعل پۀ دې كښې ضميردې هو هغه ئې فاعل.اسم فاعل سره دخپل فاعل نه اومتعلق نه خبرمقدم.من موصوله خبب فعل هو فاعل امراءة معطوف عليه اوحرف عطف عبدا معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه مفعول به على جار زوجها مضاف مضاف اليه مجرور.جارسره دمجرورنه معطوف عليه.اوعاطفه على جارسيده مضاف مضاف اليه مجرور جارسره دمجرورنه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعليه خبريه صله.موصول سره دصله نه اسم دلَيْسَ.لَيْسَ سره داسم اوخبرنه جمله فعليه خبريه شوه.

﴿۱۸۰﴾- لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَمْ يَرْحَمْ صَغِيْرَنَا وَلَمْ يُوَقِّرْ كَبِيْرَنَا وَيَأْمُرْ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ (ترمذى)

[تخريج:_ مشكواة: ص:۴۲۳، س:۶، عن ابن عباسؓ مرفوعاً]

**ترجمه۞** نه دې زمونږنه هغه كس څوك چه رحم نـه كـوي زمونږپـه كشرانو بانـدې، اوعزت نـه كوي زمونږ د مشرانو،اوحكم نه كوي دنيكۍ اونه منع كوي د بدۍ نه.

**تشريح۞** څوك چه دمشرانوعزت نه كوي اوپه كشرانورحم نـه كـوي اوخپلوماتحتوباندې رحم نه كوي، نهي عن المنكرنه كوي اودنيكۍ كولوحكم نـۀ كـوي هغـه دحضورﷺ دارشادمطابق زمونږنه نۀ دې يعنې كامل مسلمان نۀ دې صرف پـه نـوم مسلمان دې.داسلام پـه نـوم خوږيره دنيا خوري اوخيته پالي.صحيح اوكامل مسلمان هغه دې چه هميشه اودهرچاسره ښۀ اخلاق ساتي يعنې دمشرانو هرځائې كښې عزت اواحترام كوي اوكشرانوته بغير دضرورت نـه زورنـه رټنه نۀ كوي اوعفوه كوي.او هميشه دښۀ كارونوحكم كوي اوپخپله هم پابندوي اودهر بدكار نه منع كـوي اوپخپلـه ئې هم نـه كـوي دغـه كاميـاب مؤمن دې اوحقيقي مسلمان دې.غرض داچه اخلاق ئې ښۀ وي اودين زده كړي او وړاندې نوروخلقوته ئې ښائي او هركار اخلاص سره كوي هغه كامل مؤمن دې.

**تركيب۞** لَيْسَ فعل د افعـال ناقصه نه مِن جار نـامجرور.جارسـره دمجرورنـه متعلق پـه ثابتـا پورې.ثابتا اسم فاعل سره دخپل فاعل (هُوضمير) اومتعلق نه خبرمقدم.من موصـوله لـم يـرحم فعل هو فاعل صغير مضاف نامضاف اليه مضاف سره دمضاف اليـه نـه مفعول بـه فعـل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبريه معطوف عليـه.واوعاطفـه لَـمْ يُـوَقِّرْ فعـل هـو فاعـل كَبِيْرَنَا مضاف سره دمضاف اليه نه مفعول به.فعل سره دفاعـل اومفعـول بـه نـه مفعـول اول واو عاطفه يامر فعل هو فاعـل بـالمعروف.جارمجرورمتعلق پـه فعـل پورې.فعـل سره دفاعـل نـه جمله فعليه خبريه معطوف ثاني واو عاطفه، يَنهَ فعل هو فاعـل عـن المنكرجارمجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نـه جمله فعليـه خبريـه معطوف ثالث.معطوف عليـه سره دمعطوفات ثلاثه و نه جمله معطوفـه صله شوه.موصول سره دصلې نـه اسم دلـيس شو. ليس سره داسم اوخبرنه جمله فعليه خبريه شوه.

﴿۱۸۱﴾- لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالَّذِيْ يَشْبَعُ وَجَارُهُ جَائِعٌ إِلٰى جَنْبِهٖ (بيهقي)

[تخريج:ـ مشكواة: ص:٤٢٤، س:٢٣، عن ابن عباس رض مرفوعًا]

**ترجمه۞** نه دې مؤمن هغه كس چه هغه خپلـه خيټه ډكه وي اودهغۀ گاونډي اوږې وي دهغـه په اړخ كښې.

**تشريح۞** هغه سړې كامل مسلمان نۀ دې چه خپله خيټه ډكوي اودهغـه گانډې اوږې وي.داسې سړې چه هغۀ ته دچااحساس څه چه دخپل گاونډي احساس هم ورسره نۀ وي ده تـه پتـه ده چـه هغـه غريب دې او اوږې اوده كيږي داسې سړې سخت زړه والا اوسخت گنهگاردې اودكامـل ايمـان نـه خـارج دې اوداسړې مطلب پرست اود دنيا لالچي دې اودمال بنده دې.

**ترکیب﴾** لیس فع دافعال ناقصه نه المؤمن اسم دلیس ب جار الذی موصول یَـشْبَعُ فعل هو ضمیر ذوالحال واو حالیه جاره مضاف مضاف الیه سره مبتداء جائع صفت الی جارجنبه مضاف مضاف الیه سره دمجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابت پورې خبردلیس.لیس سره داسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۸۲﴾-لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالطَّعَّانِ وَلَا بِاللَّعَّانِ وَلَا الْفَاحِشِ وَلَا الْبَذِيِّ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۱۳، س:۱۸، عن ابن مسعودؓ مرفوعا]

**ترجمه﴾** نه دې مؤمن پیغور ورکونکې اونه لعنت کونکې،اونه ګناه کونکې اونه بې کاره خبره کونکې.

**تشریح﴾** کوم سړې چه چاته پیغور ورکوی یعنی بده ویناکوی یادلعنت الفاظ وائی کنځل کوی یاخرابې اوناکاره خبرې کوی هغه کامل مؤمن نهٔ دې.کامل ایمان هغهٔ سړی کښې وی چه دې دهرې ګناه نه ځان ساتی.او ضروری کارکوی اویه غلطئ کولوسره توبه اوباسی د داسې سړی بخښنه دمرګ سره سمه کیږی ځکه چه دې په (وَمِنْهُمْ مُقْتَصِدٌ) کښې داخل دې.په دې حدیث کښې دژبې ګناهونه بیانیږی.په دې کښې هره یوه ګناه ډیره لویه ده.لعنت اوکفر او عدوالله (دالله دشمن) دا الفاظ چه چاته اووئیلې شی دهغه طرف ته ځی.که چرې هغه سړې دلعنت مستحق نهٔ وی نودغه لعنت په ویونکی باندې پریوځی.لکه چه دابوداودپه حواله دمشکوة په (ص۴۱۳ س۲۶-۲۵) باندې صفا ذکرشوی دی.اوکه چرې دکفراوعدوالله مستحق نهٔ وی.هغه سړې چاته چه کافریا عدوالله وئیلې شوې دې نودبخاری اومسلم په حواله دمشکوة (ص۴۱۱ س ۱۷-۱۸) باندې حدیث دې بیاهغه کفراو(عَدوّالله) دالله دشمن ویونکی طرف ته واپس کیږی.الغرض چاته بدوینا) خپل ځان ته بدوئیل دی دګناه په اعتبارسره

**فائده﴾** په دې حدیث پاك کښې د ژبې ګناهونه بیان شو.غیبت، چغلی دروغ وغیره هم دژبې ګناهونه دی.دوه څیزونه داسې دی چه جهنم ته بوتلونکی دی.① ژبه ② شرمګاه._ دترمذی اوابن ماجه په حواله دمشکواة (ص۴۱۲ س۲۲،۲۳) باندې دحضرت ابوهریرةؓ روایت دې چه حضورﷺ اوفرمائیل چه آیاتاسوته پته ده چه خلقو لره جنت ته زیات داخلونکی کوم څیزونه دی.اووې فرمائیل چه دالله تعالی نه ویره اوښهٔ اخلاق ساتل او دغه شان ئې دجهنم باره کښې اوفرمائیل چه اکثر شرمګاه اوژبه خلق اورته داخلوی.

**فائده﴾** ① دفاحش نه مراد هرخراب کارکونکې دې.اوبذی نه مراد هره خرابه ویناکونکې دې.② دفاحش نه مرادهره خرابه خبره کونکې اود بذی نه همدغه مراد دې.عطف تفسیر دې اولا زائددې ③ دفاحش نه مراد عام دې خرابه وینا وی یاکار،اوبذی خراب قول ته وئیلې

شی.بذی دفعیل وزن دي دبذاء نه مشتق دي.داپه شد اوسکون دواړوسره لوستلې شی.(مرقات جلد ۹ص۱۵۵)

**ترکیب** لیس فعل دافعال ناقصه نه المؤمن ددې اسم ب زائد الطعان معطوف علیه واو عاطفه لا او ب زائد دتاکید دپاره اللعان معطوف اول واوعاطفه لازائده الفاحش معطوف ثانی واو عاطفه لا زائده البذی معطوف ثالث.معطوف علیه سره دمعطوفات ثلثه نه خبرد لیس.لیس سره داسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۸۳﴾-لَيْسَ الْوَاصِلُ بِالْمُكَافِئِ وَلٰكِنِ الْوَاصِلُ الَّذِي إِذَا قُطِعَتْ رَحِمُهُ وَصَلَهَا (بخاری)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۴۱۹، س:۱۶، عن ابن عمر مرفوعًا]

**ترجمه** نه دې ملاویدونکې بدله ورکونکې،اولیکن ملاویدونکې هغه دې چه کله رشته داری ختمه کړې شوې وی نودې ملاؤ شی هغوی سره.

**تشریح** رشته داروته بدله ورکونکی ته واصل (یعنی صله رحمی کونکې) نشی وئیلې کیدې لیکن اصل صله رحمی کونکې هغه دې چه درشته دارو دطرفه قطع تعلق اوناراضګئ سره هم ملاویږی اوصله رحمی کوی ځکه چه بدله ورکول خوهرسړې پیژنی.لیکن صحیح معنی کښې صله رحمی دهغه سړی ده چه سره دقطع رحمئ کولو دصله رحمئ معامله کوی اودبد سلوك بدله کښې ښهٔ سلوك کوی.

**فائده** ددې حدیث نه معلومه شوه چه رحم لوئ څیزدې.دبخاری شریف په حواله دمشکوة ص۴۱۹ س۱۰ باندې حدیث دې.حضورﷺ اوفرمائیل چه کوم سړې داخوښوی چه دهغه په رزق کښې فراخی اوکړې شی اودهغه په مرګ کښې روستووالې اوکړې شی.هغه له پکاردی چه صله رحمی کوی.دبخاری اومسلم په حواله سره دمشکوة (ص۴۱۹ س۱۶) باندې حدیث دې چه حضورﷺ اوفرمائیل چه رحم عرش پورې زوړند دې او وائی چه څوك مالره یوځائې کوی الله تعالی به هغه سره یوځائې شی اوچه څوك مالره قطع کوی الله تعالی به ورسره قطع (تعلق) اوکړی.

**ترکیب** لیس فعل ناقص الواصل ئې اسم ب زائده.اَلْمکَافِی خبر.لیس سره داسم اوخبرنه جمله خبریه معطوف علیه واوعاطفه لکن حرف مشبه بالفعل الواصل اسم دلکن الذی موصول.اذا حرف شرط قُطِعَتْ فعل رحمه مضاف مضاف الیه سره نائب فاعل.فعل سره دنائب فاعل نه جمله فعلیه خبریه شَرط وَصَلَ فعل هو فاعل ها مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء،شرط سره دجزاء نه صله،موصول سره دصلې نه خبرشودلکن.لَکِنَّ سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف شوه.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله فعلیهٔ خبریه معطوفه شوه.

﴿۱۸۴﴾- لَيْسَ الْغِنٰى عَنْ كَثْرَةِ الْعَرَضِ وَلٰكِنَّ الْغِنٰى غِنَى النَّفْسِ

(بخاری ومسلم)[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۴۴۰، س:۱۹، عن ابی هریرة مرفوعًا]

**ترجمه** نه ده مالداری د سامان په زیاتوالی،لیکن مالداری ده دنفس مالدار کیدوسره.

**تشریح** مالداري اواميري دسامان د زياتوالي په وجه نه ده بلكه مالداري اواميري دنفس مالداري ده.يعني سامان خو دنياده څومره چه زيات وي دالله نه به غفلت زيات وي.مالداري دنيا سره نۀ وي.مالداري هغه وخت وي چه كله نفس مستغني وي اوبې پرواه وي دچانه څۀ نۀ غواړي اوزړه ئې فراخ وي په لوږه كښې هم پريشان نۀ وي.اوددنياڅيزونه اومال دضرورت په قدر طلب كوي اودضرورت په قدرمال خرچ كوي اوالله تعالى چه څۀ وركړي دي په هغې شكراوباسي.

**تركيب** لَيْسَ فعل ناقص الغنى ئې اسم عن جار كثرة العرض مضاف اليه مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په ثابت پورې خبرد لَيْسَ.لَيْسَ سره داسم اوخبرنه جمله فعليه خبريه معطوف عليه.واو عاطفه لكن حرف مشبه بالفعل الغنى ئې اسم غنى النفس مضاف مضاف اليه خبرشو دلكن.لكن سره داسم اوخبرنه جمله اسميه خبريه معطوف.معطوف عليه سره معطوف نه جمله فعليه خبريه معطوفه شوه.

﴿۱۸۵﴾- لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِي يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ وَيَنْمِي خَيْرًا وَيَقُولُ خَيْرًا

(بخاري ومسلم)[تخريج:_ مشكواة: ص:۴۱۲، س:۵، عن ام كلثوم رض مرفوعًا]

**ترجمه** نه دې دروغژن هغه سړې څوك چه دخلقوپه مينځ كښې صلح كوي او اووائي ښۀ خبره او نسبت اوكړي د ښۀ خبرې.

**تشريح** هغه دروغ چه دخلقومينځ كښې ياد دوو كسانومينځ كښې دصلح كولوډپاره اووئيلې شي هغه مذموم اوبدنۀ دى.دروغ به وي ليكن دالله اودخلقوپه نزدبه بد نۀ ګڼړلې كيږي اود صلح راوستلوډپاره دروغ ويونكى ته دروغژن نشي وئيلې كيدې.دامطلب نه دې چه ديته به دروغ نۀ وايو.بلكه مطلب دادې چه ناجائز درجه دروغ نۀ دى.ددې وجه نه ئې دمبالغې صيغه ذكركړله.دمبالغې نفې اوشوه داصل فعل نفى نۀ ده شوې ددې دروغوضرورت به څۀ وي. وړاندې حديث كښې ذكرشوى دى چه ښۀ خبره كوي اودښې خبرې نسبت كوي.يعنىعمروته وائې چه زيد په تاسلام وئيلواوستا صفت ئې كولواو زيد ته ورشى هغه ته څۀ خبره ده منسوب كړي يعني داخبره ده چه عَمرو وئيلې زما دزيد سره ډير زيان محبت دې.دينمى خيرا معنى همداده چه دعمرو دطرفه نۀ ئې اورسوله اوخبره ئې پخپله جوړه كړه دزيدډپاره.

**فائده** درې قسمه دروغ صراحة جائزدى.لكه چه داحاديثو نه ثابت دى.① دروغ (صلحې) راوستلوډپاره② دخاوندياښځې راضى كولوډپاره ③ دجنګ په موقعه باندې.باقي ټول دروغ حرام دى.

**فائده**۞ ام کلثوم دکاف ضمې اوفتحې سره دواړه شان وئیل صحیح دی.ام کلثوم k نه مراد دحضورﷺ لوربی بی مراد نۀ ده.بلکه دعقبه بن ابی معیط لورمراد ده.اودعثمان بن عفان ﷛ خورده دمور دطرفه داپه مکه کښې مسلمانه شوه پیاده ئې هجرت اوکړو.مدینې منورې ته اورسیدله.په مکه کښې ددې خاوندنۀ وو.بیادې سره په مدینه کښې زیدبن حارثه نکاح اوکړه اوپه غزوۀ موته کښې شهید شو.بیازبیربن العوام دې سره نکاح اوکړله بیائې طلاق ورکړو.بیائې عبدالرحمن بن عوف ﷛ سره وادۀ اوکړو.بیاهغه وفات شو.بیا عمروبن العاص ﷛ ددې سره وادۀ اوکړو.ده سره یومیاشت ژوندئ پاتې شوه اوبیاوفات شوه.

(هذاکله من المرقات ج۹ ص۱۴۰)

**ترکیب**۞ لیس فعل ناقص الکذاب دده اسم.الذی موصول یصلح فعل هو فاعل بین الناس مضاف مضاف الیه مفعول فیه.فعل سره دفاعل اومفعول فیه نۀ جمله فعلیه خبریه معطوف علیه.واو عاطفه یقول فعل هو فاعل خیرا مقوله (مفعول به) فعل سره دفاعل مقوله (مفعول به نه) جمله فعلیه خبریه معطوف اول، واوعاطفه ینمی فعل هو فاعل خیرا مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف ثانی شو.معطوف علیه سره د دواړو معطوفینونه جمله معطوفه صله شوه موصول سره دصله نه خبردلَیۡسَ.لَیۡسَ سره داسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۸۲﴾- لَیۡسَ شَیۡءٌ أَکۡرَمَ عَلَی اللّٰهِ تَعَالٰی مِنَ الدُّعَاءِ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکوٰة: ص:۱۹۴، س:۲۷، عن ابی‌هریرة﷛ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ نه دې هیڅ څیز زیات عزت والا په الله تعالی باندې د دُعا نه.

**تشریح**۞ دالله تعالی په نزد زیات عزت والا څیز دعاء ده اوپه یوحدیث شریف کښې راځی.الله تعالی خوښۀ وی چه دهغه نه سوال اوکړې شی.(رواه الترمذی) نورهم ډیر احادیث خاص د دعاپه باره کښې راغلی دی.یوحدیث تیرشوې دې(الدعاء مخ العبادة) اودوه مواوس بیان کړل. ④ حضورﷺ اوفرمائیل چه څوك دالله تعالی نه سوال نه کوی دهغه نه الله تعالی خفه کیږی (رواه الترمذی) ⑤ کوم سړې چه دا.غواړی چه دتکلیف په وخت کښې الله تعالی دعاقبوله کړی نوهغه له پکاردی چه دخوشحالۍ په وخت کښې دعاکوی(رواه الترمذی)⑥ حضورﷺ اوفرمائیل چه(دهغې مفهوم لیکلې شی) درې شرطونوسره دعاقبلیږی.① مالَم یدعُ بإثم یعنی څوك دګناه دعا کوی.مثلاً داچه دفلانی مسلمان په قتل باندې ما قادر جوکړې.چه ترڅو پورې دګناه ددعا اراده پرې نږدی.دعاء به ئې نه قبلیږی.② اود قطع رحمۍ یعنی څوك دا دعاغواړی چه اې الله ﷻ زما او زما دفلانکی(مثلا پلار) مینځ کښې لرې والې پیداکړې.ترڅوچه داد قطع

رحمئ دعا پرې نگدی هیڅ دعابه ئې نهٔ قبلیږی۳ (مَالَمْ یَسْتَعْجِلْ) یعنی دا وئیل چه ما ډیرې دعاگانې اوکړې لیکن ما اونهٔ لیدل چه زما دعاقبوله شوه.ځکه چه د دعامقصد صرف اوصرف عاجزی ده.انسان ئې په زور او زبردستئ سره (په خدائې) نشی قبلولې.ځکه چه دعا انتهائی عاجزی وی که چرې دا برقراروی نوډیر فضیلت به پکښې وی او زربه قبول شی.په هره دعاکښې کم ازکم داقبولیت ضروروی.چه دبنده تعلق الله تعالی سره دمخکښې نه زیاتیږی.

**ترکیب**۞ لَیْسَ فعل ناقص،شیئ ئې اسم،اکرم اسم تفضیل،علی الله جار مجرور متعلق اول شود اکرم.من الدعاء جار مجرورمتعلق ثانی شو داَکْـرَمَ.اَکْـرَمَ اسم تفضیل دخپل دواړو متعلقینو سره خبر.لَیْسَ سره دخپل اسم او خبرنه جمله فعلیه خبریه.

﴿۱۸۷﴾- لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُودَ وَشَقَّ الْجُيُوبَ وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ

(بخاری ومسلم)[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۵۰، س:۱۵، عن عبدالله بن مسعودؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ نه دې زمونږنه هغه کس چه هغه وهی مخونه او شلوی گریوانونه اوچغې وهی دجاهلیت چغې.

**تشریح**۞ هغه خلق چه دچاپه مرگ باندې غم ښکاره کوی که سرې وی یاښځې(زیات ترښځې ددې حدیث پاك مصداق جوړیږی) دداسې جاهلانودغم اظهار دغه شان وی چه دیوتعلق دارپه مرگ باندې لاسونه په خپواوپه مخونواوسینوباندې وهی اوهائې تهٔ خوداسې وې اوداسې وې اوپه مختلفو الفاظو سره دجاهلیت دزمانې په شان آوازکوی دا هوښیارتوب نهٔ دې بلکه داډیر کم عقل توب دې.د سوچ خبره خوداده.چه وهلو ټکولو سره مړی ته په ځائې د فائدې عذاب ورکولې شی.دغه شان دغورقابل خبره داده چه زمونږدین دغم لرې کولودپاره طریقه خودلې ده چه (انا لله وانا الیه راجعون) او وائی اوغم سپك کړی.دائې نه دی وئیلی چه دغم اظهاراوکړئ دا دجاهلیت دزمانې رسمونه دی.ددې حدیث نه روستوپه مشکواة کښې حدیث دې.چه نبی کریمﷺ اوفرمائیل.چه څلور څیزونه زما په امت کښې دجاهلیت دی.زما امت به هغه پرې نږدی.یعنی حضورﷺ دخطرې اظهار اوفرمائیلو چه داڅلورڅیزونه بهٔ زما په امت کښې هم پاتې وی.۱ په کرم اوشرف باندې فخرکول.په نسب کښې چاته طعنه ورکول (سپك کتل) ۲ داخیال کول چه دستوروپه وجې سره باران کیږی.۳ په مړی باندې اوچت آوازسره ژړل.دغه شان په یوبل حدیث پاك کښې راغلی دی چه نبی کریمﷺ اوفرمائیل: چه زهٔ بې زاره یم دهغه سړی نه چاچه (حلق) دمصیبت په وجه دسر څهٔ ویښته ویستل.(لکه څنگه چه دبعضې عجمیانو رواج وو.اوچا چه (صلق) په اوچت اوازسره په مړی اوژړل،اوچا چه (خرق) دمصیبت راتللوپه وجه کپړې څیرې کړې.

**خلاصه دکلام:** خلاصه داده چه دحدنه زیات ژړاکونکی اوپه چغوچغوسره اوازو ستلوسره ژړاکونکی په دې قسم وعیدونوکښې شامل دی چه داخلق زمونږنه نه دی یعنی زمونږپه طریقه اودین باندې یعنی کامل مسلمانان نه دی(مرقات ج۳\۸۸) په مړی باندې ژړاکول بده خبره نه ده لیکن په چغوسره ژړل بده (دګناه) خبره ده.

**ترکیب:** لَیْسَ فعل ناقص من جار. نار مجرور جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتا پورې خبر مقدم من موصوله ضرب فعل هو فاعل الخدود مفعول به. فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه شوه. واو عاطفه شق فعل هو فاعل الْجُیُوْبَ منعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف اول واو عاطفه دعا فعل هوفاعل ب جار. دعوی الجاهلیة مضاف سره دمضاف الیه نه متعلق په فعل پورې. فعل سره دفاعل او مفعول به نه اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه معطوف ثانی. معطوف علیه سره دمعطوفینونه جمله معطوفه صله دموصول. موصول سره دصلې نه اسم دلَیْسَ. لَیْسَ سره داسم نه موخرمقدم نه جمله فعلیه خبریه شوه.

﴿۱۸۸﴾- لَیْسَ الْخَبَرُ کَالْمُعَایَنَةِ (احمد)

[تخریج:_ مشکواة: ص: ۵۱۱، س: ۷، عن ابن عباس رض مرفوعًا]

**ترجمه:** نه دې خبر دمشاهدې په شان. یا نه ده اوریدلې شوې خبره د لیدلی شوی په شان. (دواړه ترجمې صحیح دی)

**تشریح:** حضور ﷺ اوفرمائیل چه اوریدلی شوې خبره دلیدلې شوې خبرې پشان هیڅکله نشی کیدې. ځکه چه دانسان طبیعت دې چه کله هغه څه څیز وینی نودهغه دوجود یقین کوی. مخکښې پوره حدیث دغه شان دې بیشکه الله تعالی چه کله موسی علیه السلام ته په کوه طورباندې دسخی دعبادت خبر ورکړو. نودموسی علیه السلام دلاس نه تختې دتورات پرې نه وتلې. کله چه هغه اولیدل چه قوم دغه شان کارکړې دې نودغصې په حالت کښې ئې تختې هم دلاس نه پریوتلې معلومه شوه چه د اوریدلوقیاس په لیدلوباندې صحیح نه دې ځکه چه لیدلو سره دڅیز دوجود یقین کیږی اوپه طبعیت باندې ډیر اثرکیږی.

**ترکیب:** لیس فعل ناقص الخبراسم دلیس ك جاره المعاینة مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتا پورې خبردلیس لیس سره داسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه شوه.

## اَلشَّرْطُ وَالْجَزَاءُ

﴿۱۸۹﴾ مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللّٰهُ وَمَنْ تَکَبَّرَ وَضَعَهُ اللّٰهُ (رواه البیهقی)

[تخریج:_ مشکواۃ: ص: ٤٣٤، س: ١٦، عن عمر رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه تواضع (عاجزي) اوکړه داالله تعالی دپاره، نواوچت به کړي هغهٔ لره الله تعالی، او چاچه تکبر اوکړو نو رسوا به کړي هغهٔ لره الله تعالی.

**تشریح او شان ورود** حضرت عمر په منبرباندې وعظ فرمائیلوچه اې خلقو! تواضع اختیار کړئ.عاجزي اختیارکړئ ځکه چه ماپخپله اوریدلي دي چه نبي کریم ﷺ داسې فرمائیل چه څوك عاجزي کوي الله تعالی دپاره نوالله تعالی خپل ځان سره دهغه کس درجه ډيره اوچتوي.هغه (متواضع) سړې په خپل نظر کښې وړوکې وي اودخلقوپه نظرکښې لوئ ګرځي. (یعنی په خلقوکښې هم الله تعالی دهغه درجه لویه ګرځوي.په جنت کښې خو به ضرور لویه وي، مخکښې ئې اوفرمائیل چه کوم سړې تکبرکوي په لاس یاخپوسره تکبرکوي یاپه ژبې سره دفخرپه شکل تکبرکوي الله تعالی دهغهٔ نه مخکښې درجه هم اخلي اوپه اخرت کښې هغه ذلیل ګرځوي.نوبیاهغه متکبردخلقوپه نظرکښې وړوکې وي اوخپل ځان هغه لوئ ګڼړي. تردې چه هغه دسپي اوخنزیرنه هم زیات ذلیل اوسپك ګرځي.(الامان والحفیظ)

داپوره حدیث او ددې مختصرتشریح وه.ددینه علاوه دتکبرپه بدوالي کښې الله تعالی فرمائي دمسلم حدیث قدسي دې.ابوسعید اوابوهریرة روایت کوي (خداکی باتیں ص ۱۶۱) نه اخستې شوې دې.دادواړه صحابه دحضور ﷺ نه روایت کوي چه الله تعالی فرمائي چه عزت زما لاندینې څادردې اوکبریائې بره نې څادردې.کوم سړې چه په دې څادرکښې ماسره ځان شریکوي زه به هغهٔ ته عذاب ورکوم اوداحدیث خومشهوردې چه دکوم سړي په زړه کښې داوري د دانې په مقدارهم تکبروي هغه به جنت ته داخل نشي ترڅوپورې جهنم کښې ساتلوسره دهغه دماغ ټیك نشي.الله تعالی ته عاجزي خوښهٔ ده څوك چه عاجزي کوي الله تعالی پخپله دهغه عزت په دنیااو آخرت کښې کوي.کوم سړې چه خپل ځان لوئې ګڼړي خدائې پاك ئې ښکته کوي.څوك چه د زړه په اخلاص سره ځان ښکته (عاجز) ګڼړي الله تعالی هغه د درجې په اعتبارسره بره اوچتوي.په یوحدیث کښې نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه درې څیزونه نجات ورکوونکي دي.① یواځې والي کښې اودټولوخلقودوړاندې دخدائې پاك نه ویریدل ② په خوشحالئ اوغم کښې حق خبره کول ③ مالدارئ اوغریبئ کښې میانه روي ساتل.او درې څیزونه هلاکوونکي دي.① هغه خواهش چه دهغې فورا اتباع اوکړې شي.② هغه بخل چه دهغه تابعداري اوکړې شي.③ دانسان خپل ځان ته ښه وئیل (چه هغې ته عجب وئیلې شي اوداتکبردویم ښاخ دې) اودا دباقي نورونه زیات سخت دې(انتهی)

**ترکیب** مَن شرطیه تواضع فعل هو فاعل لله جارمجرورسره متعلق شو فعل پورې فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.رَفَعَ فعل ه مفعول به لفظ الله فاعل.فعل سره

دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه معطوف علیه واو عاطفه من شرطیه تکبر فعل هو فاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.وضع فعل ه مفعول به لفظ الله فاعل.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء شرط سره دجزاء نه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله شرطیه جزائیه معطوفه شوه.

﴿۱۹۰﴾- مَنْ لَّمْ يَشْكُرِ النَّاسَ لَمْ يَشْكُرِ اللّٰهَ (اخرجه احمد وترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۲۶۱، س:۱۷، عن ابی هریرة رضی الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه دخلقو شکریه ادا نکړه.هغهٔ دالله تعالی شکریه ادانکړه.

**تشریح** خلق چونکه دالله تعالی دنعمتونو رسولو ذریعه جوړیږی.ددې وجې نه الله تعالی حکم کړې دې چه دخلقو شکریه اداکوئ نوچه څوك دالله تعالی حکم اونه منی دخلقوشکریه ئې ادانکړه نوده دالله تعالی شکریه ادانکړه.دخلقو دشکرئې داداکولومختلف صورتونه دی. دچا په څهٔ کارکولوهغه ته څهٔ لږشان هدیه ورکول هم شکریه ده.اوهغهٔ ته راحتونه ورکول هم شکریه ده اوکه هیڅ نه وی نوپه رونړ تَندی سره ملاویدل اوجزاك الله خیرا وئیل یاخوقدمه تلل وغیره داهم شکریه ده.دهر یوسره خانله خانله معامله وی اودشکرئې طریقه هم جداوی. دشکریه لفظ وئیلوپه ځائ جزاك الله خیرا وئیل پکاردی.داحدیث وړاندې راروان دې.

**ترکیب** من شرطیه لم یشکر فعل هو فاعل الناس مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو لم یشکرالله فعل هوفاعل لفظ الله مفعول به فعل سره دفاعل او مفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۱۹۱﴾- مَنْ لَّمْ يَسْئَلِ اللّٰهَ يَغْضَبْ عَلَيْهِ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۹۵، س:۸، عن ابی هریرة رضی الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه** څوك چه نه غواړی دالله تعالی نه،ناراضه کیږی الله تعالی په هغهٔ باندې.

**تشریح** څوك چه الله تعالی نه دتکبریه وجه څه سوال نهٔ کوی الله تعالی په دې ډیرناراضه کیږی.ځکه چه دسوال (غوښتلو) حکم الله تعالی په قرآن کریم کښې کړې دې.(اُدْعُوْنِيْ اَسْتَجِبْ لَكُمْ) چه زما نه غواړئ زه به قبلوم.هرکله چه شپه اوورځ داحکم اوریدلې اولوستلې شی بیایهٔ دې باندې عمل نهٔ وی نوښکاره ده چه الله تعالی ناراضه کیږی.(اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دَاخِرِيْنَ) چه کوم خلق زما دعبادت نه تکبرکوی یعنی تکبرًا عبادت نه کوی زر ده چه هغوی به ذلیل جهنم ته داخل شی.په دې آیت کښې دیوتفسیر مطابق دعبادت نه مراد دعاده چه د دعانه تکبرکونکی به جهنم ته داخل شی زیات فضیلت په حدیث (۱۸۴) کښې تیرشوې.

**ترکیب۞** من شرطیه لم یسئل فعل هو فاعل لفظ الله مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.یَغضبْ فعل هو فاعل علیه جار مجرورمتعلق شو فعل پورې. فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.جزاء سره دشرط نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

**﴿۱۹۲﴾- مَنِ انْتَهَبَ نُهْبَةً فَلَيْسَ مِنَّا** (ترمذی)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۲۵۵، س:۱۹، عن عمران بن حصین رض مرفوعًا]

**ترجمه۞** کوم کس چه ډاکه اوغورزوله ډاکې غورزولوسره نوهغه زمونږنه نه دې.

**تشریح۞** کوم سړی چه ډاکه واچوله یائې چاپاندې زبردستی اوکړه هغه ئې لوټ کړویائې غلا اوکړه داټول صورتونه په دې کښې داخل دی.پس هغه کس زمونږنه نهٔ دې یعنی زمونږپه کامله طریقه باندې نه دې.یعنی که ایمان ئې شته نوډیر زیات ناقص دې یعنی زمونږکامل طریقه باندې نهٔ دې یعنی که چرې ایمان ئې وی نوډیرزیات ناقص دې داپه ښکاره ډاکه اوغلاده.باطنئ ډاکه اوغلاهغه ده ه په مانځه کښې یعنی هغه مونځ چه په هغې کښې د سنتو خیال اونه ساتلې شی.هغه مونځ کامل نه دې.ځکه چه مونځ کونکی دمونځ سنتونه غلاکړی دی.داغلا او ډاکه په افعالوکښې ده چه داټول صورتونه ناجائزدی.کومه غلاچه په اقوالو کښې کیږی دهغې باره کښې داخبره ده چه درازخبره بهرخودل یاددې ځائې خبره هلته اوهغه ځائې خبره دلته راوړل چغلی کول، غیبت کول داټول صورتونه هم داقوالو غلاده او ناجائز ده.لیکن دچااشعاریادچاکلام نقل کول اودانه خودل چه دادهغه کلام دې اونهٔ خپل ځان ته منسوب کول داد ناجائزې درجې غلانهٔ ده.

**ترکیب۞** من شرطیه انتهب فعل هو فاعل نهبةً مفعول مطلق.فعل سره دفاعل اومفعول مطلق نه جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه لیس فعل ناقص هو ضمیرد ده اسم.من جار نا مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شو ثابتًا محذوف پورې.ثابتًا اسم فاعل دخپل فاعل (هوضمیر) اومتعلق سره شبه جمله خبرشو.لیس سره داسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

**﴿۱۹۳﴾- مَنْ دَلَّ عَلٰی خَيْرٍ فَلَهٗ مِثْلُ اَجْرِ فَاعِلِهٖ** (مسلم)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۳۳، س:۱۵، عن ابی مسعود الانصاری رض مرفوعًا]

**ترجمه۞** چاچه لاره اوخودله دنیکئ نوهغهٔ دپاره به دهغې دکونکی دَ ثواب په شان ثواب وی.

**تشریح او شان ورود۞** راوی ابومسعود الانصاری رض وائی چه یوسړې حضور ﷺ ته راغې هغهٔ اووئیل چه زما سورلی ستړې شوې ده.تاسوماسورکړئ په بله سورلئ باندې.نوحضور ﷺ

اوفرمائیل چه ماسره سورلی نشته چه تاورباندې سورکړم.دې کښې یوسړی اووئیل چه اې دالله رسوله زه ده ته بنایم هغه څوك چه ده ته به بله سورلی ورکړی سوریدلودپاره.نوحضورﷺ اوفرمائیل چه چاصرف رهنمائی اوکړه.هغهٔ ته به پوره ثواب ملاویږی.دهغه سړی برابر چاچه پخپله کارکړې دې ځکه چه دهرخیرطرف ته لارخودنه هم نیکی وی.ددې وجې نه څوك چه داسې کوی هغه ته به دکونکی برابر ثواب ورکولې شی.

**ترکیب۞** من شرطیه دل فعل هو فاعل علی جار خیر مجرور.جارسره مجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شو،ف جزائیه ل جاره مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابت پورې خبرمقدم مثل مضاف،اجر مضاف الیه مضاف فاعله مضاف سره دمضاف الیه نه مضاف الیه شو داجر دپاره بیامضاف سره دمضاف الیه نه مضاف الیه شو دمثل دپاره اوس مضاف سره دمضاف الیه نه مبتداء مؤخر،خبرمقدم سره دمبتداء مؤخرنه جمله اسمیه خبریه جزاء دشرط.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه.خبریه شرطیه شوه.

**﴿ ۱۹۲ ﴾ مَنْ حَمَلَ عَلَيْنَا السِّلَاحَ فَلَيْسَ مِنَّا** (بخاری)

[تخریج:ـ مشکواة: ص:۳۰۵، س:۲۱، عن ابن عمرؓ وابیؓ مرفوعًا]

**ترجمه۞** څوك چه اوچته کړی په مونږباندې وسله نونه دې هغه زمونږنه.

**تشریح۞** څوك چه په مونږباندې یعنی زمونږخلاف وسله راواخلی هغه زمونږنه نهٔ دې یعنی کامل مسلمان نهٔ دې صرف دنوم ایمان ئې دې.دوسلې اوچتولونه په احادیثوکښې سخت وعید راغلې دې.تردې چه په ټوقو ټوقوکښې هم داسې څیزپه چاباندې اوچتول چه په هغې سره سړې وژلې شی ګناه کبیره ده.ځکه چه دې حدیث پسې متصل په مشکوة کښې داحدیث هم دې چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل :چاچه صرف اشاره هم اوکړه خپل مسلمان رورته په څهٔ اوسپنې سره نوبیشکه پهٔ دغه (اوچتونکی) باندې فرشتې ترهغه وخت لعنت لیږی چه ترکومې هغهٔ هغه څیزلره نه وی کیخودې.اګرچه حقیقی رورئې وی.دحقیقی رورذکرئې ددې وجې نه اوکړوچه سړې په حقیقی روربانـدې د وژلوپه نیت هیڅ څیز نهٔ اوچتوی.دحقیقی روربه وړاندې څهٔ قسم څیز اوچتول دهغه د ویرواودپاره اګرچه په ټوقوکښې وی ناجائزدی.پهٔ دې کښې دځهٔ شی اوچتولونه منع اوکړې شوه.او دغه شان څوك مسلمان ویرول په خبروسره یاشکل جوړولوسره داحرام دی.ددې حرمت هم صراحة په حدیث نمبر ۱۳۲ کښې تیرشوې دې.

**ترکیب۞** من شرطیه حمل فعل هو فاعل علی جار نامجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شو په فعل پورې السلاح مفعول به.فعل سره دفاعل اومتعلق اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه لیس فعل ناقص هو ضمیرهغه ئې اسم منا جار مجرورمتعلق شو په ثابتا

محذوف پورې.ثابتا صیغه داسم فاعل سره دخپل فاعل (هُوَضمیر) اومتعلق نه شبه جمله خبرد لَیسَ.لَیسَ سره داسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۱۹٤﴾- مَنْ صَمَتَ نَجَا (احمد وترمذی)

[تخریج_مشکوٰة: ص:۴۱۳، س:٤، عن عبدالله بن عمرو رض مرفوعًا]

**ترجمه** څوك چه خاموش شو هغهٔ نجات بیاموندهٔ.

**تشریح** څوك چه خاموش پاتې شو دناکاره خبرې کولونه یالیکلونه یاپه چاباندې دلیکلونه نوهغه هرقسم خیر واخستلو.کامیاب شو.دویمه معنی داهم ده چه څوك خاموش پاتې شو دګناه دخبرې نه نوګویاچه هغه ددنیااوآخرت دټولوآفتونونه نجات بیاموندلو.ددوه معنی ګانو دارومدار د نَجَاپه لفظ باندې دې په اول معنی کښې د نَجَا معنی فَازَ ده یعنی کامیاب شو، اوپه دویمه کښې نجاپه معنی دنجات سره دې.

**په امتحان ګاه کښې خبرې کول څنګه دی** په امتحان ګاه (امتحان هال) کښې خبرې کول یعنی دچانه تپوس کول یاخودل حرام دی څکه چه په دې دنوروحق تلفی (حق وهل) وی.اودغیر محنتی طالب علم په محنت نهٔ کولوکښې دهغه امدادکول دی.ددې وجې نه په امتحان ګاه کښې په خاموشئ سره پرچه کول پکاردی.

**لفظ صمت او سکت کښې فرق** سَکَتَ ئې اونه فرمائیلوصَمَتَ ئې اوفرمائیلوځکه چه په دې کښې فرق دې اوهغه داچه سکوت صرف هغه ځائ کښې وی چه هلته دخبروکولوطاقت وی.او صمت په دواړوځایونوکښې وی، کوم ځائې چه نطق وی یا نه وی یعنی ګونګ وی یاخبرې کولې شی لیکن چپ پاتې شی.دلته ئې صمت ځکه اوونیلې چه پهٔ دې کښې دچپ اوسیدلو معنی زیاته موندې شی.اودصمت لفظ دسکت نه زیات بلیغ دې نواشاره شوه چه دهرې ګناه اوفضول خبرې نهٔ خاموش کیدل نجات دپاره ډیر ضروری دی.

**ترکیب** مَنْ شرطیه صَمَتَ فعل هو فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط شو. نَجَا فعل هو فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۱۹۵﴾- مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَقَدْ غَزَا وَمَنْ خَلَفَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فِي أَهْلِهِ فَقَدْ غَزَا (بخاری ومسلم)

[تخریج_ مشکوٰة: ص:۳۲۹، س:۲۵، عن زیدبن خالد رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه تیاری اوکړه جهادکولو والا ته دالله په لاره کښې،نوهغهٔ (پخپله) جهاد اوکړو، اوڅوك چه نیك روستو پاتې کیدونکې جوړشو.دهغهٔ په کوروالوکښې نو(بیاهم) هغهٔ (پخپله) جهاد اوکړو.

**تشریح**۞ یعنی چاچه یومجاهدته دجهادفضیلت بیان کړیائې وسله وغیره ورکړه اوتیارئې کړو،نولکه چه ده پخپله جهاداوکړو اوچاچه داهل اوعیال داصلاح دپاره خپل کوروالو کښې څوك روستو پرېښوداو.نو روستوپاتې کېدونکې هم جهاد اوکړو.دغه شان تیاروونکی هم دجهاد ثواب حاصل کړو اوتیاریدونکی هم دجهادفضیلت حاصل کړو.زیات فضیلت دجهاد وړاندې په حدیث نمبر(۱۷۴) وغیره کښې تیرشوې دې.

**ترکیب**۞ مَنْ شرطیه جَهَّزَ فعل هو فاعل غازیا مفعول به،فی جار،سبیل الله مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه قد غزافعل هو فاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه جزاء شو.شرط سره دجزاء نه معطوف علیه واو عاطفه خلف فعل هو فاعل غازیا مفعول به فی جار اهله مضاف مضاف الیه سره مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء نه معطوف. معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله فعلیه خبریه شرطیه معطوفه شوه.

﴿۱۹۶﴾ - مَنْ یُحْرَمُ الرِّفْقَ یُحْرَمُ الْخَیْرَ(مسلم)

[تخریج:_مشکوٰة: ص:۴۳۱، س:۴، عن جریرؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ څوك چه محروم شو دنرمۍ نه هغه محروم شو د خیرنه.

**تشریح**۞ څوك چه نرمی نه کوی هغه دخیر نه محروم دې یعنی ښه اخلاق پکاردی همیشه نرمه خبریه پکارده.کور والو سره هم اوبهردوستانوسره هم،اګرچه د لوئې عهدې خاوند وی. دکشرانو او ماتحتو خلقوسره خاص طور سره دنرمۍ معامله کول پکاردی.دمشکوة په هم دې صفحه باندې دحضرت عائشې رضی الله عنها حدیث دې هغه فرمائی چه حضور ﷺ اوفرمائیل: چاته چه دنرمۍ نه څۀ حصه ورکړې شوه هغه ته ددنیا اودآخرت دښېګړې حصه ورکړې شوه. اوڅوك چه دنرمۍ نه محروم کړې شو هغه ددنیا اوآخرت دښېګړې دحصې نه محروم اوګرځولې شو.هم په دغه صفحه باندې یویل حدیث نبی کریم ﷺ دا اوفرمائیلوچه په تاسوکښې دټولونه زیات محبوب ماته هغه څوك دې چه په اخلاقوکښې دټولونه ښۀ وی.او دمشکوة په (ص۴۳۲ س۲۶) باندې داحدیث دې.حضور ﷺ اوفرمائیل: چه آیاځه تاسوته دا اوښایم چه تاسوټولوکښې غوره څوك دې.صحابو اووئیل ضرور! نوبیاهغوی اوفرمائیل چه په تاسوکښې غوره اوبهتردټولونه هغه څوك دې دچاچه عمر زیات وی اواخلاق ئې دټولونه ښه وی روښې حدیث دشرح السنة دې اودویم دبخاری اودریم داحمد رحمه الله په حواله دمشکوة نه اخستلې شوې دې.

**ترکیب** مَنْ شرطیه، یحرم فعل هو نائب فعل الرفق مفعول به.فعل سره دنائب فاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.یحرم فعل هو نائب فاعل الخیر مفعول به.فعل سره دنائب فاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء،شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۱۹۷﴾- مَنْ سَكَنَ الْبَادِيَةَ جَفَاوَمَنِ اتَّبَعَ الصَّيْدَ غَفَلَ وَمَنْ اَتَى السُّلْطَانَ اِفْتَتَنَ (احمد وترمذی) [تخریج:_ مشکواة: ص:۳۲۲، س:۵، عن ابن عباس رض مرفوعًا]

**ترجمه** څوك چه په کلی کښې اوسیدهٔ یاپه ځنګل کښې هغه سخت عقل والاشو،اوڅوك چه ښکارپسې اولګیدهٔ هغه غافل شواوڅوك چه بادشاه ته لاړهٔ هغه په ازمائش کښې واچولې شو.

**تشریح** ددې وجه داده چه په بانډوکښې اوسیدونکې عام طور دجُمعې اوجَمعونه اود عالمانو،اوصالحانو دمجلسونونه لرې اوسیږی اومسائل ورته معلوم نه وی نوداسې سړی بیشکه په خپل ځان دجهالت ظلم اوکړو.کوم سړې چه هغهٔ ته مسائل معلوم وی یاپه کلی (بانډه) کښې اوسیدوسره عالمانو او بزرګانوسره تعلق ساتی.نوهغهٔ دپاره کلی کښې اوسیدل جائزدی.اوکوم سړی چه ښکارعادت اولوبه جوړه کړه نو داسړې دعبادت او دجمعې اود جمعې د پابندئ نه غافل وی اود مشابهت په وجه دځاروو اوځناوروسره درحمت اود زړه دنرمئ نه لرې پاتې شو.نوداسې ښکار ناجائز اوحرام دې.اوپه کوم ښکارکښې چه همیش والې اوغفلت نهٔ بیاموندلې کیږی نوهغه جائزدې.بلکه دبعضې صحابؤ طریقه وه چه هغوی به دذخیره کولودپاره ښکارکولو.دریم (وَمَنْ اَتَی السُّلْطٰنَ اُفْتُتِنَ) مطلب دادې چه کوم سړې ظالم بادشاه او ددین نه غافل بادشاه سره دوستی شروع کړی نوداسړې هم په فتنه کښې ننوتهٔ.ګویاچه دنافرمانئ ابتداء اوشوه.لیکن چه کوم سړې بادشاه ته نصیحت کولی شی اود نیکئ حکم اوډګناه نه دمنع کولوحکم کولې شی نود داسې سړی دبادشاه په مخکښې حق خبره کول دټولونه لوئې جهاددې.(هذاکله من المرقات ج ۷ص۲۲۰)

**ترکیب** من شرطیه سکن فعل هو فاعل البادیة مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.جفا فعل،هُو فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه جزاء، شرط سره دجزاء نه معطوف علیه،واؤ عاطفه،من شرطیه،اتبع فعل،هُو فاعل.الصید مفعول به،فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط.غفل فعل هوفاعل فعل سره د فاعل نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه معطوف اول.واو عاطفه من شرطیه اتی فعل هو فاعل السلطان مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شوه.اُفتُتِنَ فعل هو نائب.فعل سره دنائب فاعل نه جمله فعلیه خبریه.شرط سره دجزاء نه معطوف ثانی.معطوف علیه سره د دواړومعطوفینونه جمله فعلیه خبریه شرطیه معطوفه.

﴿۱۹۸﴾- مَنْ صَلّٰى يُرَائِىْ فَقَدْ اَشْرَكَ وَمَنْ صَامَ يُرَائِىْ فَقَدْ اَشْرَكَ وَمَنْ تَصَدَّقَ يُرَائِىْ فَقَدْ اَشْرَكَ (رواه احمد)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۵۵، س:۲۳، عن شداد بن اوس رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه مونځ اوکړو د ښودنې دپاره نوهغهٔ شرك اوکړو.او چاچه روژه اوساتله د ښودنې دپاره نوهغهٔ شرك اوکړو.او چاچه صدقه ورکړه د ښودنې دپاره نوهغهٔ شرك اوکړو

**تشریح**۞ څوك چه مونځ كوي دریا دپاره روژه ساتي دریاكارئ دپاره یاصدقه كوي فرض صدقه په معنی دزكوة سره یانفلي صدقه اوخیرات كوي دریاكارئ دپاره نودمانځه اوروژې اوصدقې وغیره نه خوذمه فارغ شوه لیكن یوه آنه ثواب هم نهٔ ملاویږي ځكه چه ده ریاكاري كړې ده.دریامعنی داده چه ددین څه كاردغیر الله خوشحالولودپاره هم اوكړې شي.نوپه دې كښې شرك اصغر( وړوكې شرك دې) ددې وجې نه دذرې برابر هم ثواب نه ملاویږي.ددې خلاف جائزكارونه دي.مثلا قضاء حاجت (وړوكې اوغټې اودس ماتې) خوراك،څڅاك، خوب وغیره.په دې كښې كه چرې یوسړې ښهٔ نیت اوكړي نوداجائزكارهم په ثواب كښې لیكلې شي.نیت داپكاردې چه زهٔ هرجائزكاردالله تعالی دعبادت دتیارئ دپاره كوم او ددین كار دالله تعالی درضادپاره كوم نوڅلیریشت ګینتې به په ثواب كښې لیكلې شي.په هركاركښې نیت هرحال كښې ضروري دې.په هرجائزكاركښې دې سړې ښهٔ نیت ساتي.

**ترکیب**۞ مَنْ شرطیه صلی فعل هوذوالحال یرائې فعل هو فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه حال.حال سره دذوالحال نه فاعل (دصلې) فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه.قَدْاَشْرَكَ فعل هو فاعل فعل سره دفاعل جمله فعلیه خبریه جزاء شوه. شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.دغه شان دباقي دوٶجملوتركیبونه هم دي.

﴿۱۹۹﴾- **فَمَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِي فَلَيْسَ مِنِّي**

**[تخریج:۔ مشكواة: ص:۲۷، س۱۹–۲۴ عن انس رضی مرفوعًا]**

**ترجمه**۞ چاچه مخ واړولو زما دطریقې نه نوهغه زمانه نهٔ دې.

**تشریح او شان ورود**۞ راوي حضرت انس رضی فرمائي چه درې سړي دحضورﷺ ازواج مطهرات (پاكو بیبیانو) ته راغلل.دحضورﷺ دعبادت باره كښې ئې تپوس اوكړو(علي رضی،عثمان بن مظعون رضی، عبدالله بن رواحه رضی) چه كله هغوی ته دحضورﷺ دعبادت باره كښې اوښودلې شو.نوهغوی داكم اوګڼړلواوسوچ ئې اوكړوداسې ذات چه دهغه مخكنی اوروستني ګناهونه معاف شوي دي دهغوی خودومره عبادت ډیردې مونږداسې چرته یو.په دوی كښې یو اوونیل.بس اوس خوبه زه ټوله شپه مونځ كوم.دویم اوونیل زه خوبه همیشه دورځې روژه ساتم.دریم اوونیل چه زه به دښځونه جدا اوسم اوهیڅ كله به نكاح نه كوم.په دې كښې حضورﷺ راغې وې فرمائیل چه تاسوخلقوداسې داسې خبرې كړې دي په خدائې قسم چه زه ستاسونه زیات دخدائې پاك نه ویریږم لیكن زهٔ كله روژه نیسم اوكله نهٔ نیسم.اوزهٔ مونځ هم

کوم او اوده کیږم هم اوزۀ دښځوسره نکاح هم کوم نوچه کوم سړی زما دطریقي نه اعراض اوکړوهغه زما نه نۀ دي.یعني چه کوم سړی همیشه روژه اونیوله هیڅکله ئي روژه ماته نه کړه.اوټوله شپه ئي مونځ کولوځۀ لږ شان هم اوده نشو اوقصدا عمدا ئي هیڅ وخت نکاح اونه کړه نود داسي سړی زهد اوتقوی دهغۀ سره پاتي شوه اوهغه زما دطریقي نه اعراض اوکړو.نوهغه زما داتباع نه خارج شو اوهغه زما نه نۀ دي.

**نکات** **نکته** ① ددي حدیث نه اود لاصرورة في الاسلام نه هم دامعلومه شوه چه واده نۀ کول څه بزرگی اوکمال نۀ دي.واده نه کول په اسلام کښي نشته بغیرعذرنه رهبانیت دي کوم چه داسلام ضد(منافی) دي اوپه دین کښي سختی(مشقت) پیداکول دی.

**نکته**② په اکثروځایونوکښي بلکه هرځائي کښي نبی کریم ﷺ ( فَلَـیْسَ مِنَّـا ارشاد فرمائی. دلته خاص سره مني ذکر کولوکښي څه حکمت دي؟

**حکمت** ① چونکه دلته په دري ځیزونوکښي دواده کولوذکر هم دي او واده د نبی کریم ﷺ خاص طریقه ده.ددي وجي نه ئي دا ارشاد اوفرمائیلو:چه څوك زما دخاص طریقي نه مخ واړه وی هغه زما نه نۀ دي.یعنی ددي لائق نۀ دي چه ځان ته زما امتی اووائی.

**حکمت**② په دي کښي ترهیب (ویرول) دی یعنی چه کوم سړي نکاح نۀ کوی دهغه یرول مقصود دی چه هغه زما نه نۀ دي.اودهغه خاص ما سره څۀ تعلق نشته.نود صحابوٴ سره څنگه تعلق کیدي شی.ددي وجي نه ئي مني اوفرمائیل.

**حکمت**③ په دي کښي ترغیب دي یعني په خلقو کښي دوادۀ شوق اوجذبه پیدکول مقصود دی چه دگناه نه دبچ کیدلوعلاج دي (النکاح) اودچاچه دمخکښي نه شوق وی دهغوی جذبه زیاتول مقصود دی.گوریٔ که چري ددینه اعراض کویٔ نو زما سره ستاسوهیڅ تعلق نشته اوښکاره ده چه دچاتعلق دحضور ﷺ نه پریکړي شو.(نعوذبا لله من ذالـك) نودهغۀ دکامیابیٔ هیڅ لارپاتي نشوه.

**حکمت** ④ (واده) تعظیم مقصود دي.یعنی داکارمعمولی مۀ گنړیٔ داداالله تعالی دتیرشوو پیغمبرانوسره هم دغه شان معامله وه.او زما سره همدغه معامله ده.اوس که چري تاسوکښي څوك واده نه کوی نوهغه گویاچه دالله تعالی معامله او زما طریقه سپکه گنړی.لهذا دده زما سره هیڅ تعلق نشته.

**حکمت** ⑤ دغصي اظهاردي.یعنی داسي سړي چه زما دطریقي نه داعراض کولوجرات کوی هغه(خاص) زما نه نۀ دي.

**حکمت** ⑥ چونکه دوادۀ نۀ کولورائي د ډیرو صحابه کراموپه ذهن کښي وه.ددي وجي نه ړومبي خطاب هغوی ته دي په دویم خلی کښي مونږته دي.نو هرکله چه بعضوصحابوٴ داسي

ذهن لرلو، نو فليس منا وئيلو کښې خوهغوی هم داخليږی. حالانکه په دې معامله کښې دهغوی نه داخلول مناسب وو. په دې وجه ئې د مِنی لفظ ارشاد اوفرمائيلو. چه صحابه هم (دچاچه داسې اميدنه وو) هم تنبيه شی. که چرې بالفرض اوس تاسوهم نکاح نهٔ کولوته ترجيح ورکړه نوبيا تاسوهم زما نه نهٔ ئې.

**حکمت** ⑦ دخپل ځان نه ئې نفی اوکړه. دهغې وجه داده چه څوك زما اتباع نه کوی هغه زما دروحانی اولادنه نهٔ دې.

**حکمت** ⑧ چونکه سنتی مفرد دې ددې وجې نه ئې دهغې مناسب مِنی مفرد ذکرکړو.

**ترکيب** من شرطيه رغب فعل هو فاعل عن جار سنتی مضاف اليه مجرور، جار سره دمجرورنه متعلق شو فعل پورې. فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه شرط شو. ف جزائيه ليس فعل ناقص هوضمير ددې اسم من جار، ی مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتا محذوف پورې. ثابتااسم فاعل (هوضمير) سره دفاعل اومتعلق نه شبه جمله خبردلَيْسَ. لَيْسَ سره داسم اوخبرنه جمله فعليه خبريه جزاء. شرط سره دجزاء نه جمله فعليه خبريه شرطيه شوه.

﴿۲۰۰﴾- وَمَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ (ابوداؤد)

[تخريج:_مشکوٰة: ص:۳۷۵، س:۱٤ عن ابن عمر رضي الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه دکوم قوم مشابهت اختيارکړو. نوهغه به هم دهغوی نه وی.

**تشريح** کوم سړی چه دکوم قوم (کهٔ د کافرانو وی اوکه د فاجرانو وی اوکه د صالحانو) مشابهت اختيارکړوبه څهٔ ګناه يانيکئ نودګناه ياثواب په لحاظ سره به هم دهغه قوم نه شمارلې شی. دمشابهت نه مرادعام مشابهت دې. اخلاقو، جاموکپړواوشکل صورت وغيره ټولوته شامل دې. ددې وجې نه چه کوم سړې بغير دضرورت نه په انګريزئ ژبه کښې خبرې کوی. اوجامه هميشه پينټ (پتلون) اوټائي وغيره (کوم چه دکفارولباس دې) اغوندی. اوشکل صورت ورانوی (ږيره دموټې نه کموی) نوداقسم سړې دآخرت باره کښې ددې حديث په وجه سخت په خطره کښې دې. دسخت عذاب. اوددې خبرې نه چه داسړې چرته دکفاروپه ډله کښې داخل نکړې شی. د نبی کريم ﷺ تعليمات اوعمل اودصحابوٴ عمل ته اوګورئ چه هغوی چرته يوځائې کښې په مستحب کارکښې هم دهر غيرمسلم دمشابهت نه ځان ساتلو. مثلاً صرف د لسم محرم روژه چونکه يهودو هم نيوله. ددې وجې نه حضور ﷺ حکم اوکړوچه تاسو يوه روژه مخکښې يا روستو ضرورنيسئ. که چرې تاسودمحرم لسمه روژه نيسئ. هرکله چه زمونږ نبی کريم ﷺ اوصحابه کرامو (هم) دغلطوخلقو دمشابهت نه بچ کيدل نونن مونږ کوم باغ مولئ يو اودکوم پټی فصل يو. چه مونږه دکفارو او فاسقانو طريقه اوعمل دسينې سره

لګولې دې اوناست یو. یادساتئ هغه انسان انسان دې اواشرف المخلوقات دې چاچه د نبی کریم ﷺ تعلیمات صحیح اوګنړل اوعمل ئې وربانـدې اوکړو. کـه چرې کـوم سړې عمل نـه کـوی نوپـه هغـه کښې د نبی کـریم ﷺ تهـذیب نـشته.هغـه دخنزیراوسپـی نـه هـم یقینـا بـدتر دې.اګرچه هغه د ۲۲ ګریډ افسرولې نۀ وی.سپی اوخنزیرنـه بـه دقیامت پـه ورځ تپـوس نـه وی لیکن د ۲۲ ګریډ افسرنـه بـه تپـوس کیږی.اودهرهغـه سړی نـه بـه تپـوس کیږی چـه هغـه پـه اخلاص سره عمل نه کولو.

**فائده**۞ واو په اصل حدیث کښې نشته.لهذاچه کومه نسخه کښې چاپ شوې دې هغـه دچاپ غلطی ده.

**ترکیب**۞ من شرطیه تشبه فعل هو فاعـل ب جـار قـوم مجرور.جارسره دمجرورنـه متعلق شو فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نـه جملـه فعلیـه خبریـه شرط شو.ف جزائیـه هـو مبتـداء منهم جار مجرورمتعلق شو ثابت پورې.ثابت اسم فاعل سره دخپل فاعل (هوضمیر) اومتعلق نه شبه جمله خبرشو.مبتداء سره دخبرنـه جملـه اسمیـه خبریـه جزاء شـرط سـره دجزاء نـه جملـه فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۰۱﴾- مَنْ غَشَّنَا فَلَيْسَ مِنَّا (مسلم)

[تخریج:ــ مشکواة: ص:۳۰۵، س:۲۲، عن ابی‌هریرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ چاچه خیانت اوکړو مونږسره نوهغه زمونږ نه نۀ دې.

**تشریح**۞ کوم سړی چه مونږه (یعنی دنبی کریم ﷺ اوصحابه کرامو اودهغوی تابعداری کونکو ته) دهوکه ورکړه.مونږه سره ئې په څۀ معامله کښې خیانت اوکړونوزمونږه دجماعت نـه خـارج دې.دکوم جماعت مشابهت چه هغه اختیارکړې دې نـواوس بـه دې هـم دهغونـه وی.بهرحال خودې زمونږه دجماعت نه وتلې دې اوایمان ئې ډیر زیات کمزورې شوې دې.دایمان کامـل کولوداپاره داشرط دې چه په پوره دین باندې عمل اوکړی.دهوکه ورکول اوخیانت کول،ګناه کبیره ده.اوچه ترکومې یوه ګناه کوی هغه سړې ولی کامل نشی جوړیدلې اوایمان نه مکمل کیږی تول ګناهونه پریښودل ضروری دی.

**فائده**۞ ① غَشَّ په حدیث کښې دنصر نه دماضی صیغه استعمال شوې ده اوددې مصدرغش په غین مثلثه سره په معنی د① دهوکـه ورکولو② خیانت کولو③ پـه کـسری سره پـه معنـی دجعلی سکه② اصـل حـدیث کـښې ومـن دې.یعنـی واوسره دې.ځکـه چـه داحـدیث دمـسلم شریف دې.اوپه مسلم شریف کښې ددې نه مخکښې (مَنْ حَمَلَ عَلَيْنَا السِّلَاحَ ) جملـه ده.ددې وجې نه دلته واو دې.③ چه کله واو شته یادکاتب نه پاتې شوې یامصنف ځکه نۀ دې ذکر کړې چه په زادالطالبین کښې متصلا څۀ حدیث نۀ دې تیرشوې چه دهغې په وجه واوذکر کړې شی.④ کله

چه واو مذکور دې نوپه ترکیب کښې واو استینافیه هم جوړیدلې شي او عاطفه هم دعاطفه په صورت کښې به حدیث نمبر ۱۹۲ معطوف علیه جوړیږي.

**ترکیب** واؤ استینافیه من شرطیه غش فعل هو فاعل نا مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه لیس فعل ناقص هو ضمیردده اسم منا جار مجرورمتعلق شوثابتا پورې.ثابتًا اسم فاعل سره دخپل فاعل (هوضمیر) اومتعلق نه شبه جمله خبر.لیس سره داسم اوخبرنه جزاء شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۰۲﴾- مَنْ اَرَادَ الْحَجَّ فَلْيُعَجِّلْ (ابوداؤد)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۲۲۲، س:٦، عن ابن عباس رض مرفوعًا]

**ترجمه** کوم کس چه اراده اوکړه دحج، نوهغهٔ له پکاردی چه جلتي اوکړي.

**تشریح** کوم سړې چه دحج اراده اوکړي هغه له پکارده چه جَلتي اوکړي ځکه چه حج په کال کښې یوځل کیږي.که چرې اوس ئې اونکړو،نویوکال به روستوکړې شي اودمرګ هیڅ پته نهٔ لګي.حج که چرې فرض شوې وي نوامر دوجوب دپاره دې اوکه چرې حج ئې کړې وي نود نفلي حج حکم دې اوهغه مستحب دې.په مشکوة کښې ددینه وړاندې حدیث مفهوم دادې چه حج اوعمره اوکړئ ځکه چه دا دواړه فقراوګناهونه ختموي.

**ترکیب** من شرطیه ارادفعل هو فاعل الحج مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شوه.ف جزائیه لیعَجِّل فعل امرهوفاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه انشائیه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه انشائیه شرطیه شوه.

﴿۲۰۳﴾- مَنْ عَزّٰى ثَكْلٰى كُسِيَ بُرْدًا فِي الْجَنَّةِ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۵۱، س:۱٤،عن ابی برزة مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه تسلي ورکړه د وُرك شوی ماشوم مورته،نوهغهٔ ته به جنت کښې یوڅادر واغوستلې شي.

**تشریح** دثکلی معنی ① هغه ښځه چه دهغې بچې ورك شوې وي.② هغه ښځه چه دهغې بچې مړشوې وي.دلته دواړه معنی صحیح دی.لیکن زیاته مناسبه رومبۍ معنی ده.دلته دواړه معنی ځکه صحیح دی چه مقصد غم زده ( غم وهلې) ښځې ته تسلي ورکول دی.برابره ده که دښځې دبچې په مرګ باندې وي یاورکیدلوباندې وي.رومبۍ معنی زیاته مناسب ده ځکه چه دثکلی اصلي لغوی معنی همدغه ده.ثکلی مؤنث دې.دثاکل صفت دې.دادسمع نه مستعمل دې په معنی دورکولو. سره.اوضائع کول.په هرحال چاچه داسې ښځې ته تسلي ورکړه نوهغهٔ ته به په جنت کښې دکرښو والا کپړې څادرچه هغه به ډیرزیات ښائسته وي واغوستولې شي.

**فائده** ① دثکلی معنیٰ چونکه دوه دی.ددې وجه نه دحدیث هم دوه معنی دی که چرې رومبې معنی مرادوی نوپه دې وجه هم زیاته مناسب ده چه دکومې ښځې بچې ورك شی هغه زیاته غمژنه وی په نسبت دهغه ښځې چه دهغې بچې وفات شوې وی ځکه چه کوم وفات شو هغه خوراحت ته اورسیدلو او روستوهم ټولوته پته ده.اوکوم چه وُرك دې دهغه باره کښې روزانه داخیال راځی چه پته نشته اوس به هغه څومره په تکلیف کښې وی.که چرې دویمه معنی مرادوی نوهغه هم ددې وجې نه صحیح ده چه دثکلی یوه معنی داهم ده.اوعزی په معنی دتعزیت کولوسره دې.په رومبۍ معنی کښې عزی په معنی دتسلیٰ سره دې.② دا تسلی ورکول محرم ښځې سره متعلق ده.که نامحرم ته تسلی ورکول وی.نو پرده ضروری ده. ځکه چه پرده واجب ده اوتسلی مستحب ده.

**ترکیب** من شرطیه عزی فعل هو فاعل ثکلی مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.کُسِیَ فعل هو نائب فاعل برداً مفعول به فی الجنة جار مجرور متعلق شوپه فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۰٤﴾- مَنْ صَلّٰی عَلَیَّ صَلَاةً وَّاحِدَةً صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ عَشْرًا (مسلم)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۸٦، س:۸، عن ابی هریرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه په ما باندې یوځل درود اولیږلو،نوالله تعالی بهٔ په هغهٔ باندې لس ځله رحمت اولیږی.

**تشریح اود درود شریف فضیلتونه** کوم سړی چه په حضورﷺ باندې یوځل درود اولیږلوالله تعالی به هغه باندې لس ځله رحمت اولیږی.دا درودشریف ډیرلوئې فضیلت دې.یوڅونورفضائل د درودشریف لیکلې شی.**حدیث**② دانسؓ نه نسائی روایت کړې دې چه حضورﷺ اوفرمائیل چه څوك په ماباندې یوځل درود اووائی الله تعالی په هغه باندې لس ځله رحمت لیږی.او دهغه لس ګناهونه لرې کولې شی.اولس درجې دهغه اوچتولې شی.③ دحضرت ابوهریرةؓ نه دترمذی روایت دې رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه د داسې سړی پوزه دې په خاوروککړه شی (ذلیل دشی) چه دچادوړاندې زما ذکراوکړې شواوهغه په ماباندې دروداونه وئیلو.④ دترمذی روایت دې دعلیؓ نه رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه هغه سړې بخیل دې چه دچاپه مخکښې زما ذکراوکړې شواوهغه په ماباندې درود اونه وئیلو.⑤ دبیهقی روایت دې د ابوهریرةؓ نه چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه چا زما قبرسره درود اولوستلونوهغه زه پخپله اورم اوچاچه لرې درود اولوستلونوهغه ماته رارسولې شی.⑥ داحمد روایت دې دعبدالله بن عمرؓ نه حضرت عبدالله بن عمروؓ فرمائې چه کوم سړی په حضورﷺ باندې یوځل درود

اووائی الله تعالی په هغه باندې اویا (۷۰) رحمتونه رالیږی.اوفرشتې هم اویاځله دمغفرت دعاګانې کوی.⑥ دټولونه لوئې فضیلت په قران کریم کښې دې چه:اې ایمان والاوو تاسوهم حضورﷺ باندې درود اوسلام اووائې.دفضیلت داټول احادیث دمشکواة (ص۸٦ تا۸۷) نه اخستلې شوی دی.

**د درود شریف مسئلې** ① کوم ځائې چه دحضورﷺ نوم یادکړې شی دغه ځائې کښې کم نه کم یوځل درودُ شریف (هریوچه وی) وئیل په هرعاقل اوبالغ سړی اوښځې باندې واجب دې.
② لکه څنګه چه ژبې سره دذکرمبارك په وخت درود شریف لوستل واجب دی دغه شان په قلم سره دلیکلوپه وخت هم درودشریف قلم سره لیکل واجب دی.په (صلعم) باندې اکتفا جائزنه ده ③ په ټول عمر کښې یوځل په ژبه درودشریف وئیل فرض عین دی.لکه څنګه چه کلمهٔ توحیدپه ټول عمرکښې یوځل فرض عین ده.باقی وختونوکښې مستحب دی.
④ دصلوة سره سلام وئیل واجب نهٔ دی افضل دی په یوباندې هم اکتفاجائزده بغیردنبی نه صلوة اوسلام اصالة عندالجمهورناجائزدې اوپه ال وغیره باندې تبعا جائزدې (تفسیرمعارف القران مفتی شفیع صاحب ج۷ص ۲۲٤)

**ترکیب** من شرطیه صلی فعل هو فاعل علی جارمجرورمتعلق په فعل پورې واحدةً مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شوه.صلی فعل لفظ الله ئې فاعل علیه جار مجرورمتعلق په فعل پورې عشر مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزانه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۰۵﴾- مَنْ قَتَلَ نَفْسًا مُعَاهَدًا لَمْ يَرِحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ (بخاری)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۲۹۹، س:۲۲، عن عبدالله بن عمرؓ مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه قتل کړو ذمی لره نوهغه به محسوس نه کړی بوئی (خوشبو) دجنت.

**تشریح** معاهدپه اصل کښې هغه سړی ته وائی چه هغه دبادشاه سره دجنګ نه کولوعده وی.خواه ذمی وی یابل څوك.ترجمه په ذمی سره اوکړې شوه اومعاهده دمسلمانانوسره هم دبادشاه سره معاهده ده.دداسې سړی وژل چه دهغه معاهده شوی وی دجنت خوشبوئی به هم بوئې نکړی.وړاندې مکمل حدیث دادې چه بې شکه دجنت خوشبوئی موندلې شی. دڅلوېښتو کالو(پیاده تللو) په مسافت باندې.انتهی معلومه شوه چه دکوم سړی سره معاهده شوې وی دهغه وژل ډیر ناکاره دی اودجنت نه به کم نه کم دڅلوېښتوکالوفاصله باندې وی یعنی عذاب کښې به وی.دجنت خوشبو څومیله لرې پورې بوئی کیدې شی.په دې باره کښې تحقیق د احقر (مصنف) کتاب دجنت اوجهنم متعلق کښې دې اوکتلې شی.

**ترکیب** من شرطیه قتل فعل هو فاعل معاهداً مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.لم یرح فعل هو فاعل رائحة مضاف الجنة مضاف الیه دواړه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء،شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۰۶﴾- مَنْ يُرِدِ اللّٰهُ بِهٖ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ (بخاری)

[تخریج:ـ مشکواة: ص:۳۲، س:۱۸، عن معاویه رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاسره چه الله تعالی دنیکۍ اراده اوکړی نوهغهٔ ته په دین کښې پوهه ورکوی.

**تشریح** کوم انسان ته چه الله تعالی نیکی ورکول غواړی نویه دین کښې پوهه ورکوی اوهغه سړې عالم جوړوی.اوددینه مخکښې جمله کښې ئې اوفرمائیل چه زه صرف قاسم یعنی علم تقسیم کونکې یم.اوالله تعالی ورکړه کوی.یعنی په دین کښې پوهه ورکوی زه صرف ښایم اوتقسیموم،اویه خلقو خوروُم.باقی پوهه ورکول، عالم اوفقیه جوړول دادالله ﷻ کاردې. (ذَالِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَشَاءُ)

**ترکیب** من شرطیه یُرد فعل لفظ الله فاعل به جارمجرورمتعلق په فعل پورې خیراً مفعول به.فعل سره دفاعل متعلق اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شوه.یفقّهه فعل هو فاعل ه مفعول به فی الدین جارمجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۰۷﴾- مَنْ بَنٰى لِلّٰهِ مَسْجِدًا بَنَى اللّٰهُ لَهٗ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ (بخاری ومسلم)

[تخریج:ـ مشکواة: ص:۶۸، س:۵، عن عثمان رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه دالله تعالی دپاره جمات جوړکړو.جوړیه کړی الله تعالی دهغهٔ دپاره کورپه جنت کښې.

**تشریح** د مَسجدًا تنوین اوتنکیردتقلیل دپاره دې اودبیتا تنوین اوتنکیر دتعظیم دپاره دې. اوس معنی داده چه کوم سړی وړوکې شان جومات جوړکړویائې په جوړولو کښې حصه واخستله نوالله تعالی ډیرلوئې اوډیر ښائسته محل دهغه دپاره په جنت کښې تیاره وی. دمرګ نه روستو ثوثیزونه په کارراځی اوصدقه جاریه جوړیږی ① یوخودا یعنی جومات یا مدرسه جوړول② علم نافع چه دهغې نه خلق فائده اخلی.③ نیك اولاد دهغه نیکۍ مور اوپلارته هم ملاویږی وغیره.

**ترکیب** من شرطیه،بنی فعل هو فاعل لله جارمجرورمتعلق شوفعل پورې مسجدا مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.بنی فعل لفظ الله فاعل.له

جارمجرورمتعلق اول شو بنی فعل .بیتًا مفعول به فی الجنة جارمجرورمتعلق ثانی شو دفعل.فعل سره دفاعل مفعول به او متعلقینونه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۰۸﴾- مَنْ صُنِعَ اِلَيْهِ مَعْرُوْفٌ فَقَالَ لِفَاعِلِهٖ جَزَاكَ اللّٰهُ خَيْرًا فَقَدْ اَبْلَغَ فِي الثَّنَاءِ (ترمذی)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۲۶۱، س:۱۶، عن اُسامۃ بن زیدؓ مرفوعًا]

**ترجمه** چاسره چه اوکړې شوه نیکی نوهغهٔ اوونیل دهغې کونکی ته.چه الله تعالی دې تاته ښه بدله درکړی، نوهغهٔ مبالغه اوکړه په تعریف کولوکښې.

**تشریح** چاسره چه احسان شوې دې هغه ته پکاردی چه احسان کونکی ته دا الفاظ په طورد شکرئې سره اووائی (جَزَاكَ اللّٰهُ خَيْرًا) که چرې څوك احسان اوکړی څهٔ کارپخپله اوکړی یاپه چاباندې اوکړی.یاهدیه ورکړی وغیره یا بل څهٔ نیکی اوښیګړه.اوکړی نوهغه له پکاردی چه نورهیڅ نشی کولې نوکم ازکم دادعائیه جمله دې اووائې چه دهغې مطلب دادې چه زه خو ناقص یم قصورواریم.الله دې تاته ښه بدله درکړی.نوداسې ونیل کافی دی بلکه مبالغه او زیاتوالې دې په تعریف کښې لکه چه اوس هغهٔ داحسان بدله ورکړه.

**ترکیب** من شرطیه صُنع فعل الیه جارمجرورمتعلق په فعل پورې معروف نائب فاعل.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه شوه.ف عاطفه قال فعل هو فاعل ل جار فاعله جارفاعله مضاف الیه مجرورجارمجرورمتعلق په فعل پورې جزاء فعل ك مفعول به اول لفظ الله فاعل خیرا مفعول به ثانی.فعل سره دفاعل اومفعولینونه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدرسره مقوله مفعول به.قال فعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه اومقوله (مفعول به) نه جمله فعلیه خبریه معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه شرط. ف جزائیه اَبْلَغَ فعل هو فاعل فی الثناء جارمجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۰۹﴾- مَنْ كَانَ ذَا وَجْهَيْنِ فِي الدُّنْيَا كَانَ لَهٗ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِسَانٌ مِّنْ نَّارٍ

(دارمی)[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۴۱۳، س:۱۷، عن عماربن یاسرؓ مرفوعًا]

**ترجمه** څوك چه شو دوه مخې په دنیا کښې نو وی به هغهٔ دپاره دقیامت په ورځ د اور ژبه.

**تشریح** د ذَاوَجهَین نه مرادهغه سړې دې چه د دوو کسانومینځ کښې جنګ وی اودې هریو ته ورځی دهغه ملګرتیا کوی اودهغه دمخالف اودشمن سره دشمنی ښکاره کوی.په عرف کښې ده ته منافق وئیلې شی.دحضورانورﷺ دزمانې منافق مرادنهٔ دې.داسې سړې دوه مخې دې.داسې سړی دپاره به داورژبه وی دقیامت په ورځ.دامعنی ډیره مناسب ده ځکه چه منافق

صرف دحضورﷺ په زمانه کښې وؤ.اوس یاکافردې یامسلمان.دوه مخې فاسق مسلمان دې.
او عملي منافق دې.کافرورته نشي وئیلې(حاشیه مشکوة نمبر۹په حواله دلمعات)

**ترکیب** من شرطیه کان فعل ناقص هو دده اسم.ذاوجهین مضاف مضاف الیه خبردکان.في الدنیا جارمجرورمتعلق شوفعل پورې کان سره دخپل اسم اوخبرنه اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.کان فعل ماضي له جارمجرورمتعلق پورې.یوم القیامة مضاف مضاف الیه مفعول فیه لسان موصوف من جار نارمجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوثابت پورې.ثابت اسم فاعل سره دخپل فاعل (هوضمیر) اومتعلق نه شبه جمله صفت دموصوف.موصوف سره دصفت نه فاعل دکان.کان سره دخپل فاعل، متعلق اومفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۱۱﴾- مَنْ رَأٰى عَوْرَةً فَسَتَرَهَا كَانَ كَمَنْ اَحْيٰى مَوْءُوْدَةً (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۴۲۴، س:۸، عن عقبه بن عامرؓ مرفوعا]

**ترجمه** چاچه اولیدهٔ عیب نوپټ ئې کړو هغه، نو وی به دهغه کس په شان چاچه ژوندئ کړه ژوندئ ښخه کړې شوې جینئ.

**تشریح** دعورت معنی① هرهغه څیزچه دهغې نه شرم اوکړې شي.② دانسان هغه اندام چه هغه دشرم دوجې نه پټولې شي.ددې جمع عَورَاتٌ راځي اوعَوَرَاتٌ.دحدیث مطلب دادې چه کوم سړی څهٔ عیب اولیدلواوخبردارشوپیائې هغه ښکاره نه کړو.دهرچانه ئې پټ اوساتلو.نودغه سړی ته به دهغه سړی برابرثواب ملاویږی چه هغه ژوندئ ښخه کړې شوې جینئ ژوندئ دقبرنه راویستله.یعنی ډیرزیات ثواب به وی.ساترعیب مشبه ده.محی الموءودة مشبه ده.وجه دشبه اومناسبت ددواړومینځ کښې دادې چه حیادارانسان دخپلې شرمندګئ نه مرګ بهترګنړی.نوچاچه عیب پټ کړو،نوګویا چه هغه ده لره دمرګ نه بچ کړلو.لهذا ساتر عیب به داسې وی لکه چه ژوندئ ښخه کړې شوې جینئ ژوندئ د قبرنه راوباسی.
(حاشیه مشکوة نمبر۵ بحواله لمعات)

**ترکیب** من شرطیه رای فعل هو فاعل عورة مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه ف عاطفه سترفعل هو فاعل هامفعول به.فعل سره دفاعل او مفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه شرط.کان فعل هو فاعل ك جارمن موصوله احیی فعل هُوَفاعل،مَوءُودَةً مفعول به.فعل سره دفاعل مفعول به نه جمله فعلیه خبریه صله شوه.موصول سره دصلې نه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبره جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۱۲﴾- مَنْ خَزَنَ لِسَانَهٗ سَتَرَ اللّٰهُ عَوْرَتَهٗ وَمَنْ كَفَّ غَضَبَهٗ كَفَّ اللّٰهُ عَنْهُ عَذَابَهٗ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنِ اعْتَذَرَ اِلَى اللّٰهِ قَبِلَ اللّٰهُ عُذْرَهٗ (رواه البيهقى)

[تخريج:_ مشكواة: ص: ۴۳۴، س: ۲۰، عن انس رضى الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه** ۞ چاچه حفاظت اوكړو دخپلې ژبې، پټ به كړى به الله تعالى دهغهٔ عيب، او چاچه بند كړله خپله غصه، بند به كړى الله تعالى دهغهٔ نه خپل عذاب دقيامت په ورځ، او چاچه عذر اوكړو الله تعالى ته، نو قبول به كړي الله تعالى دهغهٔ عذر.

**تشريح** ۞ كوم سړى چه دخپلې ژبې حفاظت اوكړويعنى دچاعيب ئې راونه ويستلونوالله تعالى به دقيامت په ورځ هغه نهٔ رسواكوى. بلكه دهغه ټول عيبونه به پټ كړى. دخَزَنَ لفظ ئې اوفرمائيلوچه دايواځې عيب نه راويستلوته شامل نهٔ دې بلكه دژبې ټولوګناهونوته شامل دې چه په هغې كښې يوه ګناه په ژبه دچاعيب راويستل دى. نواوس مطلب داشوچه كوم سړى دژبې دټولوګناهونونه حفاظت اوكړونوالله تعالى به هم ددې بدله وركړى. مخكښې ئې اوفرمائيل چاچه خپله غصه بندكړه دالله تعالى د ويرې په وجه، نوالله تعالى به ددې بدله وركړى دعذاب نه بچ ساتلوسره. چه دقيامت په ورځ به ئې الله تعالى دعذاب نه بچ كړى اومخكښې ئې اوفرمائيل چاچه عذر اوكړوالله تعالى ته يعنى په دنياكښې ئې توبه ويستله نوالله تعالى هم دهغه عذريعنى دګناهونواقراراوتوبه قبلوى.

**تركيب** ۞ من شرطيه خزن فعل هو فاعل لسانه مضاف مضاف اليه مفعول به فعل سره دفاعل مفعول به نه جمله فعليه خبريه شرط شو. سترفعل لفظ الله فاعل عورته مضاف مضاف اليه مفعول به. فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبريه جزاء. شرط سره دجزاء نه معطوف عليه واو عاطفه من شرطيه كف فعل هو فاعل غضبه مضاف مضاف اليه مفعول به. فعل سره دفاعل اومفعول به نهٔ جمله فعليه خبريه شرط شو كف فعل لفظ الله فاعل عنه جارمجرورمتعلق په فعل پورې عذابه مضاف مضاف اليه مفعول به يوم القيامة مضاف مضاف اليه مفعول فيه. فعل سره دفاعل مفعول به اومفعول فيه اومتعلق نه جمله فعليه خبريه جزاء. شرط سره دجزاء نه معطوف اول. واوعاطفه من شرطيه اعتذرفعل هو فاعل الى الله جارمجرورمتعلق په پورې. فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه شرط شو. قَبِلَ فعل لفظ الله فاعل عذره مضاف مضاف اليه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه مفعول به نه جمله فعليه خبريه جزاء. شرط سره د جزاء نه معطوف ثانى. معطوف عليه سره دمعطوفينونه جمله فعليه خبريه شرطيه معطوفه شوه.

﴿۲۱۳﴾- مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ عَلِمَهٗ ثُمَّ كَتَمَهٗ اُلْجِمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِلِجَامٍ مِّنْ نَّارٍ (احمد وترمذى)

[تخريج:_ مشكواة: ص: ۳۴، س: ۲۳، عن ابى هريرة رضى الله عنه مرفوعًا]

**ترجمه** دچا نه چه تپوس اوشو دهغه علم باره کښې.دکوم چه هغهٔ ته علم وو.بیا هغهٔ پټ کړو هغې لره، نوهغهٔ ته به (په خُله کښې) د اور واګې واچولې شي.

**تشریح** په څه دینی معامله کښې چاتپوس کونکی ته ضرورت پیش شو.دیوعالم نه ئې تپوس اوکړوچه دهغه مسئلې ته ضرورت وو اودهغه دعلم نه بهرنه وه نوعالم سره دپوهې نه هغه مسئله اونه خودله پټه ئې کړه یعنی یاخوئې بالکل جواب ورنکړو.یائې جواب ررکړو لیکن ګډوډ.نودعلم دوتلوځائې خوله ده ددې وجې نه په خوله کښې به ورته داور واګې واچولې شي.مرادتول بدن ته عذاب دې.(حاشیه مشکوٰة صفحه ۱۶ بحواله مرقات)

**ترکیب** من شرطیه سُئِل فعل هو نائب فاعل عن جارعِلم موصوف عَلِمَ فعل هو فاعل ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه صفت شو.موصوف سره دصفت نه مجروردجار.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه شوه.ثم عاطفه کتم فعل هو فاعل ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف شو.معطوف علیه سره دمعطوف نه شرط. اُلجم فعل هو نائب فاعل،یوم القیامة مضاف الیه مفعول فیه،ب جارلجامِ موصوف. من نار،جارمجرورمتعلق شوثابت پورې.ثابت اسم فاعل سره دخپل فاعل (هُوضمیر) او متعلق نه شبه جمله صفت شو موصوف سره دصفت نه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شو دفعل.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه.

**﴿۲۱۴﴾ مَنْ اُفْتِیَ بِغَیْرِعِلْمٍ کَانَ اِثْمُهٗ عَلٰی مَنْ اَفْتَاهُ وَمَنْ اَشَارَعَلٰی اَخِیْهِ بِاَمْرٍیَعْلَمُ اَنَّ الرُّشْدَفِی غَیْرِهٖ فَقَدْخَانَهٗ** (ابوداؤد)

**[تخریج:_ مشکوٰة: ص:۳۵، س:۲۱، عن ابی هریرةؓ مرفوعًا]**

**ترجمه** کومه فتوی چه ورکړې شوه بغیر دعلم نه، نووی به ګناه دهغې په هغه کس باندې چاچه دهغې فتوی ورکړې ده.او چاچه مشوره ورکړه خپل رورته دداسې کار،چه هغه ته پته وه چه بې شکه خیر ددې نه په علاوه بل څیزکښې دې.نوهغهٔ دهغهٔ سره خیانت اوکړو.

**تشریح** بغیر دتحقیق نه فتوی ورکول ګناه کبیره ده.که چرې یوکس فتوی واخستله اومفتی صاحب په لاعلمئ کښې فتوی ورکړه یعنی غلط ئې ورته اوخودله نویه دې صورت کښې ګناه په ښودونکو باندې ده.تپوس کونکې برئ الذمه دې لیکن که چرې تپوس کونکی ته دبل ځائې نه پته اولګیدله نوبیاپه هغه باندې په صحیح باندې عمل کول واجب دی.ددویمې جملې مطلب دادې چه کوم سړی قصداً عمداً غلطه مشوره ورکړه یعنی داخبره ورته معلومه

وه چه په دې مشوره کښې مصلحت نشته لیکن بیائې هم ورکړه نوداسې سړی دمشورې اخستونکی سره ډیر لوئې خیانت اوکړوځکه چه سره دعلم نه په صحیح باندې غلطه مشوره ورکول خیانت دې.

**ترکیب۞** من شرطیه افتی فعل هو نائب فاعل ب جار غیرعلم مضاف مضاف الیه مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.کان فعل اثمه مضاف مضاف الیه فاعل علی جارمن موصوله افتی فعل هو فاعل ه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه نه معطوف علیه واو عاطفه من شرطیه اشارفعل هو فاعل علی جاراخیه مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې ب جار امرموصوف یعلم فعل هُوَ فاعل اَنَّ حرف مشبه بالفعل الرشد دده اسم فی جارغیره مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرور نه متعلق په ثابت پورې.ثابت اسم فاعل سره دخپل فاعل (هوضمیر) اومتعلق نه شبه جمله خبردانّ.اَنَّ سره دخپل اسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه په تاویل دمفردسره مفعول به یعلم فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه صفت.موصوف سره دصفت نه مجرور دجار.جارسره دمجرورنه متعلق ثانی دفعل، اشار فعل سره دفاعل اومتعلقینونه جمله فعلیه خبریه شرط،ف جزائیه،قدخان فعل،هُو فاعل،ه مفعول به،فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله فعلیه خبریه شرطیه معطوفه شوه.

﴿۲۱۵﴾-مَنْ وَقَّرَصَاحِبَ بِدْعَةٍفَقَدْاَعَانَ عَلٰی هَدْمِ الْاِسْلَامِ (رواه البیهقی مرسلاً عن ابراهیم بن میسرة)

[تخریج:۔ مشکواة: ص:۳۱، س:۱۸، عن ابراهیم بن میسره مُرسَلاً]

**ترجمه۞** چاچه دبدعتی تعظیم اوکړو نوهغهٔ مدد اوکړود اسلام په غورزولو کښې.

**تشریح۞** چاچه د یو بدعتی تعظیم اوکړو.یائې مدد اوکړو.(د وَقَّرَ دواړه معانې دی) نوګویا هغهٔ د اسلام په وُرانولو او غورزولو باندې مدد اوکړو.د هدم الاسلام څلور معانې دی:

① اسلام غورزول اونړول ② کمال داسلام وُرانول او غورزول ③ اهل اسلام ختمول.

④ سنت ختمول.دا څلور واړه معانې صحیح دی.دا خو دهغه سړی مذمت شو.څوك چه د بدعتی تعظیم او مددکوی.نو پخپله د بدعتی مذمت خو ډیر زیات دې.(مرقات جلد۱/۲۵۷)

دا روایت اګرچه مرسل دې.یعنی یو راوی صحابی پکښې نشته.خود معنی په لحاظ سره مضبوط دې.لکه چه روستو مرفوع حدیث د بخاری او مسلم راروان دې. په هغې کښې د بدعت اود صاحب بدعت ډیرمذمت دې.

**ترکیب** من شرطیه وقرفعل هو فاعل صاحب بدغة مضاف مضاف الیه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه قداعان فعل هو فاعل علی جارهدم الاسلام مضاف مضاف الیه مجرور .جارمجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۱۶﴾ مَنْ أَحْدَثَ فِي أَمْرِنَا هَذَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ (بخاری ومسلم)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۲۷، س:۷، عن عائشه رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه زمونږ په دې معامله کښې نوې خبره راویستله.کومه چه ددې نه نۀ وی نوهغۀ مردود ده.

**تشریح** دحضور ﷺ هرقول اوعمل دقران عین مطابق دې حضور ﷺ نه زیات نه څوك په قرآن پوهه دې اونه پوهیدلې شی.لهذاپه دین کښې څۀ نوې خبره رائج کول اودهغې نسبت قرآن یاسنت ته کول په اصل کښې په قرآن کریم اورسول الله ﷺ باندې دروغ تړل دی.لهذا دداسې سړی قول اوعمل مردود دې اوهغه پخپله هم مر دود دې.حضرت امام مالك رحمه الله فرمائی چه کوم سړی بدعت راوویستلویه اسلام کښې اوهغه ئې ښۀ اوګنړلو،نوګویا چه ده داخیال اوکړوچه حضور ﷺ (نعوذ بالله من ذالك) په رسالت کښې خیانت کړې دې.ځکه چه الله تعالی فرمائیلی دی (الیوم اکملت لکم دینکم ) چه مانن ستاسودپاره ستاسودین مکمل کړو(انتهی) علامه نووی رحمه الله فرمائی چه داحدیث داسلام دقواعدونه یو ډیره لویه قاعده ده.اودادجوامع الکلم نه دې دهربدعت په ردکولوکښې (انتهی) حضرت سفیان ثوری رحمه الله فرمائی چه بدعتی سره مصافحه کول (لاس ملاوول) اسلام ته نقصان رسول دی.(انتهی)

**دفی امرنا هذا ما لیس منه مطلب** ① ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کښې امرنا نه دین اسلام مراد اخلی.② حافظ ابن حجر رحمه الله هم په فتح الباری کښې دامرنانه امرالدین اخلی.
③ علامه عزالدین رحمه الله په سراج المنیرکښې دین اسلام مراداخلی.④ حاظ ابن رجب حنبلی رحمه الله په جامع العلوم والحکم کښې هم دین مراداخلی.بلکه حافظ ابن رجب داهم لیکی چه په بعضې روایاتوکښې صراحة دفی امرناپه ځائې فی دیننا ذکردې.بهرحال دحدیث مطلب دادې چه هرڅوك زمونږۀ دې دین کښې نوې خبره یانوې کار را اوباسی مالیس منه چه ددین نه نۀ وی.یعنی ددې اصل قولا یاعملا یااشارة په دین کښې نۀ دی.نوهغه بدعت دې. ددینه معلومه شوه چه هربدعت او نوې کار بدنۀ دې بلکه هغه کاربددې چه هغه دین اوګنړلې شی.(مرقات ج۱\۲۱۵ فتح الباری ج۵\۳۳۱ السراج المنیر ج۳\۳۲۰۱ جامع العلوم والحکم ص۴۲ طبع مصر)

اول د بدعت، دوه قسمه دی ① بدعت لغویه اود هغې تحقیق

دلغوی بدعت باره کښې ① دلغت امام ابوالفتح ناصربن عبدالسید المطرزی الحنفی رحمه الله (المتوفی س ۶۰۶ ه) لیکی چه بدعت دابتداع اسم دې لکه چه رفعت دارتفاع اوخلفت داختلاف اسم دې په معنی دځهٔ نوی څیزچه ایجادکړې شی لیکن بیا دبدعت لفظ په داسې څیزباندې غالب رغې چه په دین کښې کمې یازیاتې اوکړې شی.(مغرب جلد ۱ص۳۰) ② امام رازی لیکی چه بدعت داکمال دین نه روستوداحداث نوم دې.(مختارالصحاح ص ۲۸۰) ③ (فیروز اللغاف ص ۱۹٤) باندې دی.① په دین کښې څه نوې څیز راویستل یارسم اورواج راویستل.② ظلم سختی.③ جهګړه،فساد،شرارت.④ مصباح اللغات ص۲۷ باندې دبدعت دامعنی لیکی: چه بغیر دنمونې نه جوړشوې څیز، په دین کښې نوې رسم.هغه عقیده یاعمل چه دهغې څهٔ اصل په قرون ثلثه مشهود لها بالخیر کښې بیانه موندلې شی.

**بدعت شرعیه او ددې تحقیق** ❁ دشرعی بدعت په باره کښې ① علامه بدرالدین عینی الحنفی رحمه الله لیکی:چه بدعت په اصل کښې داسې نوې ایجادشوی څیزته وائی چه د:حضور ﷺ په زمانه کښې نه وو(عمدةُ القاری ج۵ ص۲۵۶) ② حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلی دی:بدعت هغه څیزته وائی چه بغیردسابقه نمونې نه ایجادکړې شوې وی.اوپه شریعت کښې دسنت مقابله کښې ددې اطلاق کیږی لهذا دابه (په هرحال کښې) مذموم وی.(فتح الباری ج ٤ ص۲۱۹)

③ علامه مرتضی الزبیری الحنفی رحمه الله (المتوفی س۱۲۰۵ھ) دبدعت دحدیث معنی بیانوی.هغه لیکی چه کوم څیز دشریعت داصولو نه خلاف وی اودسنت موافق نهٔ وی (تاج العروس ج۵ ص۲۷۱) ④ حافظ ابن رجب الحنبلی رحمه الله لیکی چه دبدعت نه مرادهغه شی دې چه دهغې په شریعت کښې هیڅ اصل نهٔ وی چه په هغې باندې دلالت اوکړی.اوهغه څیز چه دهغې اصل په شریعت کښې موجود وی چه په هغه باندې دلالت کوی نوهغه شرعاً بدعت نهٔ دې اګرچه هغه لغةً بدعت وی (جامع العلوم والحکم ص۱۹۳) ⑤ حکیم الامت مولانااشرف علی تهانوی الحنفی رحمه الله لیکی: چه دنوې خبرې نه مراد دادې چه هغه دشریعت دیو دلیل (قرآن، سنت، اجماع،قیاس) نه ثابت نهٔ وی.اوداسې خبرې په دین کښې داخلولو ته دشریعت په اصطلاح کښې بدعت وائی.

**دویم: د بدعت لغویه پنځه قسمونه دی** ❁ ① واجب ② مندوب ③ مکروه ④ مباح ⑤ حرام.

دلغوی بدعت **روښې قسم** ① **بدعت واجبه** ❁ یعنی هغه کارچه په هغې باندې ددین حفاظت موقوف وی.مثلاعلم النحو وغیره ② **بدعت مندوبه** ❁ یعنی هغه کارچه دهغې نه بغیر هم دین حاصلیدلې شی.مثلا ربط خودل او مدرسې جوړول ③ **مکروه بدعت** ❁ یعنی داخترمانځه نه

مخکښې نفل کول،اوجوماتونه ښهٔ ښائسته کول.④ **مباح بدعت** يعنی دخوراك څښاك په ځيزونوکښې فراخی کول.اوهغه ټول مباحات چه د نبی کريمﷺ په زمانه کښې نهٔ وو.

⑤ **حرام بدعت** يعنی څومره اهل بدعت چه بدعت شرعيه کوی.يعنی په دين کښې دثواب کارګڼل هغه چه د نبی کريمﷺ په زمانه کښې نهٔ وو.(لمعات التنقيح جلد ۱\۲۵۷)

د بدعت حسنه او سيئه تحقيق

**بدعت حسنه يانعمت البدعه** هغه دينی کارچه دهغې مانع د نبی کريمﷺ نه روستوزائل شوې وی.يا دهغې سبب اوداعی روستوپيښ شوې وی.اوپه قرآن،سنت،اجماع،قياس کښې دهغې دپاره ثبوت ملاويږی.نودهغې نوم بدعت حسنه يانعمت البدعة دې.اودالغوی بدعت مذموم نهٔ دې لکه جمعې سره دتراويح مونځ کول نعمت البدعة اوبدعت حسنه دې بلکه سنت دې.ځکه چه حضورﷺ دوجوب د ويرې نه جمع پرينښې وه.بيادحضرت عمرؓپه وخت کښې شروع شوه ځکه چه مانع زائل شو.يعنی اوس دوجوب ويره نشته.باقی دټولو بدعاتو حکم يودې.صرف دالفاظوفرق دې.بدعت سيئه بدعت ضلاله.بدعت قبيحه.بدعت مذمومه

بدعت شرعيه دټولوتعريف يودې.چه مخکښې سره دحوالې تيرشو.هغه بدعت چه په څه کاربانديې زيات والې ياکموالې اوکړې شی.ليکن دقرون ثلاثه نه روستووی.اودازيات والې دشرعې په حکم سره نهٔ وی اونهٔ په دې باندې دشارع قول موجود وی اونه فعل نه صراحت اواشاره دداسې بدعت باره کښې وعيدونه راغلی دی اوهم دا مراد دې دبدعت ضلاله نه(انتهی)

**اهمه فائده** دبدعت په ذات کښې حسن بالکل نشته.حسن صرف په سنت کښې دې اوپه سنت باندې عمل کولوکښې دې.بدعت ته نعمت (ښه) اوحسنه صرف دلغت په اعتبارسره وئيلې شوی دې.ددې نوی تهذيب زمانه کښې چه کوم سړې مطلقاً بدعت شرعيه ته بدعت حسنه وائی.دهغه قول بالکل باطل دې.اومردود دې.(الجنة ص ۶۰ و راه سنت ص۹۷ مجددالف ثانی مکتوبات حصه سوم ص۷۲) که دحسنه اوسيئه زيات تفصيل غواړئ نو اوګورئ! (ارشادالساری ج ۳ ص ۳۴۴ عمدة القاری ج۵ ص ۳۵۶ نووی شرح مسلم ج۱\۲۸۵ مدخل ج۲\۲۵۷ وغيره)

د بدعاتو په جواز د بدعتيانو دلائل اود هغې جوابونه اول دليل

مَنْ سَنَّ سنةً حَسَنَةً الخ چاچه جاری کړه په اسلام کښې نيکه طريقه، بياروستوپه دغه نيکه طريقه عمل اوکړې شو.نو اوبه ليکلې شی دغه سړی دپاره هغه مقدارثواب څومره ثواب چه ټولوعمل کونکوته ددينه روستوليکلې شی(مسلم ج۲ ص۳۴۱) ددينه معلومه شوه چه چا نوې طريقه ايجادکړه اوخلقوپه هغې باندې عمل اوکړونودااجرباعث دهٔ.په دې کښې هيڅ ګناه نشته.بدعت راويستل اوسنت حسنه راويستل يوځيزدې.

**رومبی جواب** دمسلم په دغه روایت کښې د مَنْ سَنَّ سُنَّةً په ځائې اَیُّمَا داعٍ الی هُدیً الفاظ دی.چه کوم داعی دهدایت طرف ته دعوت ورکړو ،نه داچه نوې طریقه ئې را اوبستله (مسلم ج۲ ص۳٤۱ ابن ماجه ص۱۹) اوددغه حدیث په دویمه طریقه کښې دا الفاظ وی (اَحْیَا سُنَّةً...الخ) چاچه زما یوداسې سنت ژوندې کړوچه هغه زما نه روستومړشوې وو.نه داچه دخپل طرفه ئې نوې خبره یانوې کلام ئې راویستلو.

**جواب** ددې حدیث دامعنی ده چه دکوم څیزپه شریعت کښې دلالةً یااشارةً ثبوت وی نوپه جاری کولوکښې به ئې ثواب وی.اوهغه به هغه فعل وی چه دهغې څیز ضرورت اومحرك په خیرالقرون کښې موجود نهٔ وی بلکه روستو پیدا شوې وی.اوادله اربعه نه دیودلیل دلاندې داخل وی.نه داچه دخپل ځان نه نوې طریقه ایجادکړې شوی وی.

**دویم دلیل** (قَالَ عَلَیْهِ السَّلَامُ مَارَاٰهُ الْمُسْلِمُوْنَ حَسَنًا فَهُوَ عِنْدَاللهِ حَسَنٌ)(جاءالحق وزهق الباطل ص۳۰۱) چه کوم کارمسلمانان ښهٔ اوگنړی هغه الله تعالی په نزدهم ښهٔ دې.نو ددینه صفا معلومه شوه چه هربدعت جائزدې.ځکه چه هربدعت مسلمانان ښهٔ گنړی نوکوی ئې.

**رومبی جواب** نورو روایاتو ته چه اوگورئ نودالْمُسْلِمُوْنَ نه صحابه کرامؓ مراد کیدلې شی. نو مونږه هم وایوچه دقرون ثلاثه نه روستونوې ایجادشوې چه دین اوگنړی هغه منع دې.کوم څیزچه صحابهؓ ښهٔ اوگنړی هغه به ضرور دالله تعالی په نزدښهٔ وی.د(مَااَنَا عَلَیْهِ وَاَصْحَابِیْ) دوجې نه.

**دویم جواب** دفتح الملهم (ص۴۰۹ ج۲) اونصبُ الرایه (ج٤ ص۱۳۳) نه معلومیږی چه داروایت دحضرت عبدالله بن مسعودؓ پورې موقوف دې دحضورﷺ خپل بیان نهٔ دې.لهذا دبدعت جواز ددې حدیث په وجه نشی جوړیدلې.دغه شان حدیث کښې دمسلمانانوهغه رائې مراده چه ددین دیواصل نه ثابت وی.

## دقرآن اوحدیث په رنړا کې د بدعت تردیداو مذمت اوسپیره والې

① دقرآن دسورة آل عمران ځلورمې رکوع رومبې آیت چه دهغې ترجمه داده! اې محمدﷺ تاسواعلان اوکړې که چرې تاسودالله تعالی سره محبت کوئ نو زما تابعداری اوکړئ.چه الله تعالی تاسوسره محبت اوکړی.اوستاگناهونهٔ اوبخښی.

ددې نه صفامعلومیږی چه نجات صرف دمحمدﷺ په اتباع کښې دې اودصحابوٗ او تابعینو اتباع دحضورﷺ په حکم سره ده.نوگویا چه دصحابوٗ اوتابعینو اودقرون ثلاثوٗ اتباع دحضورﷺ په اتباع کښې داخله ده لهذا په دین کښې نوې څیز راویستل بدعت اوښکاره گمراهی ده.

② رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه: هیڅ قوم بدعت نه ایجادکوی مگر دهغې مقدارکښې دهغوی نه یوسنت اوچتولې شی.نوسنت مضبوطیاسره.نیول دبدعت ایجادکولونه بهتردی.(مسنداحمد

مجمع الزوائد ج ٤ ص١٠٥ مشکوه ص ٣١ س١٦) عن غضيف بن حارث دبدعت دنحوست (سپيره والی) دپاره دومره کافی وه.لیکن په طور دشاهد څونور روایتونه واوری.

③ (وَكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ) هربدعت ګمراهی ده(مسلم ج ١ص٢٨٥مشکوه ص٢٧س٩)

④ (وَكُلُّ ضَلَالَةٍ فِيْ النَّارِ) هره ګمراهی دوزخ ته بوتلونکی ده.(نسائی ج ١ ص١٧٩)

**دقرآن اوحدیث په رڼاکښې داهل بدعت مذمت**۞ نبی کریم ﷺ دشرك نه روستوچه څومره دبدعت اواهل بدعت تردیدفرمائیلې دې.شایدچه دبل یوشی ئې دومره تردیدنهٔ وو فرمائیلې.او حقیقت هم دادې څکه چه ددین اصلی شکل دبدعت په وجه بدلیږی.ددین ختمیدلودپاره قرآن دوه اصولی طریقې بیان کړی دی.① کتمان حق.② حق اوباطل یوبل سره ګډوډ کول ددې وجې نه مناسب ده چه دبدعت څهٔ تردیداومذمت(چه تیرشوې دې) او(اوس) داهل بدعت تردیداومذمت بیان کړې شی.چه په هغې کښې به پخپله دبدعت ذکرهم دوباره راشی.

❶ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه الله تعالی نهٔ دبدعتی روژه قبلوی اونه مونځ اونه صدقه اونه حج اونهٔ عمره اونه جهاد اونهٔ څهٔ فرض عبادت قبلوی.بدعتی دغه شان داسلام نه اوځی لکه چه د اغړلو شوُو اوړونه ویښته بهرته راوُځی.(ابن ماجه ص٦، عن حذیفه ﷺ مرفوعا کلیدبهشت ص ٤١)

❷ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه: الله تعالی هربدعتی باندې دتوبې دروازه بنده کړې ده.(مجمع الزوائد ج ١٠\١٨٩ عن انس بن مالک رض مرفوعًا)

❸ سیدالبشر ﷺ اوفرمائیل چه:زما په امت کښې بدعت ښکاره شی اوزما صحابو ته بد رد اووئیلې شی نوپه دغه وخت کښې (ددغه وخت عالم،باندې ضروری ده چه خپل علم ښکاره کړی اوچه کوم سړې داسې نه کوی.(دبدعت خلاف په حرکت کښې نهٔ راځی) نوپه هغه دې دالله تعالی اود فرشتو اوټول مخلوق لعنت وی.(کتاب الاعتصام للشاطبی ج ١\٥٨ عن معاذ رض مرفوعًا)

❹ اوړد حدیث دې دهغې په اخرکښې دی چه دحوض کوثرنه به یوسړې اوشړلې شی.پهٔ دغه وخت به زه اووائم چه اې زما پروردګاره! داخو زما دامت نهٔ دې داولې اوشړلې شو.ارشادبه اوکړې شی.(مَاتَدْرِیْ مَااَحْدَثُوْا بَعْدَكَ) چه تاته پته نشته چه دوی ستانه روستو کومې نوې خبرې په دین کښې ایجادکړی دی.(مسلم ج ١\١٢٦و١٢٧، خداکی باتین ص١٠٢، عن انس بن مالک رض مرفوعًا)

❺ اصحاب البدع کلاب اهل النار حضور ﷺ اوفرمائیل چه بدعتیان دوزخیانو سپی دی.

(جامع صغیرج ١\٧٠ وفتاوی افریقه ص ١٠٤ عن ابواُمامه رض مرفوعًا)

❻ مخکښې تیرشوې دې (مَنْ وَقَّرَصَاحِبَ بِدْعَةٍ، الحدیث نمبر ١٢)

❼ په سورة الفاتحه کښې د(ولاالضالین) نه مراد دیوتفسیرمطابق بدعتیان دی.

**فائده**۞ دبدعت باره کښې چه کوم څهٔ په دې کتاب کښې اولیکلې شول دا ددې کتابونو نچوړدې:(مشکواة ص:٢٧ تا٣٢، ومرقات شرح مشکواة ج ١\٢١٥، ولمعات ج ١\١٠٦، والمنهاج الواضح (راه سنت)

ص:۶۷ تـا۱۱۲، وسـنت وبـدعت ص:۱۱تـا۴۷ وغیـره) د روغ مـزاج والا دپـاره دومـره هـم کـافی ده چـه دبدعت نه بچ شی اواهل بدعت سره یوځائې نه شی اوسنت مضبوط اونیسی.

**ترکیب۞** مـن شرطیه احدث فعـل هوفاعـل فـی جارامرنامضاف مضاف الیـه موصـوف،هذا اسم اشاره صفت،موصوف سره دصفت نـه مجرور.جارمجرورمتعلق پـه فعـل پورې.ماموصوله لیس فعل ناقص هُوَ ئې اسم.منه جارمجرورمتعلق پـه ثابتـاپورې شبه جمله خبر شو.لیس سره دخپـل اسم اوخبرنه جملهٔ فعلیه خبریه صله شوه.موصول سره د صلې نـه مفعول شو.فعـل سره دفاعـل، مفعول او متعلق نه جمله فعلیـه خبره شرط شو.ف جزائیـه هو مبتـداء ردپـه معنـی د مـردود سره خبر.مبتداسره دخبرنه جمله اسمیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جملـه فعلیـه خبریـه شرطیه شوه.

﴿۲۱۷﴾- مَنْ تَحَلّٰى بِمَالَمْ يُعْطَ كَانَ كَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُوْرٍ(ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۲۶۱، س:۱۵، عن جابر رض مرفوعًا]

**ترجمه۞** څوك چه ځان ښائسته سرې هغه څیزسره کوم چه هغهٔ ته نـه دې ورکړې شـوې،نو وی به د دروغ دوه جامې اغوستونکی په شان.

**تشریح او شان ورود۞** یوه ښځه حضورﷺ ته راغله وی وئیـل چه زما یوه بن ده.نوایا زما دپـاره دا جائزده چه زه هغې ته اووایم چه ماتـه خاوندډیرڅیزونـه راکوی.اوپـه حقیقت کښـې ئـې نـه وی راکړی.داجائزده اوکه نهٔ ده جائز؟ په دې باندې حضورﷺ داجمله ارشاد اوفرمائیله.چه دهغې خلاصـه داده.چه جائزنـهٔ ده څوك چه پهٔ داسې شی ځان ښائسـته کړی چه هغـه ده تـه نـه وی ورکړې شوې نودې به دهغه دروغو کپړو اغوستونکی پشان برابرګناه ګاروی.یعنـی د دروغـو ګناه شمارلې شی.شان ورود کښې چه کومه ښځه سائله راغلې وه دهغې دوه ګناهونـه داسې جوړېږی چه یو خوئې دا اووئیـل چه خاوندماتـه راکوی اودویم دادعـوه ئـې اوکړه چه ماسره زیـات محبـت کـوی پـه نـسبت دخـپلې بـن.نـودا دوه دروغ شـول.نـود دوه کپـړو د دروغـو اغوسـتونکی برابرګنـاه ګاربـه وی.د دروغـودوه کپړونـه مـراد① عربوبـه حقیقتـا دوه کپـړې اغوستلې.چه مونږه ممتاز په نظرراځو،او عـزت منـد اوګنړلې شو.نوداهم دهغـوی د دروغـو ګناه وه.② داصرف تـشبیه ورکړې شوې ده د دوه کپړوسـره څکه چه خپـل ځان لـره ښائـسته کونکی لکه چه دوه دروغ اووئیل.یوداچه دخپل ځان صفت ئې داسې بیان کړوچه په ده کښې نهٔ ووُ.دویم داچه دابیان ئې اوکړوچه په دې انعام سره زه خاص یم.(مرقات جلد۶\۱۵۶)

**فائده۞** په اصل حدیث کښې واوهم شته.لیکن مصنفﷺ داحادیثودخلط (ګډون) په وجه پرېښودې دې.

**ترکیب۞** من شرطیه تحلی فعل هو ب جارماموصوله لَمْ یُعطَ فعل هونائب فاعل.فعل سره

دفاعل نه جمله خبریه صله شوه موصول سره دصلې نه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط کان فعل هوفاعل ك جار لابس مضاف ثوبیٔ مضاف الیه مضاف الیه مضاف زور مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مضاف الیه شو.بیامضاف مضاف الیه مجرور دجار جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

(۲۱۸)- مَنْ يَضْمَنْ لِي مَا بَيْنَ لَحْيَيْهِ وَمَا بَيْنَ فَخِذَيْهِ أَضْمَنْ لَهُ الْجَنَّةَ (بخاری)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص: ۴۱۱، س: ۱۰، عن سهل بن سعد رض مرفوعا]

**ترجمه**۞ څوك چه ضمانت راکړی ماته دهغه ځیز کوم چه دهغهٔ د دوو ژامو په مینځ کښې دې اودهغه ځیزکوم چه دهغهٔ ددواړوخپوپه مینځ کښې دې.نوزهٔ ضمانت ورکوم هغهٔ دپاره دجنت

**تشریح**۞ کوم سرې چه دخپل اوشرمګاه(خاص اندام) دحفاظت ضمانت حضورﷺ ته ورکوی نونن هم زمونږ نبی کریمﷺ هغه ته دجنت ضمانت ورکولوته تیاردې بلکه ترقیامته پورې هم څوك چه دژبې اوشرمګاه دګناه نه کولوضمانت ورکړی نوحضورﷺ هغه ته دجنت ورکولوضمانت ته تیاردې.ددې حدیث لوستلواو اوریدلونه روستوهم چه کوم سرې دژبې اوشرمګاه دګناه نه منع شی نوهغه هم دحضورﷺ په ضمانت کښې شاملیدلې شی.

**فائده**۞ دزادالطالبین په بعضونسخوکښې درجلیه په ځائې فَخِذَيْهِ ذکرشوې دې دبخاری شریف په الفاظوکښې دالفظ نشته.ددې وجې نه رجلیه پکاردې.ځکه چه دلته دبخاری شریف روایت بیانول مقصوددی.

**ترکیب**۞ من شرطیه یَضْمَنْ فعل هو فاعل لی جارمجرورمتعلق په فعل پورې.ماموصوله بین مضاف لحییهِ مضاف الیه مضاف.بیامضاف مضاف الیه مفعول فیه شو د ثَبَتَ محذوف دپاره.ثبت فعل هو فاعل اومفعول فیه سره صله دموصول.موصول سره دصلې نه معطوف علیه.واوعاطفه ماموصوله بین رجلیه مضاف الیه سره دمضاف نه بیامضاف سره دمضاف الیه نه مفعول فیه دثبت شوه اوصله دموصول شوه.صله دموصول سره معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه شرط.اضمن فعل انافاعل له جارمجرورمتعلق په فعل پورې،اَلْجَنَّـةَ مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

(۲۱۹)- مَنْ تَمَسَّكَ بِسُنَّتِيْ عِنْدَ فَسَادِ أُمَّتِيْ فَلَهُ أَجْرُ مِائَةِ شَهِيْدٍ

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص: ۳۰، س: ۲۴، عن ابی هریرة رض مرفوعا]

**ترجمه**۞ چاچه مضبوطیا سره اونیولو زما سنت، زما د اُمت د فساد په وخت،نوهغهٔ دپاره به

د سلو شهیدانو ثواب وی.

**تشریح**۞ داحدیث هم دبدعت تردید کوی.حضورﷺاوفرمائیل:چه چا زما سنت مضبوط اونیول زما دامت دفتنې اوفسادپه زمانه کښې یعنی دبدعت ښکاره کیدلوپه وخت،نوده دپاره به دالله تعالی سره دشهادت احکام جاری کولې شی.اوپه آخرت کښې به دسلوشهیدانو ثواب ملاویږی.په دې کښې هیڅ شك نشته چه نن (ص ١٤١٤هـ مطابق دسن١٩٩٣ء) کښې دبدعت غوندې فسادات ښکاره شوی دی.لهذاپه دې زمانه کښې دمسواك پشان سنت مضبوطیا سره نیولوکښې هم دادرجه ملاویدې شی.او ږیرې پریښودلوسره اود ږیرې خلال کولوسره په اودس کښې اوهمیشه دښې طرفه شروع.کولوسره هم اوبیتُ الخلاء(تهی) ته تللوراتللوکښې دعالوستلووغیره وغیره سره هم دادرجه ملاویدې شی.

**ترکیب**۞ من شرطیه تمسك فعل هو فاعل ب جارسنتی مضاف مضاف الیه مجرور.جار مجرور متعلق په فعل پورې عند مضاف فسادامتی درې مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول فیه.فعل سره دفاعل متعلق اومفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه له جارمجرورمتعلق په ثابت پورې خبرمقدم اجرمائة شهید داټول مضاف الیه مبتداء مؤخر.خبرمقدم سره دمبتداء مؤخرنه جمله اسمیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۲۰﴾- مَنْ شَهِدَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللّٰهِ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ النَّارَ (مسلم)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۱۵، س:۷، عن عبادة بن صامت رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ چاچه گواهی ورکړه چه نشته دې معبود مگر یوالله او داچه محمد ﷺ دالله رسول دې.نوپه هغهٔ به حرام کړی الله تعالی جهنم.

**تشریح**۞ چاچه په اخلاص سره دا گواهی ورکړه.په ده باندې به الله تعالی دجهنم اورحرام کړی. ددینه روستوپه مشکوة کښې دحضرت عثمانؓ نه روایت دې چه حضورﷺ اوفرمائیل چه څوك په داسې حالت کښې مړشی چه دهغه یقین وی چه دالله تعالی نه سواڅوك معبودنشته نوجنت ته به یوځل ضرورداخلیږی.اودمشکوة په (ص۱۵ س۲۶) باندې داروایت هم دې.معاذؓ فرمائی.رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه دجنت چابی (هرچا دپاره) داگواهی کول وی چه د الله تعالی نه سوابل څوك معبودنشته.

**ترکیب**۞من شرطیه شهدفعل هو فاعل ان مخففه من المثقله ه ضمیرشان محذوف ددې اسم لائې نفی جنس اله موصوف الاپه معنی دغیر،مضاف لفظ الله مضاف الیه،مضاف سره د مضاف الیه نه صفت دموصوف.موصوف سره دصفت نه اسم دلا.موجودمحذوف خبردلا. لاسره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبر.معطوف علیه.واو عاطفه ان حرف مشبه بالفعل محمدا

اسم دان رسول الله مضاف الیه خبردان.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله معطوفه شرط شوه.حرم فعل لفظ الله فاعل، علیه جارمجرورمتعلق په فعل پورې النار مفعول به فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۲۱﴾- مَنْ اَحَبَّ لِلّٰهِ وَاَبْغَضَ لِلّٰهِ وَاَعْطٰى لِلّٰهِ وَمَنَعَ لِلّٰهِ فَقَدِ اسْتَكْمَلَ الْاِيْمَانَ (ابوداود)[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۱۴، س:۲۶، عن ابی امامی رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه محبت اوکړو دالله دپاره،اوبُغض ئې اوکړو دالله دپاره،او ورکړه ئې اوکړه دالله دپاره، او منع ئې کړو دالله دپاره،نوهغهٔ ایمان مکمل کړو.

**تشریح** حضور ﷺ اوفرمائیل چه کوم کس دیونیك انسان سره دالله دپاره محبت اوکړو او(بد انسان سره) بغض ئې هم دالله تعالی دپاره اوکړو.اوچاته ئې څهٔ ورکړل دالله تعالی دپاره (دثواب دپاره اودالله تعالی درضادپاره) اوچاچه منع اوکړه(دڅه خراب کاریاخراب خبرې نه دالله تعالی درضادپاره نوداسې سړې چه کله پهٔ دې څلوروارو کارونوکښې خاص دالله تعالی دپاره نیت اوکړی.داڅلورکارونه اوکړی نوباقی کارونوکښې به ضرور دالله درضا نیت کوی نو واورئ! چه داسې سړی خپل ایمان اودین مکمل کړې دې.

**ترکیب** من شرطیه احب فعل هو فاعل لله جارمجرورمتعلق په فعل پورې فعل سره دفاعل اومتعلق نه معطوف علیه.واوعاطفه اَبْغَضَ لِلّٰهِ هم پهٔ دې طریقه سره معطوف اول.واعطی لله معطوف ثانی ومنع لله معطوف ثالث معطوف علیه دخپل دریوارومعطوفاتوسره شرط.ف جزائیه قداستکمل فعل هو فاعل الایمان مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزانه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۲۲﴾- مَنْ اَنْظَرَ مُعْسِرًا اَوْ وَضَعَ عَنْهُ اَظَلَّهُ اللّٰهُ فِيْ ظِلِّهٖ (رواه مسلم)

[تخریج:۔ مشکواۃ: ص:۲۵۱، س:۲۰، عن ابی الیسر رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه مهلت ورکړو تنګ دست (غریب) ته،یائې معاف کړو دهغهٔ نه (دهغهٔ قرضه) نو الله تعالی به هغه په خپل سوری کښې اوساتی.

**تشریح** چاچه دقرضې اداکولوپه نیت سره قرضه واخستله.اوس په ورکولوکښې دتنګدستئ په وجه روسته والې کیږی.نوداسې مجبورانسان ته چه چا نورمهلت ورکړویائې دهغهٔ غریبئ (تنګدستئ) ته اوکتل قرضه ئې ورته معاف کړه نوداسې سړی ته به الله تعالی دقیامت په ورځ دخپل عرش دسوری لاندې ځائې ورکړی.یابه ئې دقیامت په ورځ دګرمئ نه بچ کړی.

**ترکیب**۞ من شرطیه انظرفعل هو فاعل معسرا مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه.اوعاطفه وضع فعل هو فاعل عنه جارمجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه شرط.اظل فعل،ه مفعول به لفظ الله.فاعل فی جار،ظله مضاف مضاف الیه مجرور.جار سره مجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۲۳﴾- مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ (بخاری شریف)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۳۲، س:۱٦، عن عبدالله بن عمرو رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ چاچه دروغ اووئیل په ما باندې قصد سره،پس پکارده چه هغه جوړکړی دخپل ناستې ځائې دجهنم نه.

**تشریح**۞ کوم سړی چه قصدا دروغ جوړکړل یعنی څۀ داسې خبره ئې نبی کریم ﷺ ته منسوب کړه چه هغه نبی کریم ﷺ نۀ وی فرمائیلی.نوداسې سړې په نبی کریم ﷺ باندې دروغ تړی.لهذاهغه له پکاردی چه خپله ټکاوئړه دجنت په ځائې جهنم کښې اوګنړی.

**د حدیث دوضع (ځان نه جوړولو) مسئله**۞ یعنی دخپل ځان نه حدیث جوړول دجمهوروپه نزد ناجائز اوحرام دی نه چه کفردې.کماقال جوینی اونه داچه ناجائزدی لکه بعضې صوفیان ئې دترغیب اوترهیب دپاره جائز وائی.دټولو امامانو او ټولو فقهاؤپه نزد وضع دحدیث حرام ده.که زیات تفصیل غواړئ نو (الخیرالجاری ج۱ص۹٦) باندې اوګورئ.

**فائده**۞ دلته هم په اصل حدیث کښې واودې.لیکن مصنف په زادالطالبین کښې دحدیثونو دخلط کیدلونه دبچ کیدودپاره پرینښوده.

**ترکیب**۞ من شرطیه کذب فعل هوذوالحال متعمداحال.ذوالحال سره دحال نه فاعل.علی جار مجرور متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه لِيَتَبَوَّأْ فعل (امرغائب) هو فاعل مقعده مضاف مضاف الیه مفعول به من النارجار مجرورمتعلق شوفعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه جزاشوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۲٤﴾- مَنْ خَرَجَ فِيْ طَلَبِ الْعِلْمِ فَهُوَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ حَتّٰى يَرْجِعَ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۳٤، س:۱۹، عن انس رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ څوک چه اووتلو دعلم په تلاش کښې،نوهغه دالله تعالی په لار کښې دې.تردې چه هغه واپس راشی.

**تشریح** کوم سړې چه د علم دین تالاش کولو دپاره اوځی هغه ته د مجاهد پشان ثواب ملاویږی.ځنګه چه مجاهد کله لاړشی نوهغه ته دواپس کیدوپورې دجهاد ثواب ملاویږی.دغه شان طالب علم چه دکومې پورې واپس کورته نهٔ وی راغلې ترهغه وختـه پورې دعلم سره دجهاد ثواب هم ورتـه ملاویږی ځکه چه طالب علم دشیطان ذلیل کولوکښې مشغول دې اوخپل ځان تکلیف کښې اچوی ددې وجې نه طالب علم هم مجاهددې.

**ترکیب** من شرطیه خرج فعل هو فاعل فی جار طلب العلم مضاف مضاف الیه مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې فعل سره دفاعل اومتعلق سره جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه هُوَ مبتداء فی جار،سبیل الله مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق اول شو دثابت محذوف دپاره.حتی جار یرجع فعل هو فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدرسره مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق ثانی په ثابت پورې.ثابت اسم فاعل سره دخپل فاعل (هو) ضمیراومتعلقینونه شبه جمله خبرشو.مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه جزاء شرط.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۲۵﴾- مَنْ اَذَّنَ سَبْعَ سِنِيْنَ مُحْتَسِبًا كُتِبَ لَهٗ بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ (ترمذی)

[تخریج:_ مشکواة: ص:٦٥، س:١٦، عن ابن عباس رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه اذان اووئیلې اوۀ کاله د ثواب په نیت سره،اولیکلې شو هغهٔ دپاره دجهنم نه خلاصې.

**تشریح** چه کوم سړې اوه کاله صرف دثواب حاصلولوپه نیت سره آذان اوکړونوهغه دجهنم نه بری کړې شو اودهغه براءت باقاعده لیکلې شی.دمؤذن دافضیلت په اوۀ کاله کښې ملاویږی. دمشکوة (ص۶۶ س۱۶) باندې د ابن عمر رض مرفوعًا داحدیث هم دې.دمؤذن په فضیلت کښې چه حضور ﷺ اوفرمائیل چه کوم سړی دولس کاله آذان اوکړو دهغه دپاره جنت ثابت شو اودهغه دهرې ورځې آذان کولوبدله کښې شپیته نیکۍ لیکلې شی.اودهرې ورځې داقامت بدله کښې دیرش نیکۍ اولیکلې شوې.

**ترکیب** من شرطیه اذن فعل هو ذوالحال محتسبًا حال.ذوالحال سره دحال نه فاعل سبع سنین مضاف مضاف الیه سره مفعول فیه.فعل سره دفاعل اومفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.کتب فعل مجهول له جارمجرورمتعلق شوپه فعل پورې.براءة موصوف من النارجار مجرورمتعلق په ثابتة پورې صفت موصوف سره دصفت نه نائب فاعل.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۲۶﴾- مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ كُتِبَ مُنَافِقاً فِيْ كِتَابٍ لَا يُمْحٰى وَلَا يُبَدَّلُ (رواه الشافعي)

[تخریج:_ مشکواة: ص: ۱۲۱، س: ۲۵، عن ابن عباس رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه پرېښوده جُمعه بغیر د ضرورت نه، هغه منافق اولیکلې شو په داسې کتاب کښې چه هغه نه شي وُرانولې اونه بدلیدلې شي.

**تشریح** په مشکوة کښې دې حدیث نه روستوداحدیث هم دې کوم چه ددې وضاحت هم دې.رسول الله اوفرمائیل څوك چه په اللهﷻ اودقیامت په ورځ ایمان لری.نوپه هغه باندې لازم دی چه هغه دجمعې په ورځ ضروردجمعې مونځ اداکړی.لیکن پنځه کسان دینه مستثنی دی.① بیمار② مسافر③ ښځه④ نابالغ⑤ غلام. معلومه شوه چه بغیردسخت ضرورت نه اوشرعی ضرورت نه دجمعې مونځ پرېښودل بالکل کفرته نزدې دی.عملی طورخومنافق لیکلې شی.په داسې کتاب کښې چه هغه نهٔ ختمیدلې شی اونه بدلیدلې شی یعنی (لوح محفوظ) کښې.

**ترکیب** من شرطیه ترك فعل هو فاعل الجمعة مفعول به من جارغیرضرورة مضاف الیه مجرور.جارسره مجرورنه متعلق شو په فعل پورې.فعل سره دفاعل،مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.کتب فعل هو ممیز منافقا تمیز.ممیزسره دتمیزنه نائب فاعل.فی جارکتاب موصوف لایمحی فعل هو نائب فاعل.فعل سره دنائب فاعل جمله فعلیه خبریه معطوف علیه واو عاطفه لایبدل فعل هو نائب فاعل.فعل سره دنائب فاعل نه جمله فعلیه خبریه معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه صفت.موصوف سره دصفت نه مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۲۷﴾- مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهِ نَفْسَهُ مَاتَ عَلٰى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ (مسلم)

[تخریج:_ مشکواة: ص: ۲۳۱، س: ۱۵، عن ابی‌هریرة رض مرفوعًا]

**ترجمه** څوك چه مړشوپه داسې حال کښې چه هغهٔ جهاد اونه کړو،اونه دهغهٔ په نفس کښې دا خبره پیدا شوه.نو مړشو د نفاق په یو شعبه باندې.

**تشریح** کوم سړې چه په داسې حال کښې مړشو چه هغه جهاد اونه کړویاکم ازکم دجهاد باره کښې ئې په زړه کښې نه دجهادجذبه نه بالفعل وی نه بالقوه نودده مرګ به دنفاق دشعبونه په یوه شعبه کښې وی.ځکه چه جهاد داسلام یورکن دې دمونځ،روژې،زکوة،حج پشان.نوچا چه جهاد اونه کړویائې ددې سوچ هم اونه کړو،نودده ایمان ناقص دې.ددې وجې نه عملاً دمنافقانو پشان دې.داحدیث دجهادپه اهمیت باندې دلالت کونکې دې.

**ترکیب**۞ من شرطیه مات فعل هوذوالحال واو حالیه لم یغز فعل هو فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه واو عاطفه لم یحدث فعل هو فاعل به جارمجرورمتعلق په فعل پورې نفسه مضاف الیه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه.معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه حال.ذوالحال سره دحال نه فاعل. فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط.مات فعل علی جارشعبة موصوف من نفاق جار مجرورمتعلق په ثابتة پورې صفت شو.موصوف سره دصفت نه مجروردجار.جارسره دمجرور نه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۲۸﴾- مَنْ لَمْ يَدَعْ قَوْلَ الزُّورِ وَالْعَمَلَ بِهِ فَلَيْسَ لِلّٰهِ حَاجَةٌ فِي أَنْ يَدَعَ طَعَامَهُ وَشَرَابَهُ

(بخاری)[تخریج:_ مشکواۃ: ص:۱۷۶، س:۷، عن ابی ہریرۃؓ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ چاچه پرې نښودو دروغ خبره،اوپه هغې باندې عمل لره، نونشته دالله دپاره څه حاجت په دې خبره کښې،چه هغه پرېږدي خپل خوراك اوڅكاك لره.

**تشریح**۞ کوم سړې چه روژه اونیسي اود دروغو اوغلط کارنه ځان نه ساتي.نودهغه دروژې هیڅ ثواب نشته اګرچه قضاترې ساقطیږي.لیکن مقصداصلي فوت کیږي.اوهغه ثواب دې. اوالله تعالی راضي کول اوراضي ساتل.الله تعالی ته هیڅ حاجت نشته چه تاسوخوراك څكاك پرېږدئ.یعنې دخوراك څكاك پرېښودل.اودلوړې مقصدهغه ثواب دې چه په ناکاره خبرو پرېښودلو او ناکاره کارونونه ځان ساتلوسره ملاویږي.ددې مضمون حدیث نمبر ٦٤ کښې مخکښې تیرشوې دې.

**ترکیب**۞ من شرطیه لم یدع فعل قول الزورمضاف مضاف الیه معطوف علیه واو عاطفه العمل مصدر ذوالحال به جارمجرورمتعلق په ثابتا پورې حال،ذوالحال سره دحال نه شبه جمله معطوف، معطوف علیه سره دمعطوف نه مفعول به،فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه لیس فعل ناقص لله جارمجرورمتعلق په ثابتة پورې خبرمقدم حاجة موصوف فی جاران مصدریه یدع فعل هو فاعل طعامه مضاف مضاف الیه معطوف علیه واوعاطفه شرابه مضاف مضاف الیه معطوف علیه.معطوف علیه سره دمعطوف نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدر سره مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتة پورې شبه جمله صفت.موصوف سره دصفت نه اسم دلیس.لیس سره داسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿٢٢٩﴾- مَنْ لَبِسَ ثَوْبَ شُهْرَةٍ فِي الدُّنْيَا أَلْبَسَهُ اللّٰهُ ثَوْبَ مُذِلَّةٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

((رواه احمد وغيره) [تخريج:_ مشكواة: ص:٣٧٥، س:١٤، عن ابن عمر رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه واغوستله د شهرت جامه په دنيا كښې،نو ورته به واغوستوى الله تعالى د ذلت جامې دقيامت په ورځ.

**تشريح** كوم سړى چه د تكبريا د فخريه نيت سره ياپه دې نيت سره جامه واغوستله چه خلق دې سيداوګنړى يائې دې دپاره واغوستله چه خلق وربانديې دعالم يافقيه ګمان اوكړى.حال دادې چه پخپله جاهل دې.نوداسې سړى ته به الله تعالى دقيامت په ورځ دذليل كولوجامه واغوندوى.اسلام دښوجاموا‌غوستلونه منع نه ده كړې بلكه په خراب نيت سره دكپړو اغوستلونه ئې منع كړې ده.كه چرې يوسړې غريب دې اوښه جامه اغوندى نودهغه دپاره ذلت نه بچ كيدلونيت سره جائزده.اوچاته چه الله تعالى مال وركړې دې دهغه دپاره دامناسب ده چه دښه نه ښهٔ جامې واغوندى اودخدائې پاك شكراداكړى.

**تركيب** من شرطيه لبس فعل هو فاعل ثوب شهرة مضاف مضاف اليه مفعول به فى الدنيا جارمجرور متعلق فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعليه خبريه شرط شو.البس فعل،ه مفعول به اول،لفظ الله فاعل ثوب مذلة مضاف مضاف اليه مفعول به ثانى.يوم اليامة مضاف مضاف اليه مفعول فيه.فعل سره دفاعل ،مفعول به اومفعول فيه نه جمله فعليه خبريه جزاء شوه.شرط سره دجزانه جمله فعليه خبريه شرطيه شوه.

﴿٢٣٠﴾- مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ لِيُجَارِيَ بِهِ الْعُلَمَاءَ أَوْ لِيُمَارِيَ بِهِ السُّفَهَاءَ أَوْ يَصْرِفَ بِهِ وُجُوْهَ النَّاسِ إِلَيْهِ أَدْخَلَهُ اللّٰهُ النَّارَ (ترمذى)

[تخريج:_ مشكواة: ص:٣٤، س:٢٥، عن كعب بن مالك رض مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه علم ددې دپاره حاصل كړوچه مقابله اوكړى په هغې سره دعالمانو، يا جهګړه اوكړى دهغې په ذريعه جاهلانو سره،يا مائل كړى دخلقو مخونه خان طرف ته،نو داخل به كړى هغهٔ لره الله تعالى په جهنم كښې.

**تشريح** د لِيُجَارِيَ دوه معانې صحيح دى ① مقابله ② فخر.اودليمارى معنى جهګړه ده. العلماء نه مرادعالمان دى.اوسفهاء جمع دسفيه ده.ددې معنى ده دكم عقل والا.دلته مراد دسفهاء نه جاهلان دى اوديصرف معنى ده.چه مائل كړى.دالناس نه مراد① عوام ② طلاب. دخلقو مخونومائل كولونه مقصددادې چه ① مال ملاوشى او② تعظيم اوكړې شى دحديث مطلب داشو چه كوم سړې علم دالله تعالى درضاپه ځائې دعلماؤسره مقابلې كولودپاره ياد جاهلانوسره دجګړې كولودپاره يادعوامو ياطالبانولره خپل ځان ته مائل كولودپاره( چه مال

ملاوشي یائې تعظیم اوکړې شي.) حاصل کړی.نوددې علم هیڅ فائده نشته داسې عالم به الله تعالی په جهنم کښې اوغورزوی.(مرقات ج۱ص۲۸۶)

**ترکیب**۞ من شرطیه طلب فعل هو فاعل العلم مفعول به لام کئ لیجاری فعل هوفاعل به جار مجرورمتعلق په فعل پورې العلماء مفعول به.فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه.واوعاطفه ل لام کئ یماریَ فعل به جارمجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله خبریه معطوف اول.اوعاطفه یصرف فعل هو فاعل وجوه الناس مضاف الیه مفعول به الیه جارمجرورمتعلق په فعل پورې. فعل سره دخپل فاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه معطوف ثانی.معطوف علیه سره ددواړومعطوفینونه شرط ادخل فعل ه مفعول به لفظ الله فاعل النار مفعول فیه.فعل سره دفاعل مفعول به اومفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۳۱﴾- مَنْ تَعَلَّمَ عِلْمًا مِمَّا يُبْتَغٰى بِهٖ وَجْهُ اللّٰهِ لَا يَتَعَلَّمُهٗ اِلَّا لِيُصِيْبَ بِهٖ عَرَضًا مِنَ الدُّنْيَا لَمْ يَجِدْ عَرْفَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

(رواه احمد وابوداؤد)[تخريج:مشكواة:ص:٣٤، س:٢٦،عن ابي هريرة؄ مرفوعًا]

**ترجمه**۞ چاچه علم زده کړو دهغې علمونو نه،کوم چه حاصلولې شی دالله تعالی د رضا دپاره، نه ئې زده کوی هغه مګردې دپاره چه حاصل کړی حصه په دنیاکښې،نوبیا به نه مومی هغه دقیامت په ورځ خوشبو دجنت.

**تشریح**۞ مطلب دادې چه څوك علم دین دالله تعالی درضاپه ځائې ددنیاګټلودپاره ذریعه جوړه وی نوداسې سړې به دجنت خوشبوئی قدرې هم بوئی نکړی.یعنی دده اودجنت مینځ کښې به فاصله راوستلې شی.معلومه شوه چه په علم دین کښې هم دچانیت صحیح وی. یعنی دالله تعالی درضادپاره وی نوهغه علم به په کار راشی اوپه هغې به فضیلت بیامومی. داوعیدهغه وخت دې چه کله دمال اودولت حاصلولوپه نیت علم زده کوی.ګنی که څوك علم هم حاصلوی اومال هم ګټی نوهغه په دې وعید کښې نهٔ راځی.مګرپه دې دواړوکښې فرق دې.یو دنیادې دپاره حاصلوی چه دآخرت اعمال په تسلئ سره اوکړم.اوبل دآخرت عمل کوی چه دنیا ملاوشی.بهرحال دنیاتابع اوګرځیدله اودین متبوع.اواصل مقصود اوګرځیدلو.نوپه دې کښې هیڅ حرج (تنګی) نشته.ددې په عکس کښې ګناه ده.عَرَضْ په سکون دَ راء سره هرقسم مال ته وئیلې شی.سوادَ سرواوسپینو زرو نه.اوپه فتحې ددواړو سره عام دې.چه په دې کښې سره زر اوسپین زرهم شامل دی.(مرقات ج۱ص۲۸۷)

**ترکیب** من شرطیه تعلم فعل هو ذوالحال لایتعلم فعل هو فاعل ه مفعول به الا حرف استثناء لغول تعلیلیه جار.یصیب فعل هو فاعل به جارمجرورمتعلق په فعل پورې.عرضًا موصوف من الدنیاجارمجرورمتعلق په ثابتًا پورې صفت شو.موصوف سره دصفت نه مفعول به.فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدرسره مجرور دجار.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې لایتعلم فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه حال.ذوالحال سره دحال نه فاعل علمًا موصوف من جارماموصوله یُبتغی فعل مجهول به جارمجرورمتعلق په فعل پورې.وجه الله مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتاپورې.شبه جمله صفت دموصوف شو.موصوف سره دصفت نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.لم یجد فعل هو فاعل عرف الجنة مضاف مضاف الیه مفعول به یوم القیمة مضاف مضاف الیه مفعول فیه.فعل سره دفاعل مفعول به اومفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۳۲﴾- مَنْ أَتٰی عَرَّافًا فَسَأَلَهُ عَنْ شَیْءٍ لَمْ یُقْبَلْ لَهُ صَلَاةٌ أَرْبَعِینَ لَیْلَةً

(مسلم)[تخریج:_ مشکواة: ص:۳۹۳، س:۵، عن حفصه رض مرفوعًا]

**ترجمه** څوك چې، راغې یو نجومی ته،نو دهغهٔ نه ئې څه تپوس اوکړو دڅهٔ څیز باره کښې. نونه به شی قبلولې دهغهٔ د څلویښتو شپو مونځونه:

**تشریح** دعراف معنی کاهن نجومی یعنی دستوروپه ذریعه سره معلومونکی دعراف یعنی نجومی حقیقت صرف دومره وی چه دجناتوسره دهغه دوستی وی اوبعضې ضرر رسونکی پیریان د یوبل دپاسه اوخیجی.آسمان ته اورسی الله تعالی چه کومې خبرې فرشتوته د راتلونکی وخت باره کښې ښائی.او بیا فرشتې خپل مینځ کښې دهغې ذکرکوی) ددوی کوشش داوی چه هغه خبرې واوری.دهغه خبرونه چه یوه خبره واوری نوفورا ئې لاندینوته اوښائی.بیاهغه نجومیانوته رسی اوپه دغه طریقه دنجومیانو کا.چلیږی په سلوکښې د نجومیانو یوه خبریه ربښتیاکیږی.د ستوروپه ذریعه اندازه لګوی.بهرحال چه څوك داطریقه صحیح او ربښتیاګڼری.دوی ته چه څوك دتپوس دپاره ورځی نوهغهٔ تهٔ دڅلویښت ورځودمونځ یوه زره ثواب هم نهٔ ملاویږی.اګرچه فرض دذمې نه ختمیږی.په مرقات کښې دویم روایت په حواله دطبرانی داسې دې چه څوك کاهن (نجومی) ته راغې.اودهغه نه ئې تپوس اوکړو نو ترڅلویښتو ورځوپورې دهغه نه دتوبې دروازه بنده کړې شی.که چرې تلونکې لاړواودکاهن دخبرې تصدیق ئې اوکړونوهغه کفراوکړو.بهرحال نجومی ته تلل یادهغه نه څهٔ تپوس کول حرام دی.لیکن په یوشرط سره هغه داچه دهغه دخبرې تصدیق ئې هم اوکړوګنی نوکه صرف

په هغهٔ پورې دټوقو مسخروکولودپاره یادروغجن ګرځولودپاره لاړونوپه دې کښې هیڅ ګناه نشته.(مرقات جلد۹\۱۵)

**ترکیب** من شرطیه اتی فعل هو فاعل عرافًا مفعول به ټول یوځائې سره جمله فعلیه خبریه معطوف علیه.ف عاطفه سئل فعل هو فاعل ه مفعول به عن شئ جارمجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف،معطوف علیه سره دمعطوف نه شرط.لم یقل فعل مجهول.له جارمجرور متعلق شوپه فعل پورې.صلواة مضاف.اربعین ممیز.لیلةً تمیز.دواړه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه نائب فاعل. فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزانه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۳۲﴾- مَنِ اسْتَعَاذَ مِنْكُمْ بِاللّٰهِ فَأَعِيذُوهُ وَمَنْ سَأَلَ بِاللّٰهِ فَأَعْطُوهُ وَمَنْ دَعَاكُمْ فَأَجِيبُوهُ وَمَنْ صَنَعَ إِلَيْكُمْ مَعْرُوفًا فَكَافِئُوهُ فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا مَا تُكَافِئُوهُ فَادْعُوا لَهُ حَتّٰى تُرَوْا أَنْ قَدْ كَافَأْتُمُوهُ (احمد)

[تخریج:_ مشکواة: ص:۱۷۱، س:۲۵، عن ابن عمرؓ مرفوعًا]

**ترجمه** څوك چه پناه اوغواړی ستاسونه دالله په واسطې سره،نو تاسوهغهٔ ته پناه ورکړئ. اوڅوك چه اوغواړی دالله تعالی په واسطې سره،نو تاسوهغهٔ ته ورکړئ.اوڅوك چه تاسوته دعوت درکړی نوقبول کړئ هغه.اوڅوك چه تاسوسره نیکی اوکړی.نوتاسودهغې بدله ورکړئ پس که تاسو بیانه مومئ هغه څیز چه په هغې سره تاسو دهغې بدله ورکړئ.نو تاسوهغهٔ دپاره دعا کوئ.ترديې چه تاسو پوهه شئ چه تاسو بدله ورکړې ده.

**تشریح** په دې حدیث کښې څلورخبرې دی.① کوم سړې چه دالله په واسطه سره پناه اوغواړی نو تاسوهغهٔ ته پناه ورکړئ دالله تعالی دنوم عزت اوکړئ.② دالله ﷻ په نوم چه درنه څهٔ اوغواړی نودالله تعالی دنوم عظمت اوپه خلقوباندې دشفقت خیال اوساتئ هغه ته څهٔ ورکړئ (په دې شرط چه دهغه کره دیوې ورځې اوشپې دخوراك څښاك سامان موجودنهٔ وی.③ څوك چه تاسوته دعوت درکړی (نوکه شرعًا څه عذرنه وی) تاسوهغه قبول کړئ ④ څوك چه تاسو سره احسان اوکړی(قولاً یافعلاً) نوتاسوهم هغه ته داحسان بدلهٔ ورکړئ یعنی څهٔ چه تاسوسره احسان اوکړی (قولاًیافعلاً) نوتاسوهم هغه ته داحسان بدله ورکړئ یعنی څهٔ مال ورکړئ کهٔ چرې دبدلې ورکولوڅهٔ څیز نهٔ وی نوتاسوهغهٔ ته دعاکوئ ترهغې چه تاسوته پته اولګی چه تاسودهغه حق اداکړې دې.(مرقات ج٤ص۲۲۳)

**ترکیب** من شرطیه استعاذفعل هو فاعل منکم جار مجرورمتعلق اول شو دفعل.بالله جار مجرور متعلق ثانی.فعل سره دفاعل اومتعلقَینو نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه اعیذوا فعل فاعل،ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه انشائیه جزاء

شوه.شرط سره دجزانه معطوف علیه.واو عاطفه من شرطیه سئل فعل هو فاعل بالله جار مجرور متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه.اعطوا فعل فاعل.ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه انشائیه جزاء.شرط سره دجزاء نه معطوف اول واو عاطفه من شرطیه دعافعل هو فاعل کم مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائه اجیبوا فعل فاعل.ه مفعول به فعل سره دفاعل مفعول به نه جمله فعلیه انشائیه جزائیه.شرط سره دجزاء نه معطوف ثانی.واو عاطفه من شرطیه صَنَعَ فعل هو فاعل الیکم جارمجرورمتعلق په فعل پورې معروفًا مفعول به.فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه کافئوا فعل فاعل.ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه انشائیه جزاء. شرط سره دجزانه معطوف ثالث ف عاطفه ان حرف شرط لم تجدوا فعل ماموصوله تکافئوا فعل فاعل ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه صله شوه.موصول سره دصلې نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه ادعوافعل فاعل له جار مجرورمتعلق اول دفعل.حتی جاره تروا فعل فاعل ان مخففه من المثقله کم محذوف دده اسم قدکافئتموا فعل فاعل ه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه خبرشو.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه قائم مقام دمفعولَینو شوه.تَروا سره دخپل فاعل اومفعولینو نه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدر مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق ثانی شوډ اَدعُوا.فعل سره دفاعل اومتعلقینو نه جمله فعلیه انشائیه جزاء.شرط سره دجزاءنه معطوف رابع.معطوف علیه سره دمعطوفاتو اربعه نه جمله فعلیه خبریه شرطیه معطوفه شوه.

﴿۲۳٤﴾- مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ وَذَٰلِكَ أَضْعَفُ الْإِيمَانِ (مسلم)

[تخریج:_ مشکواۃ: ص:٤٣٦، س:٦، عن ابی سعیدالخدری رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ څوك چه اووینی له ستاسونه بدی.نوهغهٔ له پکاردی چه بدل کړی.هغې لره په خپل لاس سره.پس که چرې ددې طاقت ئې نه وی.نوخپلې ژبې سره.پس که ددې ئې هم طاقت نه وی.نوپه خپل زړهٔ سره.اودا دیولونه کمزورې ایمان دې.

**تشریح**۞ ددې حدیث مخاطب ترقیامته پورې مسلمانان دی.اګرچه دمِنکُم خطاب صحابه کراموته دې.لیکن تبعًا ټولوته شامل دې.په دې حدیث کښې داستطاعت دترتیب ذکردې. دکوم سړی چه دګناه نه دبندولو طاقت وی.نوهغهٔ له دجوابی کاروایئ دپاره ددې ترتیب لحاظ ساتل پکاردی.چه دګناه کارکونکې اول په لاس سره منع کړی بیاپه منع کولو کښې دا

تفصیل دي چه اول ئي په نرمۍ سره پوهه کړي. که نرمۍ سره وئیلو باندې گناه پریږدي.نود سختۍ اوغصې نه کاراخستل جائزنه دي. که چرې په نرمۍ سره کاراونشو.نوبیادې لاس استعمال کړي.په دې کښې هم دغه تفصیل دې چه په قدرد ضرورت لاس استعمال کړي.مثلا یوځل سره کارکیږي نودویم ځل وهل جائزنهٔ دي.غرض دادې چه هرې طریقې سره ممکن وي نوگناه منع کول دي.داخبره دمسلمان دشان مناسب نهٔ ده چه گناه وینی اوصبرکوی. که چرې گناه ختمولوکښې اولرې کولوکښې ئې لږشان غفلت هم اوکړونودحدیث په وجه مسلمان کامل نهٔ دې که چرې ژبې یالاس استعمالولوسره دځه سختې فتنې یادجنگ جگړې خطره وی نوبیا ژبه یالاس استعمالول جائزنهٔ دي.صرف په زړه کښې بدګڼل پکاردي.چه څهٔ ایمان خوباقي وي.اګرچه دټولونه کمزورې ایمان به وي(رساله مفتی رشیداحمدصاحب مدظلّهم وحاشیه مشکواة نمبر ٤)

**ترکیب** من شرطیه رای فعل هو فاعل منکم جارمجرورمتعلق په فعل پورې منکراً مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه لیغیرفعل امر هُو فاعل،ه مفعول به ب جار یده مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه جزاء اول شوه.ف جزائیه ان حرف شرط لم یستطع فعل هو فاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط شوه.ف جزائیه ب حرف جار ،لسانه مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شولیغیر پورې.فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه جزاء ثانی ف جزائیه ان شرطیه لم یستطع فعل هو فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه ب جارقلبه مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په لیغیر پورې.فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه معطوف علیه.واو عاطفه ذالك مبتداء اضعف الایمان مضاف مضاف الیه خبر. مبتداء سره دخبرنه جمله اسمیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله معطوفه جزاء ثالث شوه.شرط سره دټولوجزاګانونه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۳۵﴾- مَنْ أَخَذَ أَمْوَالَ النَّاسِ يُرِيدُ أَدَاءَهَا أَدَّى اللَّهُ عَنْهُ وَمَنْ أَخَذَ يُرِيدُ إِتْلَافَهَا أَتْلَفَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ (بخاری)

[تخریج: مشکواة:ص:۲۵۲، س:۹،عن ابی هریرة رضی مرفوعًا]

**ترجمه** چاچه واخستلو دخلقومال ددې د اداکولو په ارادې سره،نو الله تعالی ئې دهغهٔ دطرفه اداکوي.او چاچه واخستلو دهلاکولو په ارادې سره،نو هلاکوي هغهٔ لره الله تعالی په هغې باندې.

**تشریح** چاچه قرض واخستلوداداکولوپه نیت سره: یابل څه څیز داداکولوپه نیت سره نوالله تعالی دهغهٔ په دنیاکښې په اداکولوکښې مددکړي.اوپه آخرت کښې به دهغهٔ خصم(مقابل)

خوشحاله کړی.اوچاچه مال واخستلودخوراك په نیت چه داداکولونیت ئې نهٔ وو.نوالله تعالی دهغهٔ دطرفه په اداکولوکښې امداد نه کوی.(حاشیه مشکواة نمبر۳) زیات تفصیل په صفحه۱۸۸ باندې اوګورئ.

**ترکیب**۞ من شرطیه اخذ فعل هو ذوالحال یرید فعل هو فاعل اداءها مضاف مضاف الیه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه حال.ذوالحال سره دحال نه فاعل اموال الناس مضاف مضاف الیه مفعول به.فعل سره فاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط.اذی فعل لفظ الله فاعل عنه جارمجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزانه معطوف علیه.واوعاطفه من شرطیه اخذ فعل هو ذوالحال یریدفعل هو فاعل اتلافها مضاف مضاف الیه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه حال شو.ذوالحال سره دحال نه فاعل داخذ.فعل سره فاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط.اتلف فعل ه مفعول به لفظ الله فاعل علیه جارمجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء نه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله فعلیه خبریه شرطیه معطوفه شوه.

﴿۲۳۶﴾- مَنْ اَفْطَرَ يَوْمًا مِنْ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ رُخْصَةٍ وَّلَا مَرَضٍ لَمْ يَقْضِ عَنْهُ صَوْمُ الدَّهْرِ كُلِّهٖ وَاِنْ صَامَهٗ (رواه احمد)

[تخریج:ــ مشکواة: ص:۱۷۷، س:۶، عن ابی هریرة رض مرفوعًا]

**ترجمه**۞ چاچه روژه ماته کړه یوه ورځ د رمضان،بغیر داجازت (شرعیهٔ) نه.او بغیرد بیمارئ نه،نو پوره به نه کړی دهغهٔ نه همیشه روژې اګرچه روژه اوساتی.

**تشریح**۞ کوم سړې چه بغیر دعذرشرعی نه درمضان یوه روژه اوخوړله یائې بالکل په دغه ورځ روژه اونه نیوله نوداسې سړې که ټول عمر روژه اونیسی لیکن هغه فضیلت بالکل نشی موندلې کوم چه درمضان دورځې وه.اګرچه روژه نیولوسره به دیوې ورځې روژه ساقطه شی اود روژې ماتولوپه صورت کښې به ۶۱ روژې نیولوسره به ئې ذمه فارغه شی.لیکن چه کوم فضیلت درمضان دروژې دې هغه دټول عمر روژو نیولوسره هم نشی حاصلیدلې.(حاشیه مشکواة نمبر۳)

**ترکيب**۞ من شرطيه افطر فعل هو فاعل يوما موصوف من رمضان جارمجرور ثابتا پورې متعلق شبه جمله صفت.موصوف سره دصفت نه مفعول فيه من جار غير رخصة مضاف مضاف اليه معطوف عليه.واو عاطفه لازائده مرض معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه جمله فعليه خبريه شرط شوه.لم يقض فعل عنه جارمجرورمتعلق په پورې.صوم الدهرمضاف مضاف اليه مؤكد.كله مضاف مضاف اليه تاكيد.مؤكدسره دتاكيدنه فاعل.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه جزاء مقدم.واو حاليه ان شرطيه صام فعل هو فاعل ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه خبريه شرط مؤخر.جزاء مقدم دشرط مؤخرسره جمله شرطيه جزائيه.جزاشوه.شرط سره دجزاءنه جمله فعليه خبريه شرطيه شوه.

﴿۲۳۷﴾- مَنْ فَطَّرَ صَائِماً أَوْ جَهَّزَ غَازِياً فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ "(بيهقى)

[تخريج:مشكوة:ص۱۷۵:س۲۲:عن زيدبن خالد﷜ مرفوعا]

**ترجمه**۞ چاچه روژه ماته کړه ديوروژه دار،يائې تيارکړويومجاهدنودده دپاره دهغهٔ په شان اجردې.

**تشريح**۞ دچاروژه دار روژه ماتول يايومجاهد دجنګ دپاره تيارول داسې دی لکه چه ده خپل روژه ماته کړې وی اوخپل ځان ئې تيارکړې وی اوجهادته ځی ځکه چه دچا دروژه ماتی بندوبست کول.اودهغهٔ روژه ماتولوکښې هم دروژې ثواب ملاويږی.اوپه مجاهد تيارولو کښې هم دجهادثواب ملاويږی.

**ترکيب**۞ من شرطيه فطرَ فعلِ هو فاعل صائماً مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه معطوف عليه اوعاطفه جهزَ فعل،هوَ فاعل،غازيًا مفعول به ټول معطوف .معطوف عليه سره دمعطوف نه جمله فعليه خبريه شرط شو.ف جزائيه له جارمجرورمتعلق په ثبت فعل محذوف پورې.ثبت فعل مثل مضاف اجرمضاف اليه مضاف ه مضاف اليه ټول مضاف مضاف اليه سره فاعل.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه جزاء شوه.شرط سره دجزاءنه جمله فعليه خبريه شرطيه شوه.

﴿۲۳۸﴾- مَنْ أَخَذَ مِنَ الْأَرْضِ شَيْئًا بِغَيْرِ حَقِّهِ خُسِفَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى سَبْعِ أَرَضِينَ (بخارى)

[تخريج:مشكوة:ص۲۵۶:س۱۲:عن سالم عن ابيه﷜ مرفوعا]

**ترجمه**۞ چاچه واخستله څهٔ حصه دزمکې په ناحقه نوښخ به کړې شی دې دقيامت په ورځ تراومې زمکې.

**تشريح**۞ چاچه دچادزمکې نه څهٔ حصه په ناحقه واخستله نودقيامت په ورځ به هغه تراومې زمکې پورې ښخولې شی چه په حقيقت کښې به دادهغه دپاره دردناك عذاب وی.دې حديث کښې دظلم سزابيان شوې ده.اومظلوم چه کومې خيرې اوکړی هغه الله تعالی قبلوی.نودابه

دهغه دپاره خان له یوبل عذاب وی نویه دنیااوآخرت کښې به ذلیل وی.

**ترکیب** من شرطیه اخذ فعل هو فاعل من الارض جارمجرورمتعلق په فعل پورې شیئا موصوف ب جار، غیرمضاف حق مضاف الیه مضاف ه مضاف الیه.دواړه مضاف الیه.بیا مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابتاپورې صفت.موصوف سره دصفت نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومتعلق اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط.خسف فعل مجهول.ب دتعدیت دپاره ه نائب فاعل یوم القیامة مضاف الیه مفعول فیه الی جارسبع ارضین مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل متعلق اومفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاءنه.جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

**﴿۲۳۹﴾- مَنْ أَطَاعَنِي فَقَدْ أَطَاعَ اللّٰهَ وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ عَصَى اللّٰهَ وَمَنْ يُطِعِ الْأَمِيرَ فَقَدْ أَطَاعَنِي وَمَنْ يَعْصِ الْأَمِيرَ فَقَدْ عَصَانِي** (بخاری ومسلم)

**[تخریج:مشکوٰة:ص۳۱۸:س۲۵:عن ابی هریرةؓ مرفوعا]**

**ترجمه** چاچه زمااطاعت اوکړونوهغه دالله تعالی اطاعت اوکړواوچاچه زمانافرمانی اوکړه نوهغه دالله تعالی نافرمانی اوکړه اوچاچه دامیراطاعت اوکړوهغهٔ زمااطاعت اوکړواوچاچه دامیرنافرمانی اوکړه هغه زمانافرمانی اوکړه.

**تشریح** حضورﷺ صفا اوفرمائیل: چاچه زما اطاعت اوکړونوهغه دالله تعالی اطاعت اوکړو زما نافرمانی اوکړه نوهغه دالله تعالی هم نافرمانی اوکړه ځکه چه الله تعالی زماپه ذریعه تاسوته حکم درکوی.اوس چه کوم سړې زما نافرمانی کوی هغه دالله تعالی نافرمانی هم کوی.اوچاچه دعادل بادشاه اطاعت اوکړونولکه چه هغهٔ زما اطاعت اوکړوځکه چه امیرعالم وی اوهغه ځهٔ خبره ددین خلاف نه کوی.اوچاچه دامیرنافرمانی اوکړه نوګویاچه هغه زما نافرمانی اوکړه ځکه چه امیرچه په (صحیح معنی کښې امیروی) زما دمرضۍ مطابق (زما دسنت مطابق) چلیږی.چاچه دهغه مخالفت اوکړونوګویاچه هغهٔ زما نافرمانی اوکړه.

ترکیب من شرطیه اطاع فعل،هو فاعل،ن وقایه،ی متکلم مفعول به،فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه قداطاع فعل هو فاعل لفظ الله مفعول به،ټوله جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه معطوف علیه.واوعاطفه من شرطیه عصی فعل هو فاعل.ن وقایه ی متکلم مفعول به.ټوله جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه قدعصی فعل هو فاعل لفظ الله مفعول به ټوله جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه قداطاع فعل هوفاعل ن وقایه ی متکلم مفعول به.ټوله جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.شرط اوجزاءمعطوف ثانی.واو عاطفه.من شرطیه یعصی فعل هو فاعل الامیرمفعلو به.ټول سره

يوځائې جمله فعليه خبريه شرط.ف جزائيه قدعصا فعل هو فاعل ن وقايه ی متكلم مفعول به تهول سرۀ يوځائې جمله فعليه خبريه جزاء.شرط سره دجزاء نه معطوف ثالث معطوف عليه سره دمعطوفات ثلثه نه جمله فعليه خبريه شرطيه معطوفه شوه.

﴿۲۴۰﴾- مَنْ رَاٰنِیْ فِی الْمَنَامِ فَقَدْ رَاٰنِیْ فَاِنَّ الشَّیْطٰنَ لَایَتَمَثَّلُ فِیْ صُوْرَتِیْ

(بخاری ومسلم) [تخريج:مشكوة:ص۳۹٤:س١٤:عن ابی هريرةؓمرفوعا]

**ترجمه**ۛ چاچه زه اوليدم په خوب كښې نوهغه زه اوليدم ځكه چه شيطان نشی جوړه ولې زماپه صورت كښې.

**تشريح**ۛ حضورﷺ فرمائی چه چازه په خوب كښې اوليدم نوهغه د داخيال نه كوی چه كيدې شی شيطان په نظراغلې وی ځكه چه الله تعالی شيطان دپاره په خوب او ويخه كښې زما شكل اوصورت جوړول محال ګرځولی دی.وجه داده كه چرې شيطان ته دحضورﷺ دشكل جوړلوطاقت وركړې شی په ويخه ياپه خوب كښې نوحق اوباطل سره يوځائې كيږی اوالله تعالی ددين حفاظت ترقيامته پورې كوی.ددې وجې نه شيطان دحضورﷺ دشكل جوړولونه منع كړې شودخوب قسمونه په حديث ۴۹كښې تيرشوی دی(حاشيه مشكواة نمبر۸ بحواله نووی ومرقات)

تركيبۛ من شرطيه رآی فعل هو فاعل نی مفعول به فی المنام جار مجرورمتعلق شوپه فعل پورې.فعل سره دفاعل اومفعول جمله فعليه خبريه شرط،ف جزائيه قدرای فعل،هو فاعل، نی مفعول به.داټول جمله فعليه خبريه جزاء.شرط سره دجزاء نه معلّل،ف تعليليه ان حرف مشبه بالفعل،الشيطان ددې اسم لَايَتَمَثَّلُ فعل،هو فاعل فی جار،صُوْرَتِیْ مضاف مضاف اليه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه خبردان.ان سرهٔدخپل اسم اوخبرنه جمله اسميه خبريه معلّل.معلّل سره دمعلّل نه جمله فعليه خبريه شرطيه تعليليه شوه.

﴿۲۴۱﴾- مَنِ ادَّعٰی مَالَیْسَ لَهٗ فَلَیْسَ مِنَّا وَلْیَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهٗ مِنَ النَّارِ (مسلم)

[تخريج:مشكوة:ص۳۲۷:س۱۱:عن بی ذرغفاریؓ اسمه جندب مرفوعا]

**ترجمه**ۛ چاچه دعوه اوكړه دهغهٔ څيزكوم چه ددهٔ نهٔ دپاره نهٔ دې نوهغه زمونږنه نهٔ دې اوپكارده چه هغه جوړكړی خپل ځائې په جهنم كښې.

**تشريح**ۛ مثلا دزيد اوخالد په مينځ كښې دځهٔ څيز باره كښې جهګړه اوشوه يووائی چه داڅيز زما دې.اوس هغه دروغجن دې په خپله دعوه كښې.دې دعوی كوی دداسې څيز چه هغه دده نهٔ دې.نوهغه زمونږه دجماعت نه خارج دې (يعنی د معمولی درجې ايمان ئې دې) دغه شان چه كوم يوانسان ديو صفت سره متعلق نه وی اودهغې دعوه اوكړی هغه هم په دې حديث

کښې داخل دي.لکه چه څوك دعالم یازاهدیاقاری یاسید کیدودعوه اوکړي.

فائده﴿﴾ ولیتبوء په دې حدیث کښې اوتیرشوی حدیث ۲۲۱ کښې فَالْيَتَبَوَّأْ دا دواړه لفظونه لفظًا انشاء ده اومعنًی خبردې.

**ترکیب﴿﴾** من شرطیه ادعی فعل هو فاعل ماموصوله لیس فعل ناقص هودده اسم له جار مجرورمتعلق په ثابتًا پورې شبه جمله خبر.لیس سره دخپل اسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه صله شوه.موصول سره دصلې نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه لیس فعل ناقص هو دده اسم مناجار مجرورمتعلق په ثابتًا پورې شبه جمله خبر.لیس سره داسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه.واوعاطفه.لیتبوء فعل (امر غائب) هوفاعل مقعده مضاف.مضاف الیه مفعول به من النارجارمجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۴۲﴾- مَنْ صَامَ رَمَضَانَ إِيْمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَلَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَنْ قَامَ رَمَضَانَ رَمَضَانَ إِيْمَانًا وَّاحْتِسَابًا غُفِرَلَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَنْ قَامَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ إِيْمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَلَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ (رواه البخاری ومسلم)

[تخریج:مشکوٰة:ص۱۷۳:س۸:عن ابی هریرةمرفوعا]

**ترجمه﴿﴾** چاچه د رمضان روژه اونیوله دایمان سره اودثواب په نیت.بخښنه به اوکړې شی ده ته دهغې گناه چه کومه ئې مخکښې کړې ده.اوڅوك چه اودریدهٔ په رمضان کښې دایمان اوثواب سره نوبښنه به اوکړې شی ده ته دهغې چه کوم گناهونه ده مخکښې کړی دی.څوك چه اودریدهٔ لیلة القدرکښې ایمان اوثواب سره نوبخښنه به اوکړې شی دهغې گناه کومه چه دهٔ مخکښې کړې ده.

**تشریح﴿﴾** درمضان روژه یاپه رمضان کښې اودریدل نفل وغیره کول یاپه لیلة القدرکښې اودریدلوسره په دې شرط چه ایمان وی.اودثواب په نیت سره ولاړوی.نودده ټول واړهٔ گناهونه معاف کولې شی.کبیره گناه صرف په توبه سره معاف گرځی.

ترکیب﴿﴾ من شرطیه صام فعل هو ذوالحال ایمانا مصدر په معنی داسم فاعل معطوف علیه،واؤ عاطفه،احتسابًا مصدرپه معنی داسم فاعل معطوف،معطوف علیه سره دمعطوف نه ذوالحال.ذوالحال سره دحال نه فاعل رمضان مفعول فیه.فعل سره دفاعل اومفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه شرط.غفرفعل مجهول له جارمجرورمتعلق شوپه فعل پورې.ماموصوله

تقدم فعل هو فاعل من جار ذنبه مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه صله دموصول.موصول سره دصلې نه نائب فاعل.فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء معطوف علیه.واو عاطفه.دَ وَمَنْ قَامَ رَمَضَانَ اِیْمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَلَهُ مَاتَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ ترکیب هم دغه شان دې جمله فعلیه خبریه معطوف اول.واو عاطفه،د وَمَنْ قَامَ لَیْلَیْ الْقَدْرِاِیْمَانًا وَاحْتِسَابًا غُفِرَلَهُ مَاتَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ ترکیب هم دغه شان دې.جمله فعلیه خبریه معطوف ثانی معطوف علیه سره ددواړو معطوفینونه جمله فعلیه خبریه شرطیه معطوفه شوه.

﴿۲۴۳﴾- **مَنْ أَكَلَ مِنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ الْمُنْتِنَةِ فَلَا يَقْرِبَنَّ مَسْجِدَنَا فَإِنَّ الْمَلٰئِكَةَ تَتَأَذّٰى مِمَّا يَتَأَذّٰى مِنْهُ الْإِنْسُ** (بخاری ومسلم)

[تخریج:مشکوة:ص۶۸:س۲۷:عن جابر) مرفوعًا]

**ترجمه**۞ چاچه اوخوړه دې بدبویه وُنې نه،نو بالکل دې نه رانزدې کیږی زمونږجوماتونوته ځکه چه فرشتوته تکلیف رسیږی ذهغه څیزونونه کومونه چه انسانانوته رسی.

**تشریح**۞ دبدبویه ونې نه مرادبصل،(پیازاوږه وغیره) ده.مطلب دادې.چه دهر بدبویه وُنې یا بوټی نه خوراك اوکړی نوجومات ته دې نه راځی ځکه چه فرشتوته دهغې نه تکلیف رسیږی. معلومه شوه چه څوك بدبویه څیزاوخوری هغه له جومات ته تلل مکروه دی.دغه شان هر بد بویه څیزخوړل،یاالکول یا اغوستل اوبیاجومات ته تلل فقهاؤ مکروه ګرځولې دی.ددې مطلب دانه دې چه کله دجماعت (جُمعې) وخت شی نوبدبویه څیزئې اوخوړیائې واغوستلو. اوبیا وائی چه زه نن جومات ته نهٔ ځم داغلط اوناجائزه حیله ده.دیوجنب سړی دپاره دجمع دمانځه پرینبودلو حیله جوړول ناجائزدی.بلکه دهغه دپاره داحکم دې چه غسل اوکړه اوجمعې سره مونځ اداکړه.نوپه نوروطریقوسره حیله څنګه جائزکیدلې شی.بهرحال لکه څنګه چه دانسان دتکلیف خیال ساتل پکاردی نو دغه شان دملائکودتکلیف خیال هم ضروردې.

ترکیب۞ من شرطیه اکل فعل من جار هذه اسم اشاره الشجرة موصوف اَلْمُنْتِنِی صفت.موصوف صفت مشارالیه.اسم اشاره سره دمشاره الیه نه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق شوپه فعل پورې.فعل سره،دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه لایُقْرِبَن فعل هوفاعل مسجدنا مضاف مضاف الیه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء شرط اوجزا معلل ف تعلیلیه ان حرف مشبه پالفعل الملائکی ئې اسم تَتَاَذّٰی فعل هو فاعل من جار ماموصوله یتاذی فعل منه جارمجرورمتعلق په فعل پورې الانس فاعل. فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه صله.موصول سره دصلې نه

مجرورجارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه خبرشو. ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه معلل. معلل سره دمعلل نه جمله فعلیه خبریه شرطیه تعلیلیه شوه.

﴿۲۴۵﴾- مَنْ جُعِلَ قَاضِيًا بَيْنَ النَّاسِ فَقَدْ ذُبِحَ بِغَيْرِ سِكِّيْنٍ (احمدوترمذی)

[تخریج: مشکوة: ص ٣٢٤: س ١٥: عن ابی هریرة مرفوعا]

**ترجمه**﴿ څوك چه قاضي جوړكړې شودخلقو مينځ كښې نوهغه ذبح كړې شوپه غيردچړې نه.

**تشریح**﴿ څوك چه قاضي جوړكړې شوهغه دې داخيال نۀ كوى چه زۀ عهدې والا جوړشوم. بلكه هغه خو بغيرد چاړې نه ذبح كړې شوې دې. ځكه چه په دين باندې تللودپاره هغه په لوئې امتحان كښې واچولې شوداسې دې لكه ده دين ذبح كړې وى. دقاضي نفس ذبح كول مرادنۀ دى بلكه دهغه دين هلاكولوطرف ته اشاره ده. په چاړه ذبح كولوسره صرف يوڅومنټه تكليف وى. ليكن قاضي بغير دچاړه نه ذبح كړې شوې دې. يعنى دڅومنټوتكليف په ځائې (كه چرې څۀ غلطي اوكړى) عمربلكه ترقيامته پورې به دشرمندګۍ تكليف براشت كوى چه دچاړې ذبح كيدلودتكليف نه زيات تكليف دې. ددې وجې نه پخپله دقضا عهده غوښتل نۀ دى پكار. اود وزارت عهده خوبالكل غوښتل نۀ ده پكار، ليكن كه علماء وقت څۀ عهده په زور وركړى نوهغه قبلول پكاردى.

**تركیب**﴿ من شرطيه جعل فعل هو نائب فاعل قاضيًا مفعول به بين الناس مضاف مضاف اليه مفعول فيه. فعل سره دفاعل مفعول به اومفعول فيه نه جمله فعليه خبريه شرط شو. ف جزائيه ذبح فعل هو نائب فاعل ب جارغيرسكين مضاف مضاف اليه مجرور. جارمجرور متعلق په فعل پورې. فعل سره دنائب فاعل اومتعلق نه جمليه خبريه جزاء. شرط سره دجزاء جمله فعليه خبريه شرطيه شوه.

﴿۲۴۶﴾- مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللّٰهِ فَقَدْ أَشْرَكَ (ترمذی)

[تخریج: مشکوة: ص ٢٩٦: س ٢٥: عن ابن عمر) مرفوعًا]

**ترجمه**﴿ چاچه قسم اوخوړودالله تعالى نه علاوه په بل چا باندې هغۀ شرك اوكړو.

**تشریح**﴿ چاچه قسم اوخوړودالله تعالى نه سوا دبل چاپه نوم باندې، ياد نبى په نوم باندې ياد كعبې په نوم باندې. نوكه چرې دغيرالله دتعظيم عقيده ئې مخصوص طريقې سره لرله اوقسم ئې اوخوړۀ نودا قسم خوړونكې مشرك شو. اوكه چرې دهغه مخصوص تعظيم (كوم چه الله دپاره كيږى.) په ځائې باندې دتعظيم بليغ په صورت كښې قسم اوكړونوبياپۀ دې حديث كښې زجردې. چه ده دمشرك پشان كاراوكړولكه رياكارهم شرك اصغركوى. كه چرې دقسم

دپاره استعمالیږی نوقسم به اوشی ګڼی قسم نهٔ کیږی.مثلاً په قرآن باندې قسم کولوسره قسم کیږی.اوس ددې پوره کول لازم دی ګڼی نوکفاره ورکول لازم ده.ترکیب﴿﴾ من شرطیه حلف فعل هو فاعل ب جار،غیرالله مضاف مضاف الیه مجرورجارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه قداشرك فعل هو فاعلٌ فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۴۷﴾- مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهٗ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهٗ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلْيَقُلْ خَيْرًا أَوْلِيَصْمُتْ (رواه ترمذی ومسلم)

[تخریج:مشکوة:ص۳۶۸:س۱۱:عن ابی هریرة مرفوعاً]

**ترجمه**﴿﴾ څوك چه ایمان لری په الله تعالی باندې اودقیامت په ورځ باندې نوهغه له پکاردی چه عزت اوکړی دخپل میلمه،اوڅوك چه ایمان لری په الله اودقیامت په ورځ نوهغه دې خپل ګاونډی ته تکلیف نهٔ ورکوی،اوڅوك چه ایمان لری په الله تعالی اودقیامت په ورځ نوهغه له پکارده چه ښه خبره اوکړی یاچپ پاتې شی.

**تشریح**﴿﴾ دایمان بالله اوایمان بالیوم الاخرذکرئې اوکړوپه مینځ کښې ټولې درجې دایمان راغلې.معنی داده چه کوم سړې مؤمن کامل جوړیدل غواړی نوهغه دپاره لازم ده چه دمیلمه میلمستیااوکړی درې ورځوپورې روښتوبیاصرف مستحب ده.او دغه شان چه څوك کامل مؤمن جوړیدل غواړی نوهغهٔ له هروخت دالازم ده چه خپل ګاونډی ته تکلیف نهٔ ورکوی.او دغه شان که څوك څهٔ خبره کوی نوښهٔ خبره داوکړی چه فائده پکښې وی بې فائدې څه خبره دې نهٔ کوی بلکه چپ دې شی.

**ترکیب**﴿﴾ من شرطیه کان فعل هو ئې اسم یؤمن فعل هو فاعل ب جارلفظ الله مجرور معطوف علیه واوعاطفه الیوم الاخر موصوف صفت معطوف معطوف علیه سره دمعطوف نه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه خبر.کان سره داسم اوخبرنه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه لیکرم فعل هو فاعل ضیفه مضاف مضاف الیه مفعول به فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه انشائیه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه معطوف علیه.واوعاطفه.(من کان یؤمن بالله والیوم الاخر فلا یؤذ جاره) دمخکښې ترکیب په شان جمله فعلیه خبریه معطوف اول.واوعاطفه (من کان یومن بالله والیوم الاخر فلیقل خیراً اولیصمت) دتیرشوی ترکیب په شان جمله فعلیه خبریه معطوف ثانی.معطوف علیه سره ددواړو.معطوفینونه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۴۸﴾- مَنْ صَلَّى الْعِشَاءَ فِي جَمَاعَةٍ فَكَأَنَّمَا قَامَ نِصْفَ اللَّيْلِ وَمَنْ صَلَّى الصُّبْحَ فِي جَمَاعَةٍ فَكَأَنَّمَا صَلَّى اللَّيْلَ كُلَّهُ (مسلم)

[تخريج مسكوة: ص٦٢: س٢٤: عن عثمان رض مرفوعا]

**ترجمه**۞ چاچه مونځ اوکړودماسخوتن دجمعې سره لکه چه دې اودریدلونیمه شپه اوچاچه مونځ اوکړودصباپه جمعې سره لکه چه ده مونځ اوکړوټوله شپه.

**تشريح**۞ دماسخوتن دمانځه فضیلت دجمعې سره یوداهم دې چه دنیمې شپې دعبادت ثواب لیکلې شي.اوچا چه صرف دصبامونځ دجمعې سره اوکړونوهغه ته دټولې شپې دعبادت ثواب ملاویږي.خومره آسان فضیلت دې دشپې دثواب ګټلو.چاچه دواړه مونځونه دجمعې سره اوکړل نوښکاره ده چه دټولې شپې دبیدارئ ثواب به ورته ملاویږي.اوچاچه پنځه وخته دجمعې دمانځه پابندي اوکړه نوهغه ته به دځلیریشت ګنټودنیکو ثواب ملاویږي.

**تركيب**۞ من شرطيه صلى فعل العشاء مفعول به فى جماعة جارمجرورمتعلق په فعل پورې ټول سره جمله فعليه خبريه شرط.ف جزائيه كانما دتاكيد دپاره.قام فعل.هو فاعل نصف الليل مضاف اليه مفعول فيه.فعل سره دفاعل اومفعول فيه نه جمله فعليه خبريه جزاء شوه.شرط سره دجزاءنه معطوف عليه.واوعاطفه من شرطيه صلى فعل هو فاعل الصبح مفعول فيه فى جماعة جارمجرور متعلق په فعل پورې.ټول سره يوځائ جمله فعليه خبريه شرط.ف جزائيه كانما دتاكيد دپاره صلى فعل هو فاعل الليل موكد كله مضاف مضاف اليه سره تاكيد .مؤكدسره دتاكيدنه مفعول فيه.فعل سره دفاعل اومفعول فيه نه جمله فعليه خبريه جزاء.شرط سره دجزاء نه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه جمله فعليه خبريه شرطيه معطوفه شوه.

﴿۲۴۹﴾- مَنْ بَطَّأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نَسَبُهُ (مسلم)

[تخريج:مشكوة:ص٣٣:س١:عن ابى هريرة رض مرفوعا]

**ترجمه**۞ چالره چه عمل روسته کړوهغه به نسب مخکښې بونهٔ څي.

**تشريح**۞ کوم سړي چه په عمل کولوکښې سستي اوکړه چه کله عمل کوی کله ئې نهٔ کوی نو داسې سړي له خاص طوراوباقی نورولره عام طورداحديث يادساتل پکاردی چه دهغه نسب نامه به په کاررانهٔ شي.(اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَاللهِ اَتْقٰكُمْ) چه بیشکه په تاسوکښې دټولونه زيات عزت والادالله تعالى په نزدباندې هغه سړې دې چه په تاسوکښې متقی وی.اوښکاره ده چه متقی هغه سړې دې چه

نهایت محتاط انداز کښې په پوره دین باندې عمل کوی. حضرت فاطمې رضي الله عنها ته رسول الله ﷺ فرمائیلي وو چه عمل کوه داخیال مه کوه چه فاطمه بنت رسول الله ﷺ یمه. بلکه په خپل عمل به بخښلې کیدې شی او فرمائیلی وو که چرې فاطمه غلا او کړی نو په توره به دهغې هم لاپرې کړم معلومه شوه چه دچانسب نامه په کارنهٔ راځی.

**ترکیب** من شرطیه بَطأ فعل به جارمجرورمتعلق شو په فعل پورې عمله مضاف مضاف الیه سره دفاعل تړول سره یوځائې جمله فعلیه خبریه شرط. لَمْ یُسرِع فعل به جارمجرورمتعلق په فعل پورې نسبه مضاف مضاف الیه سره فاعل تړول سره یوځائې جمله فعلیه خبریه جزاء شوه. شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۵۰﴾- مَنْ حَجَّ لِلّٰهِ فَلَمْ يَرْفُثْ وَلَمْ يَفْسُقْ رَجَعَ كَيَوْمٍ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ

(بخاري ومسلم) [تخریج: مشکوة: ص۲۲۱: س۵: عن ابی هریرة مرفوعا]

**ترجمه** چاچه حج او کړو د الله تعالی دپاره پس نه ئې جماع او کړه او نهٔ ئې خرابه خبره او کړه نو هغه واپس شو دهغه ورځ په شان په کومه ورځ چه او زیږولو دهٔ لره مور.

**تشریح** رفث وئیلې شی① جماع ته② مطلقا ښځې ته ورتلل. او فسوق بدې خبرې ته وئیلې شی. په دې حدیث کښې دجدال ذکر نه دې شوې. په قرآن کریم باندې اکتفاء کړې شوې ده. غرض داچه کوم سړې دحج دوران کښې څهٔ ناکاره خبره یاڅهٔ ناکاره کار او نکړو نو چه کله هغه کورته راځی نو داسې به وی لکه چه موراوس زیږولې وی. یعنی هرقسم گناه به ئې معاف شوی وی.

**ترکیب** من شرطیه حج فعل هو فاعل لله جارمجرورمتعلق په فعل پورې تړول سره یوځائې جمله فعلیه خبریه معطوف علیه، ف عاطفه، لم یرفث فعل، هُو فاعل، دواړه جمله فعلیه خبریه معطوف اول، واو عاطفه لم یفسق فعل هو فاعل. فعل فاعل جمله فعلیه خبریه معطوف ثانی. معطوف علیه سره ددواړو معطوفینو نه شرط رجع فعل هو ذوالحال ك جار یوم موصوف ولدت فعل ه مفعول به امه مضاف مضاف الیه فاعل فعل سره دفاعل او مفعول به نه جمله فعلیه خبریه صفت. موصوف سره دصفت نه مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په ظاهراً پورې شبه جمله حال شو. ذوالحال سره دحال نه فاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه جزاء. شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۵۱﴾- مَنْ سَأَلَ اللّٰهَ الشَّهَادَةَ بِصِدْقٍ بَلَّغَهُ اللّٰهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ وَإِنْ مَّاتَ عَلٰى فِرَاشِهٖ (مسلم)

[تخريج :مشكوة:ص۳۳۰:س۲٦:عن سهل بن حنيف) مرفوعًا]

**ترجمه﴿﴾** چاچه اوغوښتلودالله تعالی نه شهادت په رښتیاسره الله تعالی به دې اورسوی دشهیدانو مرتبې ته اګرچه هغه په خپله بستره مړشي.

**تشریح﴿﴾** چاچه په اخلاص سره دالله تعالی نه شهادت اوغوښتلو.الله تعالی به هغهٔ ته هرچرته چه مړشي ضرور دشهیدانو درجه ورکړي.اګرچه په خپل کورکښې ناست وی اوپخپله بستره ئې روح وخی.دشهادت مرتبه حاصلولودپاره صرف دزړه رښتیاوالې اودنیت صحیح والې ضروری دې.که چرې یوسړې جهادکوی اومړشی لیکن دهغه نیت خپل نوم روښانه کول وی نوهغهٔ ته دذرې برابر ثواب هم نهٔ ملاویږي؛اوچه څوك په اخلاص سره دشهادت آرزوکوی. نوبیا اګرچه هغه ته زخم هم نهٔ وی رسیدلې.په خپله بستره باندې په آرام سره دهغه روح اوځی نوداسړې به دالله په نزد شهیدوی.اودهغه مجاهدنه به زیات ثواب دهٔ ته ملاویږی دچاچه نیت خراب وو.

**ترکیب﴿﴾** من شرطیه سئل فعل هو فاعل لفظ الله مفعول به اول،الشهادة مفعول به ثانی بصدق جارمجرور متعلق شوفعل پورې.ټول سره یوځائې جمله فعلیه خبریه شرط بلغ فعل ه مفعول به لفظ الله فاعل منازل الشهداء مضاف مضاف الیه مفعول فیه.فعل سره دفاعل مفعول به مفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه جزامقدم.واو وصلیه ان شرطیه مات فعل هو فاعل علی جارفراشه مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې. فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط مؤخر.جزاء مقدم سره دشرط مؤخرنه جمله شرطیه جزائیه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۵۲﴾- مَنِ احْتَبَسَ فَرَسًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ إِيمَانًا بِاللّٰهِ وَتَصْدِيقًا بِوَعْدِهٖ فَإِنَّ شِبْعَهٗ وَرِيَّهٗ وَرَوْثَهٗ وَبَوْلَهٗ فِي مِيزَانِهٖ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

(بخاری) [تخريج :مشكوة:ص۳۳٦:س۲۰:عن ابی هريرة مرفوعًا]

**ترجمه﴿﴾** چاچه بند کړواس دالله په لارکښې په الله ئې ایمان لرلواودهغهٔ دوعدې تصدیق ئې کولونوبیشکه دهغهٔ خوراك اودهغهٔ څښنړه اودهغهٔ بول به دده په تله کښې وی دقیامت په ورځ.

﴿۲۵۱﴾۔ مَنْ سَأَلَ اللّٰهَ الشَّهَادَةَ بِصِدْقٍ بَلَّغَهُ اللّٰهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ وَإِنْ مَّاتَ عَلٰى فِرَاشِهِ (مسلم)

[تخریج: مشکوٰة: ص ۳۳۰: س ۲٦: عن سهل بن حنیف) مرفوعا]

**ترجمه** ۞ چاچه اوغوښتلو دالله تعالی نه شهادت په رښتیا سره الله تعالی به دې اورسوی دشهیدانو مرتبې ته اګرچه هغه په خپله بستره مړشي.

**تشریح** ۞ چاچه په اخلاص سره دالله تعالی نه شهادت اوغوښتلو. الله تعالی به هغهٔ ته هرچرته چه مړشي ضرور دشهیدانو درجه ورکړي. اګرچه په خپل کورکښې ناست وی اوپخپله بستره ئې روح وځی. دشهادت مرتبه حاصلولو دپاره صرف دزړه رښتیاوالې اودنیت صحیح والې ضروری دې. که چرې یوسړې جهادکوی اومړشی لیکن دهغه نیت خپل نوم روښانه کول وی نوهغهٔ ته دذرې برابر ثواب هم نهٔ ملاویږی. اوچه څوك په اخلاص سره دشهادت آرزوکوی. نوبیا اګرچه هغه ته زخم هم نهٔ وی رسیدلې. په خپله بستره باندې په آرام سره دهغه روح اوځی نوداسړې به دالله په نزد شهیدوی. اودهغه مجاهدنه به زیات ثواب دهٔ ته ملاویږی دچاچه نیت خراب وو.

**ترکیب** ۞ من شرطیه سئل فعل هو فاعل لفظ الله مفعول به اول، الشهادة مفعول به ثانی بصدق جارمجرور متعلق شوفعل پورې. تول سره یوځائې جمله فعلیه خبریه شرط بلغ فعل ه مفعول به لفظ الله فاعل منازل الشهداء مضاف مضاف الیه مفعول فیه. فعل سره دفاعل مفعول به مفعول فیه نه جمله فعلیه خبریه جزامقدم. واو وصلیه ان شرطیه مات فعل هو فاعل علی جارفراشه مضاف مضاف الیه مجرور. جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې. فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط مؤخر. جزاء مقدم سره دشرط مؤخرنه جمله شرطیه جزائیه جزاء. شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۵۲﴾۔ مَنِ احْتَبَسَ فَرَسًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ إِيمَانًا بِاللّٰهِ وَتَصْدِيقًا بِوَعْدِهٖ فَإِنَّ شِبْعَهُ وَرِيَّهُ وَرَوْثَهُ وَبَوْلَهُ فِي مِيزَانِهٖ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

(بخاری) [تخریج: مشکوٰة: ص ۳۳٦: س ۲۰: عن ابی هریرة مرفوعًا]

**ترجمه** ۞ چاچه بندکړواس دالله په لارکښې په الله ئې ایمان لرلواودهغهٔ دوعدې تصدیق ئې کولونوبیشکه دهغهٔ خوراك اودهغهٔ څښنړه اودهغهٔ بول به دده په تله کښې وی دقیامت په ورځ.

**تشریح** کوم سړی چه دجهاد دپاره اس اوساتلودثواب په نیت باندې اوپه الله تعالی باندې ایمان لری اوداالله تعالی وعده رښتونې ګڼړی.نوداسې سړی له خوشحالیدل پکاردی اوداالله تعالی شکریه اداکول پکاردی.ځکه چه دده په عمل نامه کښې چه کله داس ثواب تللې شی نوچه اس څومره خوراك څښاك اوخشنړه اوبول کړې وی هغه به ټول تللې شی چه دهغې په وجه به وزن زیات کړې شی.اوشاید چه هم دادنجات دپاره کافی شی.

**فائده** هرسړې دې خپله سورلۍ کښې دانیت اوکړی چه داسورلی مثلا موټرسائکل یاګاډې دې دپاره ساتم چه دجهادپه وخت جهاد کښې اوپه عاموحالاتوکښې به ئې په هرکارخیرکښې استعمالوم.نوچه کوم سړې پۀ دې نیت باندې هرقسم سورلی ساتی نودهغې پټرول وغیره به ټول دقیامت په ورځ په کارراځی.

**ترکیب** من شرطیه احتبس فعل هو ذوالحال ایمانا مصدرپه معنی داسم فاعل هوضمیر ئې فاعل بالله جارمجرورمتعلق په مؤمنا پورې.اسم فاعل سره دخپل فاعل اومتعلق نه شبه جمله معطوف علیه.واوعاطفه تصد یقامصدرپه معنی داسم فاعل هو دده فاعل ب جاروعده مضاف مضاف الیه مجرور.جارمجرور متعلق په مصدقا پورې شبه جمله معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه حال.ذوالحال سره دحال نه فاعل فرسا مفعول به فی جارسبیل الله مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره د فاعل، متعلق اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه شرط شوه.ف جزائیه ان حرف مشبه بالفعل شبعه مضاف مضاف الیه معطوف علیه.واو عاطفه ریه معطوف اول.واو عاطفه روثه مضاف مضاف الیه معطوف ثانی.واوعاطفه بوله معطوف ثالث.معطوف علیه سره دمعطوفات ثلثه نه اسم دان.فی جارمیزانه مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په ثابت پورې.ثابت صیغه داسم فاعل هو ضمیرئې فاعل یوم القیمۃ مضاف مضاف الیه مفعول فیه. ثابت اسم فاعل سره دخپل فاعل اومفعول فیه اومتعلق نه شبه جمله خبرشو.ان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه جزاء شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

﴿۲۵۳﴾- مَنْ كَانَ لَهُ شَعْرٌ فَلْيُكْرِمْهُ (روه ابوداود)

[تخریج:مشکوة:ص۳۸۲:س۵:عن ابی هریرة رض مرفوعا]

**ترجمه** دچاچه ویښته وی هغه ته پکاردی چه عزت ئې کوی (صفائې ساتی)

**تشریح** دشعرنه مراد دسر ویښته دی.مطلب دادې چه کوم سړی ویښته ساتلی وی نوهغه له پکاردی چه دویښتوحق اداکړی.چه وینځی هم اوتیل وربانډې هم لګوی.او ګومنځ دې هم کوی.په ګومنځ کولو کښې داتفصیل دې.چه یوه ورځ پس ګومنځ کول پکاردی.ځکه چه په مشکواة (صفحه۳۸۲ س۱ ) باندې حدیث شریف دې.چه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده دګومنځ کولونه.لیکن غِبًا (چه یوه ورځ ناغه اوکړې شی) یعنی یوه ورځ ګومنځ اوکړی.اوبله ورځ نه کوی.هم دا مسنون طریقه ده.خو روزانه ګومنځ کول حرام هم نه دی.البته روزانه

څوځله ګومنځ کول مناسب هم نه دی.په حدیث کښې ممانعت د روزانه عادت کیدلو اوپه دې باندې همیشوالي کولوکښې دې که یوسړې څو ورځې روزانه ګومنځ کوی.بیا ئې یوه ورځ نه کوی. نوهغه په ذکرشوی ممانعت کښې نه داخلیږی.(مرقات جلد۸\۳۰۳)

**وېښته خورول**﴿ خوارهٔ ویښته ګرځیدل دهغه سړی کاردی.کوم چه دسنت اودین نه لرې دې. ویښته خورول او کُهلاؤ پریښودل،چه ددې نه خلق نفرت کوی.اوهم په دې حالت کښې جمات ته تلل مکروه دی.بلکه په حدیث کښې داسې سړی ته شیطان وئیلې شوی دی. (مشکواة ص۳۸۴. س:۲۷ مرقات ج۸\۳۲۳)

د سرد ویښتو ساتلو مسنون طریقه﴿ د غوږونو پوځکو پورې ویښته ساتل چه په دې کښې هرطرف ته ویښته برابروی.چه بودئ نه وی.چه په هغې کښې شاته واړهٔ اومخې ته اوږده وی.چه دا د انګریزانو طریقه ده.په مشکواة (صفحه ۳۸۰ س۲۵) باندې حدیث دې چه نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه یا پوره (ویښته) ساتیٔ یائې پوره کټ کویٔ.(داځه چه دې ساتلې وی اوځه دې خرئیلې وی) (رواه مسلم)

**د سر ویښته خرئیل**﴿ صرف جائزدی سنت نه دی.سنت هغه وی چه په هغې کښې نبی کریمﷺ مواظبت اوهمیشوالي کړې وی.او اصول په دې باره کښې چه یوطرف ته درسول اللهﷺ سنت دی مثلاً ویښته ساتل اوبل طرف دسر ویښته خرئیل دحضرت علیؓ سنت دی.دادی چه اصل سنت کوم چه اصطلاحی سنت دی هغه دحضورﷺ دی.اودحضرت علی سنت په معنی لغوی سره دی.یعنی دجواز ترحده پورې داکاردې لهذا دسر ویښتو خرئیلوته سنت نشی وئیلې کیدې بلکه صرف دجوازدرجه ده.

**ترکیب**﴿ من شرطیه کان فعل له جارمجرورسره متعلق په فعل پورې شعر فاعل.فعل سره د فاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شوف جزائیه لِیکرِمْ فعل امره مفعول به.فعل سره د فاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

## نَوْعٌ اُخَرَمِنْهُ

﴿۲۵۴﴾- اِذَاسَرَّتْكَ حَسَنَتُكَ وَسَاءَتْكَ سَيِّئَتُكَ فَأَنْتَ مُؤْمِنٌ(رواه احمد)

[تخریج:مشکوة:ص۱٦:س۱٤:عن ابی هریرة مرفوعا]

**ترجمه**﴿ چه کله خوشحال کړی تالره ستانیکی اوخفه کړی تالره ستابدی نوته مومن ئې.

**تشریح** اوشان ورود﴿ ابوامامهؓ صحابی راوی وائی چه یوسړی د نبی کریمﷺ نه تپوس اوکړو(مَاالاِیْمَانُ)یعنی دایمان نښه څهٔ ده.نوپه دغه وخت کښې نبی کریمﷺ اوفرمائیل چه کله تاته ستانیکی ښهٔ ښکاره شی یعنی تاته خوشحالی محسوس شی چه ماته دنیکي توفیق

راکړې شو.اوچه کله تاته ستابدی ناخوښه شی.یعنی په گناه کیدلوسره ستازړه غمژن شی
اودسزا ویره درسره شروع شی نواوس ته کامل مؤمن ئې.ځکه چه په گناه اونیکئ کښې فرق
کوې.اودنیکئ اوگناه دجزاملاویدوعقیده ساتې.(حاشیه مشکوای نمبر۱۵ بحواله مرقات)

**ترکیب:** اذاشرطیه سرت فعل ك مفعول به حسنتك مضاف مضاف الیه فاعل.فعل سره
دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه.واو عاطفه ساءت فعل ك مفعول به
سیئتك مضاف مضاف الیه فاعل.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه
معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه شرط.ف جزائیه انت مؤمن مبتداء خبر جمله اسمیه
خبریه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه خبریه شرطیه شوه.

**﴿۲۵۵﴾- إِذَا وُسِّدَ الْأَمْرُ إِلَى غَيْرِ أَهْلِهِ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ** (بخاری)

[تخریج:مشکوة:ص۴۶۹ :س۱۱ :عن ابی هریرة مرفوعا]

**ترجمه:** چه کله وسپارلې شی کار نااهلوته.نو انتظارکوه دقیامت.

**تشریح او شان ورود:** حضرت ابوهریرة چه دهغه نوم عبدالرحمن دې په صحیح قول کښې،
چه ددې حدیث راوی دې هغه وائی چه مونږد نبی کریم ﷺ سره خبرې کولې.په دې دوران
کښې یوبانډه چی سړې راغې.هغه راتلوسره داتپوس اوکړوچه مَتَى السَّاعَةُ یعنی دقیامت
علامه څۀ ده.قیامت به کله راځی نوحضورﷺ اوفرمائیل چه کله امانت ضائع کړې شی.نوهغۀ
بیاتپوس اوکړو ضائع کیدل به څنگه وی.نوپه دې باندې نبی کریم ﷺ داجمله اوفرمائیله:
چه کله څۀ معامله نااهل ته اُسپارلې شی نوبیادقیامت انتظارکوه.مطلب دادې چه بادشاه
یاحاکم یاامیریاقاضی یامدرس یامفتی یا امام یاخطیب وغیره داعهدې یونااهل ته ورکړې
شی.نوبیابه امانت کوم ځائې پاتې شی.هرسړې به دخپلې خیټې فکرکوی اوایثاربه بالکل
ختم شی.اوچه کله امانت اوایثارختم شو دنا اهل مقررکیدو په وجه نوبیادقیامت انتظارکوه.
(حاشیه مشکوای نمبر۷، ۸ بحواله لمعات ومرقات)

**ترکیب:** اذاشرطیه وسدفعل مجهول الامرنائب فاعل الی جارغیر مضاف،اهله مضاف سره
دمضاف الیه نه مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور،جارسره دمجرورنه متعلق
شوپه فعل پورې.فعل سره دنائب فاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه انتظرفعل
امر انت فاعل الساعة مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه جزاء شوه.
شرط سره دجزانه جمله شرطیه جزائیه شوه.

**﴿۲۵۶﴾- إِذَا كُنْتُمْ ثَلَاثَةً فَلَا يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُونَ الْآخَرِ حَتَّى تَخْتَلِطُوا بِالنَّاسِ مِنْ أَجْلِ أَنْ يُحْزِنَهُ** (بخاری ومسلم)

[تخريج:مشكوة:ص۴۲۲:س۲۶:عن عبدالله بن مسعود رض مرفوعا]

**ترجمه** چه کله تاسودرې کسان ئې نودوه کسان دې په پټه خبره نۀ کوی ددریم نه علاوه ترهغې چه تاسويوځائې شی دخلقوسره ددې وجې نه چه هغه به غمژن شی.

**تشریح** چه کله تاسودرې کسان ئې نودوه کسان د دریم نه علاوه ځانله خبرې نه کوی.ځکه چه دهغه زړه به غمژن شی پته نۀ لګی چه څۀ خبره ده چه زما نه ئې پټه کوی.لیکن چه کله ډیروخلقوسره یوځائې شی.نوبیاهیڅ حرج نشته.بیاچه دوه کسان هرڅومره خبرې کول غواړی نوکوی دې.که چرې ډیره زیاته ضروری خبره کول غواړی نود دریم نۀ دې اجازت اوغواړی خبره دې اوکړی.

**ترکیب** اذاشرطیه کنتم فعل ناقص تم ددې اسم ثلثة خبر.فعل ناقص سره دخپل اسم او خبرنه جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه لایتناجی فعل اثنان فاعل دون الاخرمضاف مضاف الیه مفعول فیه حتی جار تختلطوا فعل فاعل بالناس جار مجرورمتعلق اول دفعل من جار اجل مضاف ان مصدریه یحزن فعل هو فاعل ه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدرسره مضاف الیه.مضاف سره دمضاف الیه مجرور.جار سره دمجرورنه متعلق ثانی.فعل سره دفاعل اومتعلقینو نه جمله فعلیه خبریه په تقدیردان سره مفردمجرورشوجارسره دمجرونه متعلق شوپه لایتناجی پورې.فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه معنًی انشائیه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله فعلیه شرطیه جزائیه شوه.

﴿۲۵۷﴾- إِذَا قَضَى اللّٰهُ لِعَبْدٍ أَنْ يَّمُوْتَ بِأَرْضٍ جَعَلَ لَهُ إِلَيْهَا حَاجَةً (ترمذی)

[تخريج:مشكوة:ص۲۲:س۲۵:عن مطربن عكامس رض مرفوعا]

**ترجمه** چه کله الله تعالی دیوبنده دمرګ اراده اوکړی په (فلانئ) زمکه نوګرځوی الله تعالی هغۀ دپاره دهغې طرف ته ضرورت.

**تشریح** الله تعالی چه کله څوك مړکول غواړی نوچه کوم ځائې دمرګ دپاره مقرروی نوهغه سړې اګرچه په سوونو میله لرې ناست وی څۀ کارته هلته دهغه ضرورت پیداکوی چه هغه هلته اورسیږی کوم ځائې کښې چه دهغه مرګ واقع کیدل وی.

په مقررځائې کښې مرګ راځی په دې باره کښې یوه قصه

دشام په ملك کښې حضرت سلیمان علی نبینا علیه السلام دحضرت عزرائیل علیه السلام سره دمرګ باره کښې خبرې کولې چه ته څنګه دومره لرې نه په یومنټ کښې د ډیرو خلقو روحونه اوباسې؟ نو عزرائیل علیه السلام جواب ورکړو.چه مادپاره اقوام عالم دیوپلیټ په شکل دې چه په هغې کښې د انار ډیرې دانې پرتې وی چه اوغواړم نودهر طرفه اوهرګټ نه دانه اوچتوم.زما دپاره په دې

کېښي هيڅ مشکل نه وی.ددې خبرو په وخت کښې يو سړې ناست وه چه دهغه طرف ته عزرائيل عليه السلام برندبرند کتل نوچه کله مجلس ختم شونودغه ناست سړی حضرت سليمان عليه السلام ته اووئيل چه زما طرف ته عزرائيل عليه السلام برندبرند کتل.زما ويره ده چه چرته مرګ راته رانشي ددې وجې نه تاسومهرباني اوکړئ مادهواپه ذريعه(دشام نه) هندوستان ته اورسوئ نوڅه لږساعت نه پس هندوستان ته اورسيدلو.هندوستان ته رسيدلونه روستوبله ورځ پته اولګيدله چه دفلانکي انتقال شوې دې.چه بياکله دحضرت سليمان عليه السلام دعزرائيل عليه السلام سره ملاقات اوشو.نوهغوی عزرائيل عليه السلام نه تپوس اوکړوچه داڅۀ خبره وه،نوحضرت عزرائيل عليه السلام ورته اووئيل چه هغه ورځ چه کله زۀ تاسوته راغلې وم نوماهغه ته برندبرندځکه کتل چه ماته دهغه باره کښې حکم شوې وو.چه زۀ دهغه روح په هندوستان کښې واخلم.نوزۀ حيران ووم چه دابه دشام نه هندوستان ته څنګه رسيږي.وخت لږدې شايدچه داهغه دې ماته چه دچا دروح اخستلوحکم دې يابل څوك دې.ددې وجې نه ماهغه ته برنداوکتل کوم چه دهغۀ دمرګ سبب جوړشو.

**ترکيب۞** اذاشرطيه قضی فعل لفظ الله فاعل لعبد جارمجرورمتعلق په فعل پورې ان مصدريه يموت فعل هوفاعل بارض جارمجرورمتعلق په فعل پورې فعل سره دفاعل او متعلق نه جمله فعليه خبريه په تاويل دمصدرسره مفعول به.فعل سره دفاعل مفعول به اومتعلق نه جمله فعليه خبريه شرط.جعل فعل هوفاعل له جارمجرورمتعلق اول په فعل پورې.اليها جارمجرورمتعلق ثاني دفعل.حاجة مفعول به فعل سره دفاعل اومتعلقينو اومفعول به نه جمله فعليه خبريه جزاء.شرط سره دجزاء نه جمله شرطيه جزائيه شوه.

﴿۲۵۸﴾- **إِذَا طَبَخْتَ مَرَقَةً فَأَكْثِرْ مَاءَهَا وَتَعَاهَدْ جِيرَانَكَ** (رواه مسلم)

[تخريج:مشکوة:ص۱۷۱:س۱٤:عن ابی ذر) مرفوعا]

**ترجمه۞** چه کله ته ښوروا پخوی نوپه هغې کښې اوبه زياتې کړه اودخپلو ګاونډيانو خيال اوساته.

**تشريح۞** چه کله ښوروا پخيږي نولږې اوبه ورکښې زياتې کړې.چه ګاونډي ئې هم اوخوري. داکار صرف مستحب دې.مقصددادې چه دګاونډيانوخيال اوساتلې شي.اودهغوی وخت په وخت خبرواخستلې شي اودهغوی دځان اومال دحفاظت خيال اوساتلې شي.اودهغوی دهر قسم تکليف نه ځان بچ کړئ.غرض دادې چه دهغوی دآرام اوراحت خيال اوساتئ.

**ترکيب۞** اذاشرطيه طبخت فعل فاعل مرقة مفعول به ټول سره يوځائې جمله فعليه خبريه شرط شوه.ف جزائيه اکثرفعل انت فاعل ماءها مضاف مضاف اليه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله انشائيه معطوف عليه واو عاطفه تعاهد فعل انت فاعل جيرانك مضاف مضاف اليه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعليه انشائيه معطوف.

معطوف علیه سره دمعطوف نه جزاء.شرط سره دجزاءنه جمله شرطیه جزائیه شوه.

﴿۲۵۹﴾- اِذَالَبِسْتُمْ وَاِذَاتَوَضَّأْتُمْ فَابْدَؤُا بِمَيَامِنِكُمْ (رواه احمد)

[تخریج:مشکوة:ص۴٦:س۸: عن ابی هریرةؓ مرفوعا]

**ترجمه**۞ چه کله تاسو اغوندئ اوچه کله تاسو اودس کوئ نوتاسو شروع کوئ دخپل ښی طرف نه

**تشریح**۞ کله چه تاسو جامې اغوندئ یاڅادرپه سر کوئ یااودس کوئ یاڅه څیز تقسیموئ یاکله اوده کیږئ.یادچانه سبق اوروئ یاڅه خورئ یاڅه څکئ یاڅپلئ په خپو کوې.یانوکونه پریکوئ،یامسواك وهئ،یاڅه لیکئ یاچاته څه لاس کښې ورکوئ.یادچانه څه څیز لاس کښې نیسئ.یاڅه دینی کتاب رااخلئ.یامصافحه کوئ یارانجه سترګو کښې اچوئ.یاچاته اشاره کوئ،یاقران پاك کولاوهئ.یاپه قرآن کریم باندې ګوتې ږدئ تلاوت کوئ.په دې شلو کارونواوپه هرنیك کارکښې دښی لاس نه شروع کوئ یقینا برکت به وی.

**ترکیب**۞ اذاشرطیه لبستم فعل فاعل جمله فعلیه خبریه معطوف علیه.واوعاطفه اذاشرطیه توضئ تم فعل فاعل سره جمله فعلیه خبریه معطوف.معطوف علیه سره دمعطوف نه جمله معطوفه شرط.ف جزائیه ابدؤا فعل فاعل ب جارمیامنکم.مضاف الیه مجرور جارسره دمجرورنه متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه جزاء.شرط سره دجزاء جمله شرطیه جزائیه.

﴿۲٦۰﴾- اِذَاتَوَضَّأْتَ فَخَلِّلْ اَصَابِعَ يَدَيْكَ وَرِجْلَيْكَ (ترمذی)

[تخریج:مشکوة:ص۴٦:س۱۲:عن ابن عباسؓ مرفوعا]

**ترجمه**۞ چه کله ته اودس کوئ نوخلال کوئ دخپلو لاسونو اودخپو دګوتو.

**تشریح**۞ دلاس اوخپو ګوتې خلالول په اودس کښې فرض نه دی بلکه سنت دی.په اودس کښې نهه سنت دی ① مړوندونو پورې لاس وینځل ② بسم الله وئیل ③ خوله کښې اوبه اچول ④ پوزه کښې اوبه اچول⑤ مسواك وهل ⑥ یوځل دټول سرمسح کول⑦ هراندام درې ځل وینځل ⑧ دغوږونومسح کول ⑨ دلاس خپوګوتې خلالول.ددینه ماسوی ټول مستحبات دی(بهشتی زیورحصه اول د اودس بیان)

**ترکیب**۞ اذاشرطیه توضئت فعل فاعل جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه خلل فعل انت فاعل اصابع مضاف یدیك مضاف مضاف الیه معطوف علیه واو عاطفه رجلیك معطوف. معطوف علیه سره دمعطوف نه مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله
فعلیه انشائیه جزاء.شرط سره دجزاءنه جمله شرطیه جزائیه شوه.

﴿۲۶۱﴾- إِذَاوُضِعَ الطَّعَامُ فَاخْلَعُوانِعَالَكُمْ فَإِنَّهُ أَرْوَحُ لِأَقْدَامِكُمْ (دارمی)

[تخریج:مشکوۃ:ص۳٦۸:س٦:عن انس رض مرفوعا]

**ترجمه**﴿۞﴾ چه کله ته اودس کوئ نوخلال کوئ دخپلو لاسونو اودخپو دګوتو.

**تشریح**﴿۞﴾ دلاس اوخپوګوتې خلالول په اودس کښې فرض نه دی بلکه سنت دی.په اودس کښې نهه سنت دی ① مرونـدونو پورې لاس وینځـل ② بسم الله وئیـل ③ خولـه کښې اوبـه اچـول ④ پوزه کښې اوبه اچول⑤ مسواك وهل ⑥ یوځل دټول سرمسح کول⑦ هراندام درې ځل وینځل ⑧ دغوږونومسح کول ⑨ دلاس خپوګوتې خلالول.ددینه ماسوی ټول مستحبات دی(بهشتی زیورحصه اول د اودس بیان)

**ترکیب**﴿۞﴾ اذاشرطیه توضئت فعل فاعل جمله فعلیه خبریه شرط.ف جزائیه خلل فعل انت فاعل اصابع مضاف یدیك مضاف الیه معطوف علیه واو عاطفه رجلیك معطوف. معطوف علیه سره دمعطوف نه مضاف الیه مضاف سره دمضاف الیه نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله
فعلیه انشائیه جزاء.شرط سره دجزاءنه جمله شرطیه جزائیه شوه.

**ترجمه**﴿۞﴾ چه کله خوراك کیخودې شي نواوباسئ خپل پیزارځکه چه دازیات ارام ورکونکې دې ستاسوخپودپاره.تشریح﴿۞﴾ چه کله خورك کیخودې شي برابره ده چه هغه طعام یعني ډوډئ وی یاکجورې یاپئ یاوریجې وی.نو پیزار ویستل اوکیناستل سنت دی.وجه داده چه پیزار ویستلوسره انسان په ارام کیناستلې شي.که چرې په کرسئ صوفه وغیره باندې کیناستل وی نوبیاهم پیزار ویستل اوپه مسنون طریقې سره کیناستل پکاردی.

**ترکیب**﴿۞﴾ اذاشرطیه وضع فعل مجهول الطعام نائب فاعل.فعل سره دنائب فاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط شوه.ف جزائیه اخلعوا فعل فاعل نعالکم مضاف مضاف الیه مفعول به. فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه انشائیه جزاء.شرط سره دجزاء نه مُعلّل.ف تعلیلیه ان حرف مشبه بالفعل ه دده اسم اروح اسم تفضیل هو ضمیردده فاعل ل جار اقدامکم مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره دمجرورنه متعلق په اسم تفضیل پورې.اسم تفضیل سره دخپل فاعل اومتعلق نه شبه جمله خبردان سره داسم اوخبرنه جمله اسمیه خبریه تعلیل.معلل سره دتعلیل نه جمله شرطیه جزائیه تعلیلیه شوه.

﴿۲۶۲﴾- إِذَالَمْ تَسْتَحْيِ فَاصْنَعْ مَاشِئْتَ (بخاری)

[تخریج:مشکوۃ:ص٤۳۱:س۸:عن ابن مسعود رض مرفوعا]

**ترجمه**﴿۞﴾ چه کله ته حیانه کوې نوکوه ته چه څه غواړې.

**تشریح**﴿۞﴾ پوره حدیث دغه شان دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل:چه بیشکه دهغه څیزونونه چه

خلقو بیاموندل ړومبئ خبره دنبوت دکلام نه.هغه دادی چه کله شرم اوحیادرکښې پاتې نشی نوچه څهٔ غواړې کوه.مطلب دادې چه تماموانبیاؤسابقین نه دهرنبی په شریعت کښې په دې خبره اتفاق دې چه کله حیاختمه شی نوچه څهٔ غواړې هغه کوه.یعنی چه کله تالره دګناه دکارنه حیانه منع کوی نوبیاچه ستا څهٔ خوښه وی ګناه کوه.دهغې بدله به الله تعالی درکوی. ګویاپه حدیث کښې وعیددې.چه دهر یوې ګناه نه شرم اوکړه.او ګناه پریږده.الله تعالی دې وینی.ددې جملې دویمه معنی داده چه کله ته کارشروع کړې یاڅهٔ کارکوې نودا اوګوره چه په دې کارکښې تاته څهٔ شرم اوحیاشته دې اوکه نشته.که چرې شرم اوحیاوی نوفورا ئې پریږده اوکه نه وی نوکوه ځکه چه حیا دګناه نخښه ده.دسلیم الطبع انسان دپاره(مرقات جلد۹ ۲۹۰۱)

**فائده**۞ فَاصنَع امردې.لهذا انشاء ده.خودلته انشاء په معنی دخبردې.په کوم امرکښې چه دنا مناسبه خبرې یاکارحکم وی.نوهغه امرپه معنی دخبروی.یعنی داخبر ورکولې شی.چه دا نامناسبه خبره یاکار که اوکړې نو سزابه ورکولې شی.(مرقات ج۹\۲۸۹)

**فائده**۞ دحیا لغوی صرفی تحقیق اودحیا قسمونه ① نفسانی② ایمانی سره دمثالونو نه په حدیث ۷۲ کښې تیرشوی دی.

**ترکیب**۞ اذاشرطیه لم تستحی فعل انت فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط شو. ف جزائیه اصنع فعل انت فاعل ماموصوله،شئت فعل فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه صلې.موصول سره دصله نه مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه انشائیه جزاء.شرط دجزاء نه جمله شرطیه جزائیه شوه.

﴿۲۲۳﴾- اِذَااَکَلَ اَحَدُکُمْ فَلْیَاْکُلْ بِیَمِیْنِهٖ وَاِذَاشَرِبَ فَلْیَشْرَبْ بِیَمِیْنِهٖ(مسلم)

[تخریج:مشکوة:ص۳۶۳:س۱٤:عن ابي عمر) مرفوعا]

**ترجمه**۞ هر کله چه په تاسو کښې څوك خوراك کوی هغه ته پکاردی چه خوراك کوی په ښی لاس سره اوچه کله څکل کوی نوهغه ته پکاردی چه په ښی لاس سره څکل اوکړی.

**تشریح**۞ که چرې ښی لاس کښې څهٔ تکلیف نه وی نوهمیشه په ښی لاس خوراك پکاردې. اوښې لاس باندې څکل پکاردی.داسې نهٔ دی پکارچه دخوراك څښاك شروع په ښې لاس سره اوکړی.اونورباقی ئې په ګس لاس سره اوخوړل اوڅکل ځکه چه ښې لاس دخوراك څښاك دپاره دې.اود ښو څیزونو نیولو دپاره دې اوګس لاس د استنجا دپاره دې.البته دښی لاس امداد دپاره ګس لاس په خوراك څکاك کښې هم مددګار جوړولې شی.او استنجا دپاره اصل ګس لاس دې.خوښې لاس مددګار جوړولې شی.

ترکیب۞ اذا شرطیه، اکل فعل.احدکم مضاف مضاف الیه فاعل،فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه،لیاکُل فعل هُو فاعل،ب جار،یمینه مضاف مضاف الیه. مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور،جاسره دمجرورنه متعلق شو فعل پورې،فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه جزا دشرط شوه.شرط سره دجزاء نه معطوف علیه، واوْ عاطفه، شرب فعل هُو فاعل، فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه لیشرب فعل هو فاعل،باب جار، یمینه مضاف مضاف الیه،مضاف سره دمضاف الیه نه مجرور،جارسره دمجرورنه متعلق شو فعل پورې، فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه انشائیه جزا شوه.شرط سره دجزاء نه معطوف،معطوف سره دمعطوف علیه نه جمله شرطیه جزائیه معطوفه شوه.

﴿۲٦٤﴾- إِذَادَخَلَ أَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يَجْلِسَ

[(رواه بخاري ومسلم)تخریج:مشکوة:ص٦٨:س٢٣:عن ابی قتادةؓ مرفوعا]

**ترجمه**۞ کله چه تاسو کښې څوك داخل شی جومات ته نوهغه له پکاردی چه دوه رکعته اوکړی دکیناستلونه مخکښې.

**تشریح**۞ هرسړی دپاره داکارمستحب دې چه کله هغه دیوجومات په حدودوکښې داخل شی نود کیناستلونه مخکښې دوه رکعته نفل مونځ اوکړی.دصباپه وخت کښې دوه رکعته سنت کول کافی دی.ځکه چه دصبا دختلونه روستو دنمر ختلوپورې نفل کول مکروه دی.اوکه د مازیگر نه روستو جومات ته داخل شو،نوبیا به هم نفل نه کوی.غرض دادې چه داوقات مکروه نه علاوه هروخت چه جومات ته داخل شی نودوه رکعته نفل صرف مستحب دی نه فرض دی اونهٔ واجب یعنی که چرې دکیناستلونه مخکښې ئې اوکړل نودیرثواب دې.که چرې دکیناستلونه روستوبیاپاڅیدلواوادائې کړل نو لږثواب به ده ته ملاویږی.که چرې بالکل ئې اونه کړل نوهم هیڅ گناه نشته.خویومستحب کارصرف په دې خیال چه دامستحب دې پریښودل نهٔ دې پکار.ځکه چه نیکی که هرڅومره وړه وی وړه ئې مه گڼړه.الله تعالی خو بخښنې دپاره بهانه گوری.

**ترکیب**۞اذاشرطیه دخل فعل احدکم مضاف مضاف الیه فاعل المسجدمفعول به فعل سره دفاعل اومفعوا به نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه لیرکع فعل هو فاعل رکعتین مفعول به قبل مضاف ان مصدریه یجلس فعل هو فاعل فعل سره دفاعل نه جمله فعلیه خبریه په تاویل دمصدرسره مفعول فیه شو.فعل سره دفاعل اومفعول به مفعول فیه نه جمله فعلیه انشائیه جزاشوه.شرط سره دجزاء نه جمله شرطیه جزائیه شوه.

﴿۲۶۵﴾- إِذَا انْتَعَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَبْدَأْ بِالْيَمِنٰى وَإِذَا نَزَعَ فَلْيَبْدَأْ بِالشِّمَالِ لِيَكُنِ الْيُمْنٰى أَوَّلَهُمَا تُنْعَلُ وَآخِرَهُمَا تُنْزَعُ "(بخاري ومسلم) [تخريج:مشكوة:ص۳۷۹:س۲۷:عن ابي هريرةؓ مرفوعا]

**ترجمه**۞ چه كله تاسو كښې يو كس پيزار په خپو كوى نو هغه ته پكاردى چه شروع اوكړى د ښئ خپې نه او چه كله ئې اوباسى نو پكاردى چه شروع اوكړى د كسې خپې نه.دې د پاره چه ښئ خپه ددې دواړو) خپونه (اولنئ شى.كوم ته چه اغوستولې شى اودغه دواړو)خپو) نه دويمه شى چه ويستلې شى.

**تشريح**۞ په خپو كولو كښې سنت طريقه داده چه اول ښئ خپه پيزاركښې وركړې شى اوبيا كسه خپه.اوپه ويستلو كښې ددې په خلاف كول پكاردى.يعنى اول كسه خپه دپيزار نه ويستل پكاردى بيا ښئ.چه دپيزارپه خپو كولو كښې اوويستلو دواړو صورتونو كښې د ښې خپې خيال اوساتلې شى.ځكه چه د په خپو كولو په وخت به شروع د ښې خپې نه وى او دويستلو په وخت كښې به هم په ښې خپه اختتام اوشى.

**فائده**۞ جومات ته دتلو په وخت دې اول كسه خپه دپيزار نه راوُباسى اوهم په دغه پيزار دې كيږدى.چه ښئ خپه روستو د پيزار نه اووځى اوجومات ته مخكښې ننوځى.اودجومات نه د وتلو په وخت دې اول كسه خپه دجومات نه اوباسى په پيزار دې كيږدى.چه ښئ خپه دجومات نه روستو اوځى او اول پيزار ته ننوځى.

**تركيب**۞ اذاشرطيه انتعل فعل احدكم مضاف مضاف اليه فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعليه خبريه شرط.ف جزائيه ليبداء فعل هو فاعل باليمنى جار مجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه انشائيه جزاء شوه.شرط سره دجزاء نه معطوف عليه.واوعاطفه اذاشرطيه نزع فعل هو فاعل.فعل سره دفاعل نه جمله فعليه خبريه شرط شو.ف جزائيه ليبداء فعل هو فاعل بالشمال جارمجرورمتعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه انشائيه جزاء.شرط سره دجزاء نه معلل ل تعليليه تكن فعل ناقص اليمنى دده اسم اولهمامضاف مضاف اليه ذوالحال، تنعل فعل مجهول،هِيَ نائب فاعل.فعل سره دنائب فاعل نه جمله فعليه خبريه حال.ذوالحال سره دحال نه معطوف عليه واوعاطفه اخرهمامضاف مضاف اليه ذوالحال.تنزع فعل مجهول هى نائب فاعل.فعل سره دنائب فاعل نه جمله فعليه خبريه حال.ذوالحال سره دحال نه معطوف.معطوف عليه سره دمعطوف نه خبر دفعل ناقص.تكن سره دخپل اسم اوخبرنه جمله فعليه انشائيه تعليل.معلل سره دتعليل نه جمله شرطيه جزائيه تعليله شوه.

﴿۲۶۶﴾- إِذَا أَطَالَ أَحَدُكُمُ الْغَيْبَةَ فَلَا يَطْرُقُ أَهْلَهُ لَيْلًا (بخاري ومسلم)

[تخریج:مشکوۃ:ص۳۳۹:س۷:عن جابر مرفوعا]

**ترجمه﴿﴾** کله چه اورد کړی یوکس له تاسونه غائب والې نوهغه دې نۀ راځی خپل کورته په شپه کښې.

**تشریح﴿﴾** کله چه سفر اورد شی نوبهتره داده چه دشپې کورته راتلل نۀ دی پکاروجه ① داده چه کوروالا ته علم نشته هغوی به په ارام سره اوده وی نواوس دده راتلوسره سم به دهغوی خوب خراب شی. ② وجه داده چه دشپې به ښځه ګډ وډ حالت کښې وی.ویښته به ئې خواره واره وی اوعجیبه شکل به ئې وی.که چرې د ورځې راشې نوهغه به تیاره وی ستااستقبال به اوکړی.داخبره دې حدیث نه روستو په مشکواة کښې دبل حدیث نه معلومیږی.چه دجابرؓ نه روایت دې چه رسول اللهﷺ اوفرمائیل چه کله تاسودشپې کورته راځئ نوترهغه وخته پورې مه داخلیږئ چه ترڅو پورې ښځه تیارې اونه کړی.اوګومنځ وغیره اونه کړی.(انتهی)

ځکه چه یوخوپه دې کښې تکلیف ورکول دی.دویمه داچه دښځې نه دنفرت امکان دې.

**ترکیب﴿﴾** اذاشرطیه اطال فعل احدکم مضاف مضاف الیه فاعل الغیبۃ مفعول به تول سره یو ځائې جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه لایطرق فعل اهله مضاف مضاف الیه مفعول به لیلا مفعول فیه.فعل سره دفاعل مفعول به اومفعول فیه جمله فعلیه انشائیه جزاء.شرط سره دجزاء جمله فعلیه شرطیه جزائیه شوه.

﴿۲۶۷﴾- اِذَادَخَلْتُمْ عَلَى الْمَرِيْضِ فَنَفِّسُوْالَهٗ فِيْ اَجَلِهٖ فَاِنَّ ذَالِكَ لَا يُرَدُّ شَيْئًا وَيَطِيْبُ بِنَفْسِهٖ (ترمذی)

[تخریج:مشکوۃ:ص۱۳۷:س۱۱:عن ابی سعید مرفوعا]

**ترجمه﴿﴾** کله چه داخل شئ مریض باندې نوتسلی ورکوئ هغه ته دهغه دمرګ متعلق بیشکه داواپس کول نه کوی دهیڅ څیز اوخوشحالوی دهغۀ زړه.

**تشریح﴿﴾** چه کله تاسو یوبیمارته ورشئ نوهغه اګرچه په مرض الموت کښې وی نوتاسوهغۀ ته تسلی ورکړئ چه زربه جوړشې.داورته وائې چه: ستاجوړیدل مشکل دی بلکه هغۀ ته ښۀ تسلی ورکړئ چه بیماری څۀ راځی ته هیڅ فکرمه کوه انشاء الله چه زربه جوړشې.داتسلی دې دپاره نه وی چه ته مرګ واپس کوې بلکه صرف دبیمار زړه خوشحاله ول مقصودوی.

**ترکیب﴿﴾** اِذَا شرطیه دَخَلْتُمْ فعل فاعل عَلَى الْمَرِيض جارمجرور متعلق په فعل پورې.فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعلیه خبریه شرط شو.ف جزائیه نفسوا فعل امر سره فاعل نه له جارمجرورمتعلق اول په فعل پورې فی جاجله مضاف مضاف الیه مجرور.جارسره د مجرورنه متعلق ثانی دفعل دپاره.فعل سره دفاعل اومتعلقین نه جمله فعلیه انشائیه جزاء.شرط سره دجزانه معلل ف تعلیلیه ان حرف مشبه بالفعل ذلك دده اسم لایرد فعل هو فاعل شیئا مفعول به.فعل سره دفاعل اومفعول به نه جمله فعلیه خبریه معطوف علیه شوه. واو عاطفه

يطيب فعل هو فاعل ب جار نفسه مضاف مضاف اليه مجرور جار سره دمجرور نه متعلق په فعل پورې. فعل سره دفاعل اومتعلق نه جمله فعليه خبريه معطوف شوه. معطوف عليه سره دمعطوف نه خبرد انَّ. انَّ سره داسم اوخبرنه جمله اسميه خبريه تعليل. معلل سره دتعليل نه جمله شرطيه جزائيه تعليليه شوه.

## ذِكْرُ بَعْضِ الْمُغَيَّبَاتِ

### اَلَّتِيْ اَخْبَرَالنَّبِيُّ بِهَا وَظَهَرَتْ بَعْدَ وَفَاتِهٖ صَلَوَاتُ اللّٰهِ وَسَلَامُهٗ عَلَيْهِ

**ترجمه**: دغيب (دبعضې خبرو) څه ذكر. هغه غيب چه دهغې خبرونه كړې دي نبي كريم ﷺ اوښكاره شو هغه خبرد نبي كريم ﷺ دوفات نه روستو دالله ﷻ رحمت اوسلامتي دې نازل شي په هغوى باندې.

﴿۱﴾- قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَزَالُ مِنْ أُمَّتِيْ أُمَّةٌ قَائِمَةٌ بِأَمْرِ اللّٰهِ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ وَلَا مَنْ خَالَفَهُمْ حَتّٰى يَأْتِيَ أَمْرُ اللّٰهِ وَهُمْ عَلٰى ذٰلِكَ . (بخاري ومسلم) تخريج: مشكوة: ص۵۸۳ :س۱۹ :عن معاويه رضي مرفوعا]

**ترجمه**: او مختصرمطلب نبي كريم ﷺ اوفرمائيل: چه هغه د رښتونو سرداردې. چه هميشه به وى زما په امت كښې يوجماعت ولاړ دالله تعالى په حكم باندې. هغوى ته به نقصان نشي رسولې هغه سړې چه ددوى امداد نه كوى. اونه هغه سړې چه ددوى مخالفت كوى. تردې چه راشي حكم دالله تعالى اوهغه به هم په دغه حالت باندې وى يعنى دقيامته پورې به زما دامت نه يوجماعت ضروريه حق باندې وى څوك مخالفت يارسواكونكې به هغوى ته نقصان نۀ شي رسولې.

﴿۲﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكُوْنُ فِيْ اٰخِرِالزَّمَانِ دَجَّالُوْنَ كَذَّابُوْنَ يَأْتُوْنَكُمْ مِنَ الْاَحَادِيْثِ بِمَالَمْ تَسْمَعُوْا اَنْتُمْ وَلَا اٰبَائُكُمْ فَاِيَّاكُمْ وَاِيَّاهُمْ لَا يُضِلُّوْنَكُمْ وَلَا يَفْتِنُوْنَكُمْ . (رواه مسلم)

[ تخريج: مشكوة: ص۲۸ :س۲۳ :عن ابى هريرة مرفوعا]

**ترجمه** : او مختصر مطلب﴿ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه وی به په اخیری زمانه کښې ډیر دروغژن دجالان راوړی به تاسو ته هغه احادیث، چه هغه به نه تاسو اوریدلی وی اونه ستاسو پلار نیکه.تاسوځپل ځانونه دهغوی نه بچ کړئ چه هغوی تاسوګمراه نه کړی اوهغوی تاسو فتنه کښې وانه چوی.دځان نه داحادیثوجوړولو مسئله مخکښې تفصیل سره په حواله د ۲۲۱ حدیث باندې تیره شوې ده.دحقیقی دجال ځپل نوم یعقوب دې.(موضح القرآن)

﴿۳﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ النَّاسِ قَرْنِيْ، ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ يَجِيْئُ قَوْمٌ تَسْبِقُ شَهَادَةُ أَحَدِهِمْ يَمِيْنَهٗ وَيَمِيْنُهٗ شَهَادَتَهٗ.

(روه بخاري ومسلم) تخریج:مشکوة:ص۳۲۷:س۱٤:عن ابن مسعود) مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب**﴿ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل:چه په خلقوکښې دټولونه بهترین زماد زمانې خلق دی.بیاهغه خلق چه دوې ته نزدې وی.(صحابه" اوتابعین") بیاهغه خلق چه دوی ته نزدې وی (تبع تابعین رحمهم الله) بیابه یوداسې قوم راشی چه په هغوی کښې به دیوسړی ګواهی مخکښې کیږی دهغه قسم نه.اوکله به دهغه قسم وړاندې کیږی دهغه دګواهۍ نه.یعنی قسمونه اوګواهۍ به عام شی.هرسړې به دځپل مطلب په خاطردروغ قسمونه خوری اوکله به ددروغوګواهی کوی.

﴿۴﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَبْقٰى أَحَدٌ إِلَّا أٰكِلُ الرِّبٰوا فَإِنْ لَّمْ يَأْكُلْهُ أَصَابَهٗ مِنْ بُخَارِهٖ (رواه احمدوابوداود) [ تخریج:مشکوة:ص٢٤٥:س۱۲:عن ابی هریرة مرفوعا]

**ترجمه** اومختصرمطلب﴿ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه خامخابه راشی خلقوباندې یوه زمانه چه هغې کښې به هیڅ یوسړې باقی پاتې نشی مګرسود خوړونکې.که چرې هغه سود اونه خوری.نودهغې اثربه ورته ضرور رسیږی.

په سود مختصرنظر﴿ یودفطرت سلیمه والا انسان داسې بې رحمی نه برداشت کوی چه یوغریب اومجبورانسان چادولت مندته دځپل حاجت دپاره ورشی اوهغه زکوٰة ورکول خو پریږده.بلکه دا اراده اوکړی چه هغه ته څۀ قرض ورکړی اوپه هغې باندې سود اضافه واخلم اودهغۀ په جائیداد وغیره باندې په ظلم سره قبضه اوکړم.ددې وجې نه دسودعام رواج د انسان دفائدې مخالف دې.همدغه وجه ده چه په تورات کښې هم دسودممانعت موجود دې.دسود باره کښې ړومبې قانونی حکم دغزوه احدپه موقعه س۳ھ کښې نازل شو.اودسود دممانعت اخری قطعی حکم چه اې ایمان والو:دخدائې ﷻ نه اویریږئ او باقی سود پریږدئ.که چرې داسې نۀ کوئ نودالله اودهغۀ درسول دطرفه اعلان جنګ دې الخ داحکم دفتح مکې نه پس نازل شو.ددې حکم نه پس داسلامی مملکت په دائره حدود کښې سودی

کاروبار یو فوج داری جرم اوګرځیدهٔ.په دغه شان سودی کاروبار کوونکو قبیلو له خبرداري ورکړې شو که چرې دا کاروبار نهٔ پریږدئ نوستاسوخلاف به فوجی کاروائی اوکړې شی.هم ددې اخری حکم په وجه باندې دحضرت ابن عباس﷛ اوبعضونوروااهل علمونه منقول دی چه په دارالاسلام کښې سود خوړونکی دپه توبې باندې مجبورکړې شی.که چرې اونه منی نوقتل دې کړې شی.(جصاص ج۱\۵۵۹. کلید بهشت صفحه ۳۹۰)

د قرآن اوحدیث په رنړا کښې د سود مذمت قرآن اوحدیث چه سودخوړوله دکوموعذابونودهمکی ورکړې ده.دچاچه ترګې شته هغوی داوګوری.دچاچه غوږونه شته هغوی دواوری.اودچاچه زړونه شته هغوی دسوچ اوکړی.هغوی ته ښکاره وئیلې شوی دی چه ① نه په نوروباندې ظلم کوئ نه په خپل ځان ظلم کوئ.② په سودنه پریښودلوباندې الله تعالی اورسول سره جنګ اوکړئ.(سوره البقره آیت ۲۷۹) ③ حضرت ابوهریرة﷛ وائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه په سود کښې اویاګناهونه دی په هغې کښې دټولونه وړه ګناه خپلې مورسره دزناکولو برابرده.④ عبدالله بن حنظله صحابی﷛ وائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه دسودیودرهم دشپږو دیرشو زناګانونه بدتر دې.(مسنداحمد ،دارقطنی،بیهقی)⑤ حضرت ابوهریرة﷛ وائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دمعراج په شپه زهٔ یوداسې قوم ته بوتلې شوم چه دهغوی خیټې دومره غټې وې لکه کوټې په هغې کښې لوئې لوئې ماران وو چه دبهرنه صفا ښکاریدل.مااووئیل اې جبرائیل داکوم خلق دی؟ هغوی راته اووئیل داخلق سودخواره دی.(مسنداحمد)(کلیدبهشت صفحه۳۸۹ اومشکواة باب الربوا فصل ثالث صفحه۲۴۷)

﴿۵﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الدِّيْنَ بَدَأَ غَرِيْبًا وَسَيَعُوْدُ كَمَا بَدَأَ فَطُوْبٰى لِلْغُرَبَاءِ وَهُمُ الَّذِيْنَ يُصْلِحُوْنَ مَا اَفْسَدَ النَّاسُ مِنْ بَعْدِيْ مِنْ سُنَّتِيْ . (ترمذی)

[تخریج:مشکوة:ص:۳۰:س۱۳:عن عمروبن عوف﷛ مرفوعا]

**ترجمه** او مختصرمطلب﴿﴾ او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بیشکه دین شروع شوې وو. اجنبی (نااشنا) اونزدې ده چه واپس به بیاهغه شان شی.څنګه چه شرورع شوې وو.پس خوشخبری ده دنا آشنا خلقو دپاره چه اصلاح کوی دهغه څیز چه خلقوخراب کړې دې زما نه روستو زما دسنت نه.یعنی په شروع کښې خلقودین غریب او ناآشنا ګنړلو اوقیامت ته نزدې به دین بیا هغه زوړحالت ته واپس راشی.هغه خلق به کامیاب وی چه دبدعت وغیره اصلاح کوی اودهغوی دپاره به خوشحبری وی.

﴿۶﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْمِلُ هٰذَا الْعِلْمَ مِنْ كُلِّ خَلَفٍ عُدُوْلُهٗ يَنْفُوْنَ عَنْهُ تَحْرِيْفَ الْغَالِيْنَ وَانْتِحَالَ الْمُبْطِلِيْنَ وَتَاوِيْلَ الْجَاهِلِيْنَ.

(رواه بيهقي في كتاب المدخل) [تخريج:مشكوة:ص ٣٦:س٢:عن ابراهيم بن عبدالرحمٰن العذري رض مرفوعا]

**ترجمه** او مختصر مطلب﴿﴾ او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اوچت به کړی داعلم روستو راتلونکی کښې عادلان خلق اولړې کوی به ددینه دتجاوز کونکو خلقو بدلون اود باطلو خلقو دروغ اود جاهلانو تاویل. یعنی دصحیح پوهه لرونکی به هم راشی چه دبدعتیانو خلقو دحدنه تجاوزکول اوهره خبره خپل خان طرف ته دمنسوب کونکواودخپل طرفه دقرآن اوحدیث غلط تاویلونه کونکی به لرې کوی چه دهغې په وجه به اصلی علم اواصلی دین ترقیامته پورې باقی پاتې وی.

﴿۷﴾- قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتّٰى يَأْتِيَ عَلَى النَّاسِ يَوْمٌ لَا يَدْرِي الْقَاتِلُ فِيْمَ قَتَلَ وَلَا الْمَقْتُوْلُ فِيْمَ قُتِلَ فَقِيْلَ كَيْفَ يَكُوْنُ ذٰلِكَ قَالَ اَلْهَرْجُ اَلْقَاتِلُ وَالْمَقْتُوْلُ فِي النَّارِ (مسلم)

[تخريج:مشكوة:ص٤٦٢:س٢٢:عن ابي هريرة رض مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب**﴿﴾ او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل قسم په هغه ذات دې دچاپه لاس کښې زما روح دې چه دنیابه ترهغې نه ختمیږی چه په خلقوباندې راشی یوه ورځ چه پته به نه لګی قاتل ته چه په څهٔ وجه باندې ده قتل اوکړو. اونه مقتول ته چه په څهٔ باره کښې دې قتل کړې شو. (صحابوٴ عرض اوکړو) چه دابه څنګه وی. نووې فرمائیل چه هغه فتنه ده قاتل اومقتول به جهنم ته ځی. مقتول به ځکه جهنم ته ځی چه هغعه دا آرزو لرله چه زه دې مخکښې قتل کړم.

﴿۸﴾- قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ وَيُقْبَضُ الْعِلْمُ وَتَظْهَرُ الْفِتَنُ وَيُلْقَى الشُّحُّ وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ قَالُوْا وَمَا الْهَرْجُ قَالَ الْقَتْلُ. (بخاری ومسلم)

[تخريج:مشكوة:ص٤٢٦:س٢١:عن ابي هريرة رض مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب**﴿﴾ او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه زمانه په نزدې شی اوعلم به اوچت کړې شی اوفتنې به ښکاره شی اوبخل به واچولې شی اوهرج به زیات شی. صحابه رض وو تپوس اوکړوچه هرج څهٔ خیز دې؟وې فرمائیل چه قتل دې.

یعنی هرج په اصل کښې فتنې ته وئیلې شی. چونکه فتنه به دقتل سبب وی. ددې وجې نه قتل ته هرج اووئیلې شو. زمانه به نزدې شی. ددې مطلب ترمذی کښې دانس مرفوعا دا روایت دې چه کال به دمیاشت اومیاشت به دهفتې په شان اوهفته به دورځې پشان اویوه

ورځ دګینتي پشان اویوه ګینته داور دیوبخری پشان. مطلب دادې زمانه به زرتیریږی پته به نۀ لګی دوخت قدربه نۀ کیږی.

﴿۹﴾- قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهٖ لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتّٰى يَمُرَّ الرَّجُلُ عَلَى الْقَبْرِ فَيَتَمَرَّغُ عَلَيْهِ وَيَقُولُ يَالَيْتَنِي كُنْتُ مَكَانَ صَاحِبِ هٰذَا الْقَبْرِ وَلَيْسَ بِهِ الدِّيْنُ إِلَّا الْبَلَاءُ. (رواه مسلم)

[تخریج:مشکوة:ص۴۶۹ :س۲۴ :عن ابی هریرةؓ مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب**۞ او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه قسم دې په هغه ذات دچاپه لاس کښې چه زما روح دې چه دنیابه ختمه نه شی ترهغې چه یوسړې به په قبرباندې تیریږی نو غورزیږی به په هغې باندې اووائی به چه:اې کاش چه زۀ ددې قبروالاپه ځائې وې.دابه ددین په وجه نۀ وائی بلکه دمصیبت په وجه به وائې.یعنی پریشانی اومصیبتونه به ډیروی قیامت ته نزدې.

﴿۱۰﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْشِكُ اَنْ يَّأْتِيَ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَبْقٰى مِنَ الْاِسْلَامِ اِلَّا اِسْمُهٗ وَلَا يَبْقٰى مِنَ الْقُرْاٰنِ اِلَّا رَسْمُهٗ مَسَاجِدُهُمْ عَامِرَةٌ وَهِيَ خَرَابٌ مِنَ الْهُدٰى عُلَمَاؤُهُمْ شَرٌّ مِنْ تَحْتِ اَدِيْمِ السَّمَاءِ مِنْ عِنْدِهِمْ تَخْرُجُ الْفِتْنَةُ وَفِيْهِمْ تَعُوْدُ. (بیهقی)

[تخریج:مشکوة:ص۳۸ :س۴ :عن علیؓ مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب**۞ او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل:نزدې ده چه راشی په خلقوباندې یو زمانه پاتې به نه شی داسلام نه مګردهغۀ نوم اوپاتې به نه شی دقرآن نه مګردهغه نقش. ددغه خلقوجوماتونه به آبادوی اوهغه به ویران (خراب) وی دهدایت نه.دهغوی علماء به ډیر ناکاره وی دآسمان دځرمن دلاندې.دهغوی نه به فتنه راوځی اوهم هغوی کښې به واپس کیږی.

﴿۱۱﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكُوْنُ فِيْ اٰخِرِ الزَّمَانِ اَقْوَامٌ اِخْوَانُ الْعَلَانِيَةِ وَاَعْدَاءُ السَّرِيْرَةِ فَقِيْلَ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ وَكَيْفَ يَكُوْنُ ذٰلِكَ قَالَ ذٰلِكَ بِرَغْبَةِ بَعْضِهِمْ اِلٰى بَعْضٍ وَرَهْبَةِ بَعْضِهِمْ مِنْ بَعْضٍ(رواه احمد)

[تخریج:مشکوة:ص۴۵۵ :س۱۹ :عن معاذبن جبلؓ مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب**۞ اونبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه په اخره زمانه کښې به څۀ قومونه وی چه په ښکاره کښې به رونړه وی اوپټ به دشمنان وی نو اووئیلې شوچه دابه څنګه وی.وې فرمائیل چه دابه دبعضودلودبعضونه دطمع په وجه وی.اودبعضودبعضونه د ویرې دوجه نه.یعنی مخامخ به دوستان وی اوپشی شابه دشمنان وی.تاسودهغوی نه ځان بچ کړې.

﴿۱۲﴾- قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَذْهَبُ الصَّالِحُوْنَ الْأَوَّلُ فَالْأَوَّلُ وَتَبْقٰی حُفَالَةٌ كَحُفَالَةِ الشَّعِیْرِ أَوِ التَّمْرِ لَا یُبَالِیْهِمُ اللّٰهُ بَالَةً (بخاری) [تخریج مشکوة:ص۴۵۸ :س۲۶ :عن مرواس الاسلمی رضی اللہ عنہ کان من اصحاب الشجرة مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب** او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه نیکان خلق به لاړشي یودبل نه روستواوباقي به پاتې شي بوس څنګه چه د اوربشو اوکجورو بوس وی.الله تعالی به دهغوی پروا نه کوی.پرواکولوسره.په یوروایت کښې حثالة دې.دحفالـــة معنی یوه ده.یعنی دیو څیز ردی اوبیکاره.یعنی قیامت ته نزدې به ردی پاتې شی.صرف نوم به پاتې وی دکاریه نه وی مطلب دادې چه تاسو نیکان جوړشئ په ردی کښې مه داخلیږئ.

﴿۱۳﴾- قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰی یَكُوْنَ أَسْعَدُ النَّاسِ بِالدُّنْیَا لُكَعَ ابْنُ لُكَعَ.

[تخریج:مشکوة:ص۴۵۹ :س۵ :عن حذیفه رضی اللہ عنہ مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب** او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه قیامت به نه قائمیږی ترهغه وخت پورې چه د دنیاپه اعتبارسره په ټولوخلقوکښې دټولونه زیات نیك به کمینه (رزیل) دکمینه ځوئې وی.یعنی یوسړې به هم الله الله ویونکې پاتې نشی.ټول به رزیلان درزیلانوځامن پاتې شی.هله به قیامت راځی.

﴿۱۴﴾- قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَأْتِیْ عَلَی النَّاسِ زَمَانٌ الصَّابِرُ فِیْهِمْ عَلٰی دِیْنِهٖ كَالْقَابِضِ عَلَی الْجَمَرِ. (ترمذی)

[تخریج:مشکوة:ص۴۵۹ :س۱۳ :عن انس رضی اللہ عنہ مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب** او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه رابه شی په خلقوباندې یوزمانه. صبرکونکی به په دغه خلقوکښې په خپل دین باندې داسې وی لکه په موټی کښې داور سکروټې نیونکې یعنی په دین باندې عمل کول به قیامت ته نزدې ډیرزیات مشکل شی.دا دهغه وخت ارشاددې چه نن صباډیرزیات واضح شوې دې.

﴿۱۵﴾- قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یُوْشِكُ الْأُمَمُ أَنْ تَدَاعٰی عَلَیْكُمْ كَمَا تَدَاعَی الْأَكَلَةُ إِلٰی قَصْعَتِهَا، فَقَالَ قَائِلٌ وَمِنْ قِلَّةٍ نَحْنُ یَوْمَئِذٍ؟ قَالَ، بَلْ أَنْتُمْ یَوْمَئِذٍ كَثِیْرٌ وَلٰكِنَّكُمْ غُثَاءٌ كَغُثَاءِ السَّیْلِ وَلَیَنْزِعَنَّ اللّٰهُ مِنْ صُدُوْرِ عَدُوِّكُمُ الْمَهَابَةَ، مِنْكُمْ وَلَیَقْذِفَنَّ فِیْ قُلُوْبِكُمُ الْوَهْنَ قَالَ قَائِلٌ یَارَسُوْلَ اللّٰهِ مَا الْوَهْنُ قَالَ حُبُّ الدُّنْیَا وَكَرَاهِیَةُ الْمَوْتِ. (رواه ابوداود)

[تخریج:مشکوٰة:ص۴۵۹:س۱۹:عن ثوبانؓ مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب:** اونبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه نزدې ده چه امتونه به په تاسوباندې (ستاسو خلاف) یوبل ته دعوت ورکوی.لکه چه څنګه دعوت ورکوی طعام ورکونکې ښخه خپلې کاسې ته.نویوویو نکی اووئیل چه زمونږدکمی په وجه به دغه شان کیږی.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه نه بلکه تاسوبه په دغه ورځ ډیرئې.لیکن ځګ به ئې لکه دبهیدونکو اوبو ځګ. اوخامخا اوبه باسی الله تعالی ستاسوددشمن دسینې نه ستاسو ویره او وبه غورزولې شی ستاسو زړونوکښې کمزورتیا.ویونکی اووئیل چه وهن څهٔ څیز دې؟ اې دالله رسوله؟هغوی اوفرمائیل چه ددنیامحبت او مرګ نه خوښول یعنی دوهن (کمزورئ) دسبب تپوس ئې اوکړو نووې فرمائیل چه کله ددنیا محبت شروع شی اومرګ ناخوښه شی نوبیاهغه څنګه جهاد کولې شی.لهذادداسې خلقورعب به هم ختمیږی اوپه زړه کښې بزدلی هم راځی.

﴿۱۶﴾- قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَخْرُجَ قَوْمٌ يَأْكُلُوْنَ بِأَلْسِنَتِهِمْ كَمَا تَأْكُلُ الْبَقَرَةُ بِأَلْسِنَتِهَا . (رواه احمد)

[تخریج:مشکوٰة:ص۴۱۰:س۱۰:عن سعدبن ابی وقاصؓ مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب:** او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه قیامت به نه قائمیږی ترهغې چه یو قوم را اووځی چه په خپلو ژبوسره به داسې خوراك کوی لکه چه څنګه غوا خوراك کوی پخپله ژبه یعنی هغه قوم به دحلال اوحرام فرق نه کوی.اوپه خپلوژبوسره به دخلقوتعریف کوی مال به حاصلوی.

﴿۱۷﴾- قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يُبَالِي الْمَرْءُ مَا أَخَذَ مِنْهُ أَمِنَ الْحَلَالِ أَمْ مِنَ الْحَرَامِ . (رواه البخاری)

[تخریج:مشکوٰة:ص۲۴۱:س۱۴:عن ابی هریرةؓ مرفوعًا]

**ترجمه او مختصرمطلب:** نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی:چه رابه شی په خلقوباندې یوه زمانه چه پروابه نهٔ کوی انسان چه کوم مال ئې واخستلو،آیا دحلال نه ئې واخستلواوکه دحرام نه.

﴿۱۸﴾- قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يَتَدَافَعَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ لَا يَجِدُوْنَ إِمَامًا يُصَلِّي بِهِمْ. (رواه ابوداود)

[تخریج:مشکوٰة:ص۱۰۰:س۱۶:عن سلامة بنت الحرمرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب:** او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه بیشکه دقیامت دنښو نه داده چه

جومات والابه يوبل لرې كوي هغوى به نهٔ بيامومي څوك امام چه مونځ ورته اوكړي يعني هيڅوك نيك انسان به نهٔ ملاويږي چه دوى ته امامت اوكړي شي.

﴿۱۹﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِنْ أَشَدِّ أُمَّتِي لِي حُبًّا نَاسٌ يَكُونُونَ بَعْدِي يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ رَآنِي بِأَهْلِهِ وَمَالِهِ .

[تخريج:مشكوة:ص۵۸۳:س۱۸:عن ابى هريرة مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب**۞ نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي:چه بيشكه زما دامت نه ماسره ډيرمحبت كونكي به هغه خلق وي چه زما نه روستوبه وي.په هغوى كښې به يوكس غواړي چه كاش ما اووينې دخپل اهل وعيال اومال په بدله كښې.يعني قيامت ته نزدې به هم ماسره محبت كونكي راځي اوهغوبه دا تمنااو آرزوكوي چه كاش زمونږاهل وعيال اومال قربان شي اومونږته د نبي كريم ﷺ زيارت نصيب شي.

﴿۲۰﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهُ سَيَكُونُ فِي اٰخِرِ هٰذِهِ الْاُمَّةِ قَوْمٌ لَهُمْ مِثْلُ اَجْرِ اَوَّلِهِمْ يَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُقَاتِلُوْنَ اَهْلَ الْفِتَنِ . (رواه البيهقى فى دلائل النبوة)

[تخريج:مشكوة:ص۵۸۴:س۴:عن عبدالرحمن ابن العلاء الحضرمى مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب**۞ او نبي كريم ﷺ اوفرمائيل:چه بيشكه نزدې ده چه وي به ددې امت په اخركښې يوقوم چه دهغوى دپاره به ددې امت دمخكنوپشان اجروي.هغوى به دنيكۍ امركوي.اود ګناه نه به منع كوي اودفتنې والؤ سره به جهګړه كوي.يعني دادقيامت دښو نښونه يوه نښه ده چه په اخركښې به دفتنې په وجه دنيكۍ ثواب دمخكنوپشان ملاويږي هغه قوم به دنيكۍ حكم كوي اوبدۍ نه به منع كوي.اودفتنې والاسره به.يعني دټولوشيعه ګانو او بدعتيانو سره به جنګ كوي.

﴿۲۱﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَنْفَعُ فِيْهِ اِلَّا الدِّيْنَارُ وَالدِّرْهَمُ . (رواه احمد)

[تخريج:مشكوة:ص۲۴۳:س۲:عن ابى بكربن ابى مريم رض مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب**۞او نبي كريم ﷺ اوفرمائيل:چه خامخا ضروربه راشي په خلقو باندې يوه زمانه چه په هغې كښې به ددرهم اودينارنه سواهيڅ څيز فائده نه وركوي.په هغه زمانه كښې به خلق دما ډګټلو اودمال دجمع كولوپه فكركښې مشغول وي.كه هغه هرڅنګه مال وي اومال جمع كول به ورته ښه معلوميږي.

﴿۲۲﴾- قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صِنْفَانِ مِنْ أَهْلِ النَّارِ لَمْ أَرَهُمَا قَوْمٌ مَعَهُمْ سِيَاطٌ كَأَذْنَابِ الْبَقَرِ يَضْرِبُونَ بِهَا النَّاسَ وَنِسَاءٌ كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ مُمِيلَاتٌ مَائِلَاتٌ رُءُوسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يَجِدْنَ رِيحَهَا وَإِنَّ رِيحَهَا لَتُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ كَذَا وَكَذَا. (مسلم)

[تخريج :مشكوة:ص۳۰۶ :س۲ :عن ابی هريرة رض مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب﴿﴾** او نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه دجهنميانودوه قسمونه دی چه ماهغه نۀ دی ليدلی يوه هغه قوم چه دهغوی سره به کوړې وی لکه چه دغوالکئ وی په هغې سره به خلق وهی.اوهغه ښځې چه کپړې به ئې اغوستې وی اوبربندې به وی.دابه دخلقو زړونوکښې خواهش پيداکونکی وی اوخلقوله به خپل ځان ته مائل کونکی وی.دهغوی سرونه به داسې وی لکه دبختی اوښ کاړه قُبونه هغوی به جنت ته نۀ داخليږی اونه به دجنت خوشبوئی بياموmی.اوبيشکه دجنت خوشبوئی موندلې شی ددومره دومره فاصلې نه(دلرې نه)

﴿۲۳﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَقْبِضُ الْعِلْمَ انْتِزَاعًا يَنْتَزِعُهُ مِنَ الْعِبَادِ وَلَكِنْ يَقْبِضُ الْعِلْمَ بِقَبْضِ الْعُلَمَاءِ حَتّٰى إِذَا لَمْ يَبْقَ عَالِمًا اتَّخَذَ النَّاسُ رُءُوسًا جُهَّالًا فَسُئِلُوا فَأَفْتَوْا بِغَيْرِ عِلْمٍ فَضَلُّوا وَأَضَلُّوا .

(بخاری ومسلم) [تخريج :مشكوة:ص۳۳ :س۹ :عن عبدالله بن عمر رض مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب﴿﴾** او نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه بيشکه الله تعالی به علم دخلقونه نۀ اوچتوی په راويستلوسره.ليکن اوچتولې به شی علم دعالمانو په وفات کولوسره.تردې چه هيڅ يوعالم به پاتې نشی.نوخلق به جاهلان سرداران جوړکړی.نوتپوس به کولې شی د جاهلانو نه.هغوی به بغيردعلم نه فتوی ورکوی نوهغوی پخپله هم گمراهان وی،اونورخلق به هم گمراه کړی.

﴿۲۴﴾- وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَلَّمُوا الْعِلْمَ وَعَلِّمُوهُ النَّاسَ تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَعَلِّمُوهَا النَّاسَ تَعَلَّمُوا الْقُرْآنَ وَعَلِّمُوهُ النَّاسَ فَإِنِّي امْرُءٌ مَقْبُوضٌ وَالْعِلْمُ سَيَنْقَبِضُ وَيَظْهَرُ الْفِتَنُ حَتّٰى يَخْتَلِفَ اِثْنَانِ فِي فَرِيضَةٍ لَا يَجِدَانِ أَحَدًا يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا

(دارمی) [تخريج :مشكوة:ص۳۸ :س۱۱ :عن ابن مسعود رض مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب﴿﴾** اونبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه علم زده کړئ اوهغه نوروخلقوته اوښايئ.اوتاسو فرائض (داسلام فرائض يادميراث علم) زده کړئ.اوهغه مخکښې نورو خلقوته اوښايئ اوقرآن زده کړئ اوهغه مخکښې نوروخلقوته اوښايئ،بيشکه زه اوچتولې شم

اوعلم به هم زردې چه اوچت کړی شي.اوفتنې به ښکاره شي تردې چه اختلاف به وی د دوو کسانومینځ کښې په یوفرض کښې نودواړه به فیصله کونکې نه مومی یعنی جهالت به عام وی څوك فیصلې والاعالم به هم نهٔ ملاویږی.

﴿۲۵﴾- قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِقْرَؤُا الْقُرْآنَ بِلُحُوْنِ الْعَرَبِ وَاَصْوَاتِهَا وَاِيَّاكُمْ وَلُحُوْنَ اَهْلِ الْعِشْقِ وَلُحُوْنَ اَهْلِ الْكِتٰبَيْنِ وَسَيَجِيْءُ بَعْدِيْ قَوْمٌ يُرَجِّعُوْنَ بِالْقُرْآنِ تَرْجِيْعَ الْغِنَاءِ وَالنَّوْحِ لَايُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ مَفْتُوْنَةٌ قُلُوْبُهُمْ وَقُلُوْبُ الَّذِيْنَ يُعْجِبُهُمْ شَأْنُهُمْ. (بیهقی) [تخریج:مشکوة:ص ۱۹۱:س۲۱:عن حذیفه رض مرفوعا]

**ترجمه او مختصرمطلب** ﴿ او نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه قرآن وایئ په عربی لهجوباندې په عربی اوازونوباندې.اوځان ساتئ دعاشقانو دلهجونه اود دووکتابونو والا دلهجونه (یهود اونصاری نه) او زرده چه رابه شي زما نه روستویوقوم چه قرآن به وائی په اوازواپس کولوسره دسندرې راګرځولوپشان اودژړاپشان.قرآن به ددوی دمرونه وړاندې نهٔ تیریږی.ددوی زړونه به په فتنه کښې پراته وی اودهغه چاړونه هم چاله چه خوشحالوی ددوی داحالت (دلوستلو)

فائده﴿ داپنځه ویشت ۲۵ دغیبوخبرونه نبی کریم ﷺ دالله تعالی دطرفه نقل کولوسره خودلی دی.نه داچه پخپله نبی کریم ﷺ پخپله عالم الغیب وو.عالم الغیب خوهغه څوك دی چه بغیردڅه واسطې نه یعنی بغیر دڅهٔ ذریعې نه په خپل قدرت علمی سره څهٔ معلوم کړی اودهغې خبرورکړی.نبی کریم ﷺ ته چه کوم خبرونه دغیب خودلی شوی دی نوهغه نبی کریم ﷺ خلقوته رسوی چه هغې ته انباء غیب (دغیب خبرونه) وئیلې شي.نه چه علم غیب(غیب پیژندل)

تَمَّ الْبَابُ الْاَوَّلُ وَيَلِيْهِ الْبَابُ الثَّانِيْ بِحَمْدِاللّٰهِ وَحُسْنِ تَوْفِيْقِهٖ

# اَلْبَابُ الثَّانِيْ فِي الْوَاقِعَاتِ وَالْقِصَصِ

## وَفِيْهِ اَرْبَعُوْنَ قِصَّةً

﴿۱﴾- عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ اِذْطَلَعَ عَلَيْنَا رَجُلٌ شَدِيْدُ بَيَاضِ الثِّيَابِ شَدِيْدُ سَوَادِ الشَّعْرِ لَايُرٰى عَلَيْهِ اَثَرُ السَّفَرِ وَلَايَعْرِفُهٗ مِنَّا اَحَدٌ حَتّٰى جَلَسَ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَسْنَدَ رُكْبَتَيْهِ اِلٰى رُكْبَتَيْهِ وَوَضَعَ كَفَّيْهِ عَلٰى فَخِذَيْهِ

وَقَالَ يَا مُحَمَّدُ أَخْبِرْنِي عَنِ الْإِسْلَامِ قَالَ الْإِسْلَامُ أَنْ تَشْهَدَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللّٰهِ وَتُقِيْمَ الصَّلٰوةَ وَتُؤْتِيَ الزَّكٰوةَ وَتَصُوْمَ رَمَضَانَ وَتَحُجَّ الْبَيْتَ إِنِ اسْتَطَعْتَ إِلَيْهِ سَبِيْلًا قَالَ صَدَقْتَ فَعَجِبْنَا لَهُ يَسْأَلُهُ وَيُصَدِّقُهُ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْإِيْمَانِ قَالَ أَنْ تُؤْمِنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَتُؤْمِنُ بِالْقَدْرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ قَالَ صَدَقْتَ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْاِحْسَانِ قَالَ أَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنِ السَّاعَةِ قَالَ مَا الْمَسْئُوْلُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنْ أَمَارَاتِهَا قَالَ أَنْ تَلِدَ الْأَمَةُ رَبَّتَهَا وَأَنْ تَرَى الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الْعَالَةَ رِعَاءَ الشَّاءِ يَتَطَاوَلُوْنَ فِي الْبُنْيَانِ قَالَ ثُمَّ انْطَلَقَ فَلَبِثْتُ مَلِيًّا ثُمَّ قَالَ لِيْ يَا عُمَرُ أَتَدْرِيْ مَنِ السَّائِلُ قُلْتُ اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّهُ جِبْرِيْلُ أَتَاكُمْ يُعَلِّمُكُمْ دِيْنَكُمْ. (رواه مسلم) [تخريج: مشكوة: ص ۱۱: س ۱۷:]

**ترجمه**﴿﴾ حضرت عمر رضی الله عنه نه روایت دې هغهٔ وئیلي دی چه مونږ یوه ورځ نبی کریم ﷺ سره ناست وو یوسړې مونږته راغې ډیرې سپینې جامې ئې اغوستې وې او ویښته ئې ډیر تورؤو چه دسفر هیڅ اثر ورباندې نۀ وو اوپه مونږ کښې هیچانهٔ پیژندلو. تردې چه نبی کریم ﷺ ته کیناستلوخپلې کونډې زنګونان) ئې د نبی کریم ﷺ کونډو طرف ته ماتې کړې خپل ورغوی ئې د نبی کریم ﷺ په زنګونانو(پتونانو) باندې کیخودل. وې وئیل! اې محمد ﷺ ماته اوښایه داسلام باره کښې نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل: اسلام دادې چه ته ګواهی ورکړې چه دالله تعالی نه سواهیڅوک معبودنشته اومحمد ﷺ دالله رسول دې. اوته مونځ کوې اوزکوة ورکوې اوته درمضان روژې نیسې اوته دبیت الله حج کوې که ته طاقت لرې هغې طرف ته دلارې. نوهغهٔ اووئیل چه تاسو رښتیا اووئیل. نو مونږته حیران شو. چه تپوس هم کوی او تصدیق هم کوی. هغهٔ اووئیل چه تاسوماته دایمان باره کښې ښودنه اوکړې. نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. ایمان دادې چه ته ایمان راوړې. په الله اودهغه په فرښتو اودهغه په کتابونو باندې اودهغه په پیغمبرانو اودقیامت په ورځ. اوته ایمان راوړې په ښهٔ اوبد تقدیرباندې. نوهغه اووئیل چه تارښتیا اووئیل بیائې اووئیل چه ماته داحسان باره کښې خبرراکړه. نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل (احسان دادې) چه ته دالله عبادت اوکړې داسې لکه چه ته الله وینې. بیشکه که ته الله تعالی نۀ وینې نوهغه خوتا وینی. بیائې اووئیل چه دقیامت باره کښې ماته خبرراکړه یعنی. (چه کله به راځی) نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه دقیامت، متعلق مسئول (نبی کریم ﷺ) دسائل (جبرائیل علیه السلام) نه زیات عالم نه دې بیائې اووئیل چه تاسوماته

دهغې دنښو باره کښې بیان اوکړې نوهغوی اوفرمائیل ① او زیګوی به و ینزه خپل مولی لره (اولاد به نافرمان شی) ② اوته به اووینې خپې ابله اوبربنډ اومحتاج اوچیلو څروونکو لره چه فخربه کوی (اوچتواوچتو) ابادو جوړولو کښې. راوی وائی چه بیاهغه سړې لاړه نوزه لږساعت هلته ایسارشوم حضورﷺ ماته اوفرمائیل چه اې عمرؓ! آیا تاته پته ده چه دغه تپوس کونکې څوک وو. ما اووئیل الله اودهغه رسول ښه پوهیږی. رسول اللهﷺ اوفرمائیل بیشکه داجبرائیل وو راغلې وو تاسوته چه تاسوته یې ستاسودین خودلو.

﴿۲﴾ - وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍورَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ رَجَعْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مَكَّةَ إِلَى الْمَدِيْنَةِ حَتّٰى إِذَا كُنَّا بِمَاءٍ بِالطَّرِيْقِ تَعَجَّلَ قَوْمٌ عِنْدَ الْعَصْرِ فَتَوَضَّأُوْا وَهُمْ عِجَالٌ فَانْتَهَيْنَا إِلَيْهِمْ وَأَعْقَابُهُمْ تَلُوْحُ لَمْ يَمَسَّهَا الْمَاءُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ أَسْبِغُوا الْوُضُوْءَ . (رواه مسلم) [تخریج: مشکوة: ص۴٦ :س۳]

**ترجمه**: عبدالله بن عمروؓ نه روایت دې هغوی اوفرمائیل چه مونږ د نبی کریمﷺ سره دمکې نه مدینې منورې ته واپس شوتردې چه مونږه وو په لاره کښې اوبوته نزدې. نوقوم جلتی اوکړه دمازیګرپه وخت کښې نوهغوی اودس اوکړوپه داسې حال کښې چه هغوی جلتی کونکی وو چه کله مونږهغوی ته راورسیدلواودهغوی پوندې ښکاریدې چه په هغې اوبه نه وې لګیدلې نو نبی کریمﷺ اوفرمائیل: چه هلاکت دې یهغه پوندولره چه داورنه دی. اودس پوره کوئ. (مسلم)

﴿۳﴾ - وَعَنْ أَبِيْ ذَرٍّ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ زَمَنَ الشِّتَاءِ وَالْوَرَقُ يَتَهَافَتُ فَأَخَذَ بِغُصْنَيْنِ مِنْ شَجَرَةٍ قَالَ فَجَعَلَ ذٰلِكَ الْوَرَقُ يَتَهَافَتُ قَالَ فَقَالَ يَا أَبَا ذَرٍّ قُلْتُ لَبَّيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ إِنَّ الْعَبْدَ الْمُسْلِمَ لَيُصَلِّي الصَّلٰوةَ يُرِيْدُ بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ فَتَهَافَتُ عَنْهُ ذُنُوْبُهُ كَمَا تَهَافَتُ هٰذَا الْوَرَقُ عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ. (رواه احمد) [مشکوة ص۵۸ :س۲۳]

**ترجمه**: اودحضرت ابوذرغفاری نه روایت دې چه بیشکه نبی کریمﷺ بهرته تشریف یوړلو دیخنۍ په موسم کښې اوپانړې غورزیدلې نونبی کریمﷺ داونې دوه څانګې اونیولې. راوی وائی چه د نبی کریمﷺ نیولوسره پانړې غورزیدل شروع شو. بیائې اوفرمائیل چه اې ابوذره! ما عرض اوکړو زه حاضریم اې دالله رسوله نووې فرمائیل بیشکه چه مسلمان بنده چه کله مونځ کوی دالله تعالی رضاغواړی نودهغه نه ګناهونه داسې غورزیږی لکه چه داپانړې ددې اونې نه راغورزیږی

﴿۴﴾ - وَعَنْ رَبِيْعَةَ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ كُنْتُ أَبِيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَيْتُهُ بِوَضُوْئِهِ وَحَاجَتِهِ فَقَالَ لِيْ سَلْ فَقُلْتُ أَسْئَلُكَ مُرَافَقَتَكَ فِي الْجَنَّةِ قَالَ أَوْغَيْرَ ذٰلِكَ قُلْتُ

هُوَذَاكَ قَالَ فَأَعِنِّىْ عَلٰى نَفْسِكَ بِكَثْرَةِ السُّجُوْدِ. (رواه مسلم) [مشكوة ص ٨٤: س ٨]

**ترجمه** اودحضرت ربیعه نه روایت دې چه یوځل مادرسول الله ﷺ سره شپه تیره کړه نوما هغوی ته اوبه راوړې داودس دپاره اوحاجت دپاره نبی کریم ﷺ ماته اوفرمائیل چه اوغواړه مااووئیل زۀ ستاسوملګرتیاغواړم په جنت کښې.هغوی اوفرمائیل چه ددینه علاوه بل څۀ.ما اووئیل هم داغواړم نووې فرمائیل ته زماامداد اوکړه په خپل نفس باندې په ډیروسجدوسره.

﴿۵﴾- عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُسَوِّىْ صُفُوْفَنَا حَتّٰى كَأَنَّمَا يُسَوِّىْ بِهَا الْقِدَاحَ حَتّٰى رَاٰى اَنَّا قَدْ عَقَلْنَا عَنْهُ ثُمَّ خَرَجَ يَوْمًا فَقَامَ حَتّٰى كَادَ اَنْ يُّكَبِّرَ فَرَاٰى رَجُلًا بَادِيًا صَدْرُهٗ مِنَ الصَّفِّ فَقَالَ عِبَادَ اللّٰهِ لَتُسَوُّنَّ صُفُوْفَكُمْ اَوْلَيُخَالِفَنَّ اللّٰهُ بَيْنَ وُجُوْهِكُمْ. (رواه احمد)

[مشكوة: ص ٩٧: س ٢٦]

**ترجمه** اودحضرت نعمان بن بشیرنه روایت دې.هغوی اوفرمائیل چه دالله رسول ﷺ به زمونږصفونه نیغول لکه چه نبی کریم ﷺ صفونه نیغوی دغشوپه لرګی سره.تردې چه هغوی معلومه کړه چه مونږه صفونه برابرولوباندې پوهه شو.بیایوه ورځ تشریف راوړو بهرته، نزدې وه چه هغوی تکبیر کړې وې نوهغوی اولیدل چه دیوسړی سینه دصف نه بهرراوتلې وه.نووې فرمائیل اې دالله بندګانو! تاسوخپل صفونه برابرکړئ.ګنی الله تعالی به په تاسوکښې مخالفت پیدا کړی.

﴿۲﴾- وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ جِئْتُ فَلَمَّا تَبَيَّنْتُ وَجْهَهٗ عَرَفْتُ اَنَّ وَجْهَهٗ لَيْسَ بِوَجْهِ كَذَّابٍ فَكَانَ اَوَّلُ مَا قَالَ يَا اَيُّهَا النَّاسُ اَفْشُوا السَّلَامَ وَاَطْعِمُوا الطَّعَامَ وَصِلُوا الْاَرْحَامَ وَصَلُّوْا بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِسَلَامٍ.

(رواه الترمذی وابن ماجه والدارمی) [مشكوة: ص ١٦٨: س ٣٠]

**ترجمه** اودحضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه نه روایت دې هغه فرمائی چه نبی کریم ﷺ مدینې منورې ته تشریف راوړونوزۀ راغلم چه کله مادهغوی ﷺ مخ ته په غورسره اوکتل نومامعلومه کړه چه دامخ دچا دروغژن مخ نۀ دې.نوهغه خبره چه هغوی ﷺ دټولونه مخکښې اوفرمائیله هغه داوه.چه اې خلقوسلام خورکړئ اوخلقوته طعام ورکوئ اوصله رحمی کوئ اومونځ کوئ دشپې په داسې حال کښې چه خلق اوده وی.نوتاسوبه داخل شئ جنت ته په امن اوسلامتیا سره.

﴿۷﴾- عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهَا اَنَّهُمْ ذَبَحُوْا شَاةً فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَقِيَ مِنْهَا؟ قَالَتْ مَا بَقِيَ مِنْهَا اِلَّا كَتِفُهَا قَالَ بَقِيَ كُلُّهَا غَيْرَ كَتِفِهَا (رواه الترمذی) [مشكوة: ص ١٦٥: س ٢٣].

ترجمه﴿۞﴾ او د حضرت عائشه رضي الله عنها نه روايت دې چه بيشکه هغوی ذبح کړه يوه چيلۍ، نو حضور ﷺ اوفرمائيل (تپوس ئې اوکړو) آيا څۀ څيز دهغه (چيلۍ) نه پاتې شوې دې. نو عائشې بی بی اووئيل سوا داوګې (دغوښې) نه نور هيڅ نۀ دی پاتې شوی. نو حضور ﷺ اوفرمائيل نه ټوله باقي ده سوا داوګې دغوښې نه. يعنی چه کومه صدقه شوې ده هغه باقي ده دهغې ثواب به ملاوېږی او کوم چه تاسوسره پاتې ده هغه باقي نۀ ده ختميدونکې ده.

﴿۸﴾- وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ بْنِ رِبْعِيِّ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرَّ عَلَيْهِ بِجِنَازَةٍ فَقَالَ مُسْتَرِيحٌ أَوْ مُسْتَرَاحٌ مِنْهُ فَقَالُوْا يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا الْمُسْتَرِيحُ وَالْمُسْتَرَاحُ مِنْهُ قَالَ الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ يَسْتَرِيحُ مِنْ نَصَبِ الدُّنْيَا وَأَذَاهَا إِلَى رَحْمَةِ اللّٰهِ وَالْعَبْدُ الْفَاجِرُ يَسْتَرِيحُ مِنْهُ الْعِبَادُ وَالْبِلَادُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَابُّ . (رواه البخاری ومسلم) [مشکوة:ص ۱۳۹:س ۱۹]

ترجمه﴿۞﴾ او د حضرت ابوقتادة رضي الله عنه نه روايت دې چه بيشکه داحديث به ئې بيانولو چه بيشکه نبی کريم ﷺ سره يوه جنازه تيره شوه. نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل چه داجنازه يا راحت بيامونډلو والاده. يا ددينه راحت بيامونډلې شو. صحابه وو تپوس اوکړو چه دامستريح او مستراح منه څۀ څيز دې. هغوی اوفرمائيل چه مسلمان بنده راحت مومی ددنيادغمونونه او دهغې دتکليفونونه دالله تعالی رحمت طرف ته. اوګنهګار بنده نه راحت مومی بندګان او ښارونه، اونې اوځناور.

﴿۹﴾- وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ دَخَلَ بِلَالٌ عَلٰى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَتَغَدّٰى فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْغَدَاءَ يَا بِلَالُ قَالَ إِنِّي صَائِمٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَأْكُلُ رِزْقَنَا وَفَضْلُ رِزْقِ بِلَالٍ فِي الْجَنَّةِ أَشَعَرْتَ يَا بِلَالُ إِنَّ الصَّائِمَ لَيُسَبِّحُ عِظَامُهُ وَيَسْتَغْفِرُ لَهُ الْمَلَائِكَةُ مَا أُكِلَ عِنْدَهُ. (رواه البيهقی فی شعب الايمان)

[مشکوة:ص ۱۸۱:س ۱۹]

ترجمه﴿۞﴾ او د حضرت بريدة رضي الله عنه نه روايت دې هغۀ وائی چه حضرت بلال رضي الله عنه حضور ﷺ ته راغې په داسې حال کښې چه حضور ﷺ دغرمې ډوډۍ خوړله. نو رسول ﷺ اوفرمائيل اې بلاله رضي الله عنه طعام حاضر دې. حضرت بلال رضي الله عنه اووئيل بيشکه زما روژه ده اې دالله رسوله. نو اوفرمائيل رسول الله ﷺ مونږ خپل (دا) رزق خورو او د بلال رزق باقي شو په جنت کښې. آيا تاته پته شته اې بلاله رضي الله عنه چه بيشکه دروژه دار هډوکی دهغه دپاره تسبيح وائی. اوفرشتې دهغه دپاره داستغفار دعا کوی. ترکومې پورې چه روژه دار په وړاندې خوراك خوړلې شي.

﴿۱۰﴾- وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُولُ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دَيْنٍ كَانَ عَلَى

أَبِي فَدَقَقْتُ الْبَابَ فَقَالَ مَنْ ذَا فَقُلْتُ أَنَا فَقَالَ أَنَا أَنَا كَأَنَّهُ كَرِهَهَا (رواه البخاری ومسلم) [مشکوة ص ۴۰۰ :س ۲۶]

**ترجمه**﴿ اودحضرت جابر﷛نه روایت دې هغه وائی چه زهٔ نبی کریم ﷺ ته راغلم دهغه قرض باره کښې چه زما په پلاربانـدې وو.مادروازه اوټکوله نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه څوك يې؟ ماأووئیل زهٔ.هغوی ﷺ اوفرمائیل (زه،زه) لکه چه نبی کریم ﷺ دانه خوښوله یعنی نوم ښودل پکاردی (زه،زه) څه څیز دې.

﴿۱۱﴾- وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ أَخَوَانِ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ أَحَدُهُمَا يَأْتِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْآخَرُ يَحْتَرِفُ فَشَكَا الْمُحْتَرِفُ أَخَاهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَعَلَّكَ تُرْزَقُ بِهِ. (رواه الترمذی) [مشکوة:ص۴۵۳ :س۲۳]

**ترجمه** ﴿اودحضرت انس﷛ نه روایت دې هغه فرمائی چه د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې دوه رونړه وو.یو به نبی کریم ﷺ ته راتلو،او دوئم به پیشه (روزګار)کولو،نوکار والا دخپل رورشکایت اوکړو.نبی کریم ﷺ ته نوهغوی ورته اوفرمائیل چه شائدتاته ددهٔ په وجه رزق درکولې شی.

﴿۱۲﴾- وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ تَعَالَى عَنْهُ قَالَ دَخَلَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ قَاعِدٌ فَتَزَحْزَحَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ فِي الْمَكَانِ سَعَةً فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِلْمُسْلِمِ لَحَقًّا إِذَا رَآهُ أَخُوهُ أَنْ يَتَزَحْزَحَ لَهُ. (رواه البیهقی فی شعب الایمان) [مشکوة:ص۴۰۴ :س۱]

**ترجمه**﴿اودحضرت واثله بن خطاب﷛ نه روایت دې فرمائی چه یوسړې رسول الله ﷺ ته راغې اونبی کریم ﷺ په جومات کښې تشریف فرماوو.نودالله رسول ﷺ هغه ته لږځائې پرېښودلو (لږدخپل ځائې نه اوخوزیدلو) هغه کس اووئیل اې دالله رسوله ﷺ بې شکه ځائې فراخه دې (یعنی تاسوولې دخپل ځایه اوزیدلې؟) نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل بې شکه دمسلمان دپاره حق دې چه کله خپل مسلمان روراووینی نو(اګرچه ځائې فراخه وی لیکن بیادې ،هم لږشان ) ځائې پرېږدی هغه دپاره.

۱۳- وَعُمَرَ بْنَ أَبِي سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ غُلَامًا فِي حِجْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَتْ يَدِي تَطِيشُ فِي الصَّحْفَةِ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا غُلَامُ سَمِّ اللَّهَ وَكُلْ بِيَمِينِكَ وَكُلْ مِمَّا يَلِيكَ

(رواه البخاری ومسلم) [مشکوة:ص۳۶۳ :س۹]

**ترجمه﴿﴾** او حضرت عمر بن ابی سلمه ﷺ نه روایت دی فرمائی چه زهٔ ماشوم وم د نبی ﷺ په غیږ کښې (پرورش کښې) او زما لاس په کاسه کښې گرځېدلونو ماته رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دالله تعالی نوم واخله اوپه خپل ښی لاس خوراك اوخوره. دهغه ځائې نه کوم چه ستا مخې ته دې.

﴿۱۴﴾- وَعَنْ اُمِيَّةَ بْنِ مَخْشِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ قَالَ كَانَ رَجُلٌ يَأْكُلُ فَلَمْ يُسَمِّ حَتّٰى لَمْ يَبْقَ مِنْ طَعَامِهٖ اِلَّا لُقْمَةٌ فَلَمَّا رَفَعَهَا اِلٰى فِيْهِ قَالَ بِسْمِ اللّٰهِ اَوَّلَهٗ وَآخِرَهٗ فَضَحِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ مَازَالَ الشَّيْطَانُ يَأْكُلُ مَعَهٗ فَلَمَّا ذَكَرَ اسْمَ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ اِسْتَقَاءَ مَا فِيْ بَطْنِهٖ

(رواه ابوداود) [مشکوة: ص ۵۳٦ :س ۲۲]

**ترجمه﴿﴾** او د حضرت امیه ﷺ نه روایت دې هغه فرمائی چه یوسړی خوراك خوړلو. هغه بسم الله نهٔ وه وئیلې تردې چه دهغهٔ په خوراك کښې صرف یوه نوړی پاتې شوه. نوچه کله هغه آخری نوړئ خولې ته اوچته کړه نووې وئیل (بسم الله اوله وآخره) نو نبی کریم ﷺ اوخندل بیائې اوفرمائیل چه شیطان ده سره همیشه شریك وو په خوراك کښې. خوچه کله هغه دالله تعالی نوم واخستلونوشیطان هغه څیز قې کړلوکوم چه دهغه په خیټه کښې وو. معلومه شوه چه په شروع کښې بسم الله هیرېدلوباندې (بسم الله اوله وآخره) وئیل پکاردی.

﴿۱۵﴾- وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ قَالَ كُنَّا يَوْمَ بَدْرٍ كُلُّ ثَلٰثَةٍ عَلٰى بَعِيْرٍ فَكَانَ اَبُوْلُبَابَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ وَعَلِيُّ بْنُ اَبِيْ طَالِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ زَمِيْلَيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَكَانَتْ اِذَا جَاءَتْ عُقْبَةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَا نَحْنُ نَمْشِيْ عَنْكَ قَالَ مَا اَنْتُمَا بِاَقْوٰى مِنِّيْ وَمَا اَنَا بِاَغْنٰى عَنِ الْاَجْرِ مِنْكُمَا

(رواه فی شرح السنة) [مشکوة: ص ۳۳۹: س ۲۷]

**ترجمه﴿﴾** او د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ نه روایت دې. فرمائې چه دبدر په ورځ مونږ درې درې کسان په یو اوښ باندې وو. ابولبابه ﷺ او حضرت علی ﷺ ملګری وو د رسول الله ﷺ راوی وائی چه کله به د رسو الله ﷺ د پیاده تللو نمبر راغې. هغوی دواړو به ورته عرض کولو چه مونږه ستاسو په ځائې پیاده خو. نو په دې موقعه باندې نبی ﷺ اوفرمائیل چه تاسو زما نه زیات طاقتور نهٔ یئ او زهٔ بې پرواه نهٔ یم داجرنه تاسو دواړو نه (لکه څنګه چه تاسوته داجر ضرورت دې نو ماته هم ضرورت دې.)

﴿۱٦﴾- وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ قَالَ لَقِيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ مَا النَّجَاةُ فَقَالَ اَمْلِكْ عَلَيْكَ لِسَانَكَ وَلْيَسَعْكَ بَيْتُكَ وَابْكِ عَلٰى خَطِيْئَتِكَ. (رواه احمد وترمذی) [مشکوة: ص ۴۱۳ :س ۵]

**ترجمه**۞ اودحضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه نه روایت دې هغه فرمائي چه ماملاقات اوکړودنبی ﷺ سره نومااووئیل (تپوس مې اوکړو) چه نجات په څۀ کښې دې؟ نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته حفاظت کوه دخپلې ژبې.یعنی په قابوکښې اوساته خپله ژبه اوته پخپل کورکښې اوسه اوته په خپلو غلطو اوژاړه.

﴿۱۷﴾- وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ بَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيْلَةٍ يُصَلِّي فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ فَلَدَغَتْهُ عَقْرَبٌ فَنَاوَلَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَعْلِهِ فَقَتَلَهَا فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ لَعَنَ اللّٰهُ الْعَقْرَبَ مَا تَدَعُ مُصَلِّيًا وَلَا غَيْرَهُ أَوْقَالَ نَبِيًّا وَغَيْرَهُ ثُمَّ دَعَا بِمِلْحٍ وَمَاءٍ فَجَعَلَهُ فِي إِنَاءٍ ثُمَّ جَعَلَ يَصُبُّهُ عَلَى إِصْبَعِهِ حَيْثُ لَدَغَتْهُ وَيَمْسَحُهَا وَيُعَوِّذُهَا بِالْمُعَوِّذَتَيْنِ.

(رواه البیهقی فی شعب الایمان) [مشکوة:ص۳۹۰:س۲۳]

**ترجمه**۞ اودحضرت علی رضی الله عنه نه روایت دې هغه فرمائي چه یوه شپه نبی کریم ﷺ دشپې مونځ کولو.نوهغوی خپل لاس په زمکه باندې کیخودلو.نولړم اوچیچلو.نوهغوی په خپله پڼړه لړم او وهلواومړئې کړلوچه کله نبی کریم ﷺ را اوګرځیدلو(فارغ شو) نووې فرمائیل چه الله تعالی دلړم باندې لعنت اولیږی.نۀ مونځ کونکې پریږدی اونه بل څوک.یارسول الله ﷺ دا اوفرمائیل (یعنی دراوی شک دې) چه نۀ دې څوک پیغمبرپریږدې اونه بل څوک.بیائې اوبه اومالګه راوغوښتل هغه ئې په یولوښی کښې واچول.بیاشروع شو چه هغه مالګینې اوبه ئې په خپله ګوته (کتهه ګوته) باندې اچولې کوم ځائې چه لړم چیچلې وو.او(بیائې) مګلوهغې لړه اومعوذتین ئې لوستل.

﴿۱۸﴾-عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُمَا قَالَ بَعَثَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أُنَاسٍ مِنْ جُهَيْنَةَ فَأَتَيْتُ عَلَى رَجُلٍ مِنْهُمْ فَذَهَبْتُ أَطْعَنُهُ فَقَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ فَطَعَنْتُهُ فَقَتَلْتُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ أَقَتَلْتَهُ وَقَدْ شَهِدَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّمَا فَعَلَ ذٰلِكَ تَعَوُّذًا قَالَ فَهَلَّا شَقَقْتَ عَنْ قَلْبِهِ (رواه البخاری ومسلم) [مشکوة:ص۲۹۹:س۱۸]

**ترجمه**۞ اودحضرت اسامه رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه مونږه اولیږلو.رسول الله ﷺ دجهینه قبیلې خلقوته.نوزۀ راغلم دهغوی نه په یوسړی باندې (دحملې دپاره) نوما نیزه وهل شروع کړل نوهغۀ او وئیل (لااله الاالله) نوماهغه په نیزه او وهلواوقتل می کړلو.زه رسول الله ﷺ ته راغلم اوقصه مې ورته واوروله.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل:چه آیاتاپه هغه داسې حال کښې قتل کړوچه هغۀ ګواهی کوله چه دالله تعالی نه سوادعبادت لائق نشته ماعرض اوکړو اې دالله رسوله هغه خوداسې کاربچ کیدودپاره اوکړو.وې فرمائیل چه تادهغۀ زړه ولې نۀ څیرولو(یعنی تاته څۀ پته ده چه هغه کلمه دزړه نه نۀ وه وئیلې تاله دهغه وژل نۀ وه پکار.)

﴿۱۹﴾- وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ إِنَّ رَجُلًا تَقَاضٰى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَغْلَظَ لَهُ فَهَمَّ أَصْحَابُهُ فَقَالَ دَعُوهُ فَإِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا وَاشْتَرُوا لَهُ بَعِيرًا فَأَعْطُوهُ إِيَّاهُ قَالُوا لَا نَجِدُ إِلَّا أَفْضَلَ مِنْ سِنِّهِ قَالَ اشْتَرُوهُ فَأَعْطُوهُ إِيَّاهُ فَإِنَّ خَيْرَكُمْ أَحْسَنُكُمْ قَضَاءً .(رواهما البخاري ومسلم)
[مشكوة:ص ۲۵۱ :س ۲۴]

**ترجمه**﴿ اودحضرت ابوهریره﷛ نه روایت دې چه بیشکه یوسړي تقاضا اوکړه دنبی﷑ نه. نوسخته (تقاضا) ئې اوکړه.دنبی﷑ نه دیواوښ دقرض په باره کښې نوصحابو اراده اوکړه (دهغه دوهلو) نوویې فرمائیل چه دې پریږدئ ځکه چه دحقدارد پاره دویناحق شته.تاسوده دپاره یواوښ واخلئ او ورته ئې ورکړئ.نوصحابه کرامو﷛ عرض اوکړو:مونږنه بیامومو مګر دده داوښ نه دزیات عمروالااوښ.نبی﷑ اوفرمائیل هغه واخلئ اوورته ئې ورکړې.ځکه چه په تاسوکښې بهترین هغه دې چه په تاسوکښې داداکولوپه اعتبارسره ښۀ وی.

﴿۲۰﴾- وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهَا أَنَّهَا كَانَتْ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَيْمُونَةَ إِذْ أَقْبَلَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ فَدَخَلَ عَلَيْهِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجِبَا مِنْهُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَلَيْسَ هُوَ أَعْمٰى لَا يُبْصِرُنَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ (رواه احمدوالترمذی وابوداود) [مشكوة:ص۲۶۹:س۱۸]

**ترجمه**﴿ اودحضرت ام سلمة﷛ نه روایت دې چه دا اوحضرت میمونه﷛ دواړه حضورﷺ سره ناستې وې.دغه وخت حضرت عبدالله بن ام مکتوم﷛ (نابینا) راغې.نوهغه نبی﷑ له دننه راغې.رسول اللهﷺ اوفرمائیل:تاسو دواړه پرده اوکړئ ددۀ نه (ام سلمة﷞ وائی) ماواوئیل چه اې دالله رسولهﷺ ولې دې ړوند نه دې.مونږه خونه وینی نورسول اللهﷺ اوفرمائیل ولې تاسو دواړه هم ړوندې ئې ولې تاسوئې نۀ وینئ.(معلومه شوه چه څنګه دښځې نه دسړی پرده ده. دغه شان دښځوهم دسړونه دنظرپرده ده.)

﴿۲۱﴾- وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَتِ امْرَأَتَانِ مَعَهُمَا ابْنَاهُمَا جَاءَ الذِّئْبُ فَذَهَبَ بِابْنِ إِحْدَاهُمَا فَقَالَتْ صَاحِبَتُهَا إِنَّمَا ذَهَبَ بِابْنِكِ وَقَالَتِ الْأُخْرٰى إِنَّمَا ذَهَبَ بِابْنِكِ فَتَحَاكَمَتَا إِلٰى دَاوُدَ فَقَضٰى بِهِ لِلْكُبْرٰى فَخَرَجَتَا عَلٰى سُلَيْمَانَ بْنِ دَاوُدَ فَأَخْبَرَتَاهُ فَقَالَ ائْتُونِي بِالسِّكِّينِ أَشُقُّهُ بَيْنَهُمَا فَقَالَتِ الصُّغْرٰى لَا تَفْعَلْ يَرْحَمُكَ اللّٰهُ هُوَ ابْنُهَا فَقَضٰى لِلصُّغْرٰى.

(روالبخاری ومسلم) [مشكوة:ص۵۰۸:س۲۲]

**ترجمه**۞ اوحضرت ابوهریرة ﷺ نه روایت دې هغه دحضور ﷺ نه روایت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل دوه ښځې وې چه دهغوی سره دوه ځامن وو.شرمخ راغې په هغوی کښې ئې دیوې ځوئې یوړلو.دهغې ملګرې اووئیل هغه ستا ځوئې اوړلې دې.دویمې اووئیل چه هغه ستا ځوې دې.دواړو مقدمه داوُد ﷺ ته یوړله.هغه فیصله اوکړه دهلك مشرې دپاره (ځکه چه دهغې په لاس کښې وو) نوهغه دواړه سلیمان ﷺ ته راغلې.هغه ته ئې قصه بیان کړه.هغه اوفرمائیل چه ماته یوچاړه راوړئ چه دوه ټکړې ئې کړم اوتاسودواړوته ئې درکړم.کشرې اووئیل چه داسې مکوه الله تعالی دې په تاباندې رحم اوکړی داددې ځوئې دې.(یعنی زه فی الحال اقرارکوم چه ددې ځوئې دې.چه ته ئې ژوندې پریږدې.چه زۀ ئې وینم.مشره دغه وخت بالکل چپ وه) نوهغوی فیصله دکشرې دپاره اوکړه.(انتهی) ددې وجې نه ① چه دچاځوې دې هغه ټکړې کول نه غواړی.② مشره خوبالکل خاموشه پاتې شوه.③ که چرې بچې دمشرې وې نوبیافیصلې دپاره به ماله نۀ راتلې.

﴿۲۲﴾- وَعَنْ بُرَيْدَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِيْ إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ وَمَعَهُ حِمَارٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ارْكَبْ وَتَأَخَّرَ الرَّجُلُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا أَنْتَ أَحَقُّ بِصَدْرِ دَابَّتِكَ إِلَّا أَنْ تَجْعَلَهُ لِيْ قَالَ جَعَلْتُهُ لَكَ فَرَكِبَ (رواه الترمذی) [مشکوة:ص۳٤٠:س۵]

**ترجمه**۞ اوحضرت بریده ﷺ نه روایت دې.فرمائی چه مونږ په دې مینځ کښې چه رسول الله ﷺ سره پیدل روان ووچه نبی کریم ﷺ ته یوسړې راغې چه هغه سره خروو.هغه اووئیل چه تاسو سواره شئ.اوپخپله روستوشو.نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل چه نۀ بلکه ته زیات حقدارئې دخپل سورلئ دپاره په مخکښې کیناستلویاندې.لیکن داچه ته داسورلئ زما دپاره کړې.هغه اووئیل چه حضرت ماستاسودپاره داسورلی اوګرځوله نوبیانبی کریم ﷺ سورشو.

﴿۲۳﴾- وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ أَنَّ رَجُلًا اسْتَحْمَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّيْ حَامِلُكَ عَلٰى وَلَدِ النَّاقَةِ فَقَالَ مَا أَصْنَعُ بِوَلَدِ النَّاقَةِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهَلْ تَلِدُ الْإِبِلَ إِلَّا النُّوْقُ (رواه الترمذی وابوداؤد)۰ [مشکوة:ص٤١٦:س٢٠].

**ترجمه**۞ اوحضرت انس ﷺ نه روایت دې چه بیشکه یوسړی سورلی اوغوښتله دحضور ﷺ نه.هغوی اوفرمائیل چه زه به تا سورکړم داوښې په بچی باندې هغه اووئیل چه زۀ به څۀ اوکړم داوښې په بچی باندې.نورسول الله ﷺ ورته اوفرمائیل چه نۀ زیګوی اوښان مګراوښې (یعنی هراوښ داوښ بچې وی) توقې ئې ورسره اوکړې.

﴿۲۴﴾- وَعَنْ اَبِیْ اَیُّوْبَ الْاَنْصَارِیْ رَضِیَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ اِلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عِظْنِیْ وَاَوْجِزْ فَقَالَ اِذَا قُمْتَ فِیْ صَلٰوتِكَ فَصَلِّ صَلٰوةَ مُوَدِّعٍ وَلَا تَكَلَّمْ بِكَلَامٍ تَعْذِرُ مِنْهُ غَدًا وَاَجْمِعِ الْاِیَاسَ مِمَّا فِیْ اَیْدِی النَّاسِ. (رواه احمد) [مشکوة:ص۴۴۵:س۲۴]

**ترجمه:** دحضرت ابوایوب انصاری رضی الله عنه (چه خپل نوم ئې خالددې) نه روایت دې هغه وائی چه یوسړې نبی کریم ﷺ ته راغې.نوهغه اووئیل چه ماته نصیحت اوکړئ.اومختصر راته اوفرمایئ. نبی ﷺ ورته اوفرمائیل چه کله ته مونځ ته ولاړې نوداسې مونځ اوکړه چه لکه داستا اخری مونځ دې.اداسې خبره مکوه چه صباله ته دهغې معذرت کوې.اوته نااميده شه دهغه څیزنه کم چه دخلقوسره دې.(یعنی دخلقونه مال مۀ غواړه)

﴿۲۵﴾- عن أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَیْنَمَا نَحْنُ فِی الْمَسْجِدِ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَ أَعْرَابِیٌّ فَقَامَ یَبُوْلُ فِی الْمَسْجِدِ فَقَالَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَهْ مَهْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ لَا تُزْرِمُوْهُ دَعُوْهُ فَتَرَكُوْهُ حَتّٰی بَالَ ثُمَّ إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ دَعَاهُ فَقَالَ لَهُ إِنَّ هٰذِهِ الْمَسَاجِدَ لَا تَصْلُحُ لِشَیْءٍ مِنْ هٰذَا الْبَوْلِ وَالْقَذَرِ وَإِنَّمَا هِیَ لِذِكْرِ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ وَالصَّلَاةِ وَقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ أَوْكَمَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَأَمَرَ رَجُلًا مِنَ الْقَوْمِ فَجَاءَ بِدَلْوٍ مِنْ مَاءٍ فَشَنَّهُ عَلَیْهِ . (رواه البخاری ومسلم) [مشکوة:ص۵۲:س۷]

**ترجمه:** اودحضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې وائې چه دې مینځ کښې چه مونږ دنبی ﷺ سره په جومات کښې ناست وو چه یوبانډیچی راغې او اودریدلوپه جماعت کښې ئې تشې متیازې کول شروع کړل.نو صحابۀ اووئیل:مه مه: نبی ﷺ اوفرمائیل چه دې مه منعه کوئ.(یعنی دمتیازودوران کښې ئې مۀ منع کوې څۀ تکلیف ورته اونه رسیږی) پریږدئ ده لره.نوصحابۀ هغه پرینبودلوترهغې چه هغه متیازې اوکړې.بیابیشکه رسول الله ﷺ هغه راوبللو،او ورته ئې اوفرمائیل چه بیشکه داجوماتونه دمتیازو اوګندګۍ نه دهیڅ څیز صلاحیت نه لری (ددې دپاره نه دی بلکه، بیشکه داجوماتونه دالله دذکر اومونځ اوتلاوت قرآن دپاره دی.یاڅنګه چه رسو الله ﷺ اوفرمائیل.راوی حضرت انس رضی الله عنه وائی چه بیا نبی کریم ﷺ یوسړی باندې اوبه را اوغوښتلې چه کله هغۀ یوه بوکه اوبه راوړې نوحضور ﷺ په هغۀ ځائې اوبه واړولې.

﴿۲۶﴾وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِیٍّ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجْنَا وَفْدًا إِلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَبَایَعْنَاهُ وَصَلَّیْنَا مَعَهُ وَأَخْبَرْنَاهُ أَنَّ بِأَرْضِنَا بِیْعَةً لَنَا فَاسْتَوْهَبْنَاهُ مِنْ فَضْلِ طَهُوْرِهِ فَدَعَا بِمَاءٍ فَتَوَضَّأَ وَتَمَضْمَضَ ثُمَّ

صَبَّهُ فِيْ إِدَاوَةٍ وَأَمَرَنَا فَقَالَ أُخْرُجُوا فَإِذَا أَتَيْتُمْ أَرْضَكُمْ فَاكْسِرُوا بِيعَتَكُمْ وَانْضَحُوا مَكَانَهَا بِهٰذَا الْمَاءِ وَاتَّخِذُوهَا مَسْجِدًا قُلْنَا إِنَّ الْبَلَدَ بَعِيدٌ وَالْحَرَّ شَدِيدٌ وَالْمَاءَ يَنْشَفُ. فَقَالَ مُدُّوهُ فَإِنَّهُ لَايَزِيدُهُ إِلَّاطِيباً.

(رواه النسائی)

**ترجمه**﴿﴾ اودحضرت طلق‌﷛ نه روایت دې چه مونږه اووتلو دیووفدپه صورت کښې د نبی کریم ﷺ طرف ته نومونږه بیعت واخستلو دهغوی نه اُودهغوی سره مونږه مونځ اوکړو.اومونږ رسول الله ﷺ ته دا عرض اوکړو.چه زمونږپه زمکه کښې یوه ګرجه ده.نومونږه دهغوی نه دهغه داودس نه زیاتی اوبه اوغوښتلې.هغوی اوبه راوغوښتلې بیائې اودس اوکړواوخوله ئې کنګال کړه بیائې اوبه په یولوښی کښې واړه ولې زمونږدپاره اومونږته ئې حکم اوکړوچه اوس لاړشئ چه کله تاسوخپلې ګرجې ته اورسیږئ هغه ورانه کړئ اوپه هغه ځائې دا اوبه چړکاؤکړئ اوپه هغه ځائې جومات جوړکړئ.مونږه اووئیل چه ښارلرې دې.ګرمی زیاته ده اوبه به اوچې شي نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه اوبه زیاتي کړې ځکه چه دا سوا دپاکوالی نه نورهیڅ نهٔ زیاتوی.

﴿۲۷﴾-عَنْ جُوَيْرِيَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مِنْ عِنْدِهَا بُكْرَةً حِينَ صَلَّى الصُّبْحَ وَهِيَ فِي مَسْجِدِهَا ثُمَّ رَجَعَ بَعْدَ أَنْ أَضْحَى وَهِيَ جَالِسَةٌ فَقَالَ مَا زِلْتِ عَلَى الْحَالِ الَّتِي فَارَقْتُكِ عَلَيْهَا قَالَتْ نَعَمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ قُلْتُ بَعْدَكِ أَرْبَعَ كَلِمَاتٍ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ لَوْ وُزِنَتْ بِمَا قُلْتِ الْيَوْمِ لَوَزَنَتْهُنَّ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ عَدَدَ خَلْقِهِ وَرِضَا نَفْسِهِ وَزِنَةَ عَرْشِهِ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهِ.

[مشکوة:ص۲۰۰:س۲۵]

**ترجمه**﴿﴾ اودحضرت جویریة‌﷞ نه روایت دې چه بیشکه نبی کریم ﷺ تشریف یوړلو دهغې دخوانه دصبامونځ ئې اوکړویهٔ داسې حال کښې چه هغه (جویریة) دخپل مانځه په ځائې کښې وه.بیاتشریف راوړو.نبی کریم ﷺ دڅاښت په وخت کښې.یهٔ داسې حال کښې چه هغه په ځائې ناسته وه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل:چه ته اوس هم په هغهٔ حال ئې په کوم حال چه ماپریښودلې وې او تلې ووم.حضرت جویریه‌﷞ عرض اوکړو اوجی! نونبی‌﷤ اوفرمائیل:چه ماستانه روستوڅلورکلمې درې ځله اولوستلې.که چرې هغه تول کړې شی دهغې سره کوم چه تادهغه وخت نه تراوسه پورې لوستلې دی.نوخامخا هغه (څلورکلمات چه ما لوستلی دی) به زیاتې درنې وی.هغه کلمات دادی:① (سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ عَدَدَخَلْقِهِ وَرِضَانَفْسِهِ وَزِنَةَ عَرْشِهِ وَمِدَادَكَلِمَاتِهِ) دالله تعالی ذات پاك دې اوهم دهغهٔ تعریف سره دهغهٔ دمخلوق دتعداد برابر او دهغهٔ دذات د رضامندئ مطابق او دهغهٔ دعرش او د وزن مطابق اودهغهٔ د

کلماتو دتعداد برابر.

﴿۲۸﴾- وَعَنْ اَبِیْ قَتَادَةَ رَضِیَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ قَالَ قَالَ رَجُلٌ یَارَسُوْلَ اللّٰهِ اَرَأَیْتَ اِنْ قُتِلْتُ فِیْ سَبِیْلَ اللّٰهِ صَابِرًا مُحْتَسِبًا مُقْبِلًا غَیْرَ مُدْبِرٍ یُکَفِّرَ اللّٰهُ عَنِّیْ خَطَایَایَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ فَلَمَّا اَدْبَرَ نَادَاهُ فَقَالَ نَعَمْ اِلَّا الدَّیْنَ کَذٰلِكَ قَالَ جِبْرَئِیْلُ عَلَیْهِ السَّلَامُ (رواه مسلم)

[مشکوة:ص ۲۵۲:س ۱۰]

**ترجمه**﴿۞﴾ اودحضرت ابوقتدة﷛ نه روایت دې هغه وائي چه یوسړي اووئیل اې دالله رسوله تاسو ماته دا اوفرمایئ که چرې زه دالله تعالی پ لاره کښې شهید کړې شم صبرکونکې چه دثواب په نیت ددشمن مقابله کوم بغیر دشا ګرځولونه دشمن ته نو آیا الله تعالی به داکفاره اوګرځوی زما دګناهونو.نونبی ﷺ اوفرمائیل او: نوچه کله هغه لاړهٔ بیائې راوغوښتلو ورته ئې اوفرمائیل چه اؤ لیکن قرضه(یعنی قرض په شهادت سره هم نهٔ معاف کیږی دغه شان ماته جبرائیل﷤ وئیلي دی.

﴿۲۹﴾- وَعَنْ اَبِیْ ذَرٍّ رَضِیَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهُ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَذَکَرَ الْحَدِیْثَ بِطُوْلِهٖ اِلٰی اَنْ قَالَ قُلْتُ یَارَسُوْلَ اللّٰهِ اَوْصِنِیْ قَالَ اُوْصِیْكَ بِتَقْوَی اللّٰهِ فَاِنَّهٗ اَزْیَنُ لِاَمْرِكَ کُلِّهٖ قُلْتُ زِدْنِیْ قَالَ عَلَیْكَ بِتِلَاوَةِ الْقُرْاٰنِ وَذِکْرِ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ فَاِنَّهٗ ذِکْرٌ لَّكَ فِی السَّمَاءِ وَنُوْرٌ لَّكَ فِی الْاَرْضِ قُلْتُ زِدْنِیْ قَالَ عَلَیْكَ بِطُوْلِ الصَّمْتِ فَاِنَّهٗ مُطْرِدَةٌ لِّلشَّیْطَانِ وَعَوْنٌ لَّكَ عَلٰی اَمْرِ دِیْنِكَ قُلْتُ زِدْنِیْ قَالَ اِیَّاكَ وَکَثْرَةَ الضِّحْكِ فَاِنَّهٗ یُمِیْتُ الْقَلْبَ وَیَذْهَبُ بِنُوْرِ الْوَجْهِ قُلْتُ زِدْنِیْ قَالَ قُلِ الْحَقَّ وَاِنْ کَانَ مُرًّا قُلْتُ زِدْنِیْ قَالَ لَا تَخَفْ فِی اللّٰهِ لَوْمَةَ لَائِمٍ قُلْتُ زِدْنِیْ قَالَ لِیَحْجُزْكَ عَنِ النَّاسِ مَا تَعْلَمُ عَنْ نَفْسِكَ. [مشکوة:ص ۴۱۴:س ۲۷]

**ترجمه**﴿۞﴾ اودحضرت ابوذر﷛ نه روایت دې وائې زه داخل شوم په نبی ﷺ باندې.نود اوږد حدیث بیانولونه پس ئې اووئیل اې دالله﷯ رسولهﷺ ماته وصیت اوکړه.نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.زهٔ تاته وصیت کوم دالله نه د ویریدلو.بیشکه دا(تقوی) به ستاهرکارته زینت ورکړی.مااووئیل: نور اوښایئ ماته نووې فرمائیل چه ته لازم اونیسه په خپل ځان باندې دقرآن تلاوت اودالله﷯ ذکرچه عزت اوبزرګي والادې.بیشکه دابه ذکروی ستادپاره په اسمانونو کښې اونوربه وی ستادپاره په زمکه کښې.مااووئیل نور راته اووایئ:نووې فرمائیل لازم کړه په ځان ډیرچپ والې.بیشکه داشیطان لرې کوی اودابه ستادپاره مددګاروی ستاپه دینی کارونوکښې مااووئیل نوراوښایئ نو وې فرمائیل چه ته د ډیرې خندانه ځان ساته بیشکه دا(دغفلت خندا) زړه مړکوی اودمخ نورختموی.مااووئیل دینه زیات.وې فرمائیل ته حق خبره وایه(هره موقع باندې) اګرچه ترخه لګی.مااووئیل نور راته اوښایئ:وې فرمائیل چه دالله تعالی باره کښې (په دین باندې عمل کولوباره کښې) دچادملامتیانه مه ویریږه ما

اووښيل نور راته اوفرمائې نو وې فرمائيل تالره پکار ده چه منع شې دخلقو باره کښې دهغه څيزنه (دهغوی دعيبونونه) کوم چه تاته معلوم دی دخپل ځان باره کښې.

﴿۳۰﴾- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَتَدْرُونَ مَا الْغِيْبَةُ قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ ذِكْرُكَ أَخَاكَ بِمَا يَكْرَهُ قِيلَ أَفَرَأَيْتَ إِنْ كَانَ فِي أَخِي مَا أَقُولُ قَالَ إِنْ كَانَ فِيهِ مَا تَقُولُ فَقَدِ اغْتَبْتَهُ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ مَا تَقُولُ فَقَدْ بَهَتَّهُ. (رواه مسلم) [مشكوة: ص ۴۱۲ :س ۱۰]

**ترجمه**﴿﴾ اود حضرت ابوهريرة نه روايت دې چه بيشکه دالله رسول ﷺ اوفرمائيل: تاسو ته پته ده چه غيبت څۀ څيز دې؟ نوصحابو عرض اوکړوالله اودهغه رسول زيات عالم دې نو نبی کريم ﷺ اوفرمائيل ته دخپل رورهغه خبره ذکر کړې چه هغه ته ناخوښه وی. تپوس اوشو تاسو ماته اوښايئ که چرې هغه خبره چه زۀ ئې کوم هغه زما رورکښې موجود وی (بيابه هم غيبت وی يانه؟) نووې فرمائيل که چرې هغه خبره په هغۀ کښې وی نوتادهغه غيبت اوکړو. اوکه چرې هغه په هغۀ کښې نه وی نوتاپه هغه باندې بهتان اوتړلو.

﴿۳۱﴾- وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْحَى اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ إِلَى جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَنْ أَقْلِبْ مَدِينَةَ كَذَا وَكَذَا بِأَهْلِهَا فَقَالَ يَا رَبِّ إِنَّ فِيهِمْ عَبْدَكَ فُلَانًا لَمْ يَعْصِكَ طَرْفَةَ عَيْنٍ قَالَ أَقْلِبْهَا عَلَيْهِ وَعَلَيْهِمْ فَإِنَّ وَجْهَهُ لَمْ يَتَمَعَّرْ فِيَّ سَاعَةً قَطُّ

(رواه البيهقي في شعب الايمان) [مشكوة: ص ۴۳۸ :س ۲۷]

**ترجمه**﴿﴾ اود حضرت جابر نه روايت دې. فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه الله ﷻ وحی اوکړه جبرئيل ؑ ته چه فلانکې ښاراوچت کړه اونسکورئې کړه داسې اوداسې. نوجبرئيل اوفرمائيل چه اې پروردګاره! بيشکه په هغوی کښې خوستافلانکې بنده هم دې چه هغه دسترګودرپ هومره هم نافرمانی نۀ ده کړې. نوالله تعالی ورته اوفرمائيل چه ته دغه ښار نسکورکړه پۀ ده باندې هم اوپه هغوی (ښارکښې اوسيدونکو) باندې هم. ځکه چه بيشکه ددې سړی مخ چرته هم زما باره کښې نۀ دې متغيرشوې (بدل شوې) يعنی دده دورانديې به ګناهونه کيدل اودۀ کله هم بده نۀ ده ګڼړلې.

۳۲- وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالَى عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَامَ عَلَى حَصِيرٍ فَقَامَ وَقَدْ أَثَّرَ فِي جَسَدِهِ فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ يَا رَسُولَ اللّٰهِ لَوْ أَمَرْتَنَا أَنْ نَبْسُطَ لَكَ وَنَعْمَلَ فَقَالَ مَا لِي وَلِلدُّنْيَا وَمَا أَنَا وَالدُّنْيَا إِلَّا كَرَاكِبٍ اسْتَظَلَّ تَحْتَ شَجَرَةٍ ثُمَّ رَاحَ وَتَرَكَهَا (رواه الترمذی وابن ماجه)

[مشكوة: ص ۴۴۲ :س ۸]

**ترجمه﴿﴾** اوحضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوده شویه یو پوزکی باندې چه کله پاڅیدلو په داسې حال کښې چه دهغوی په بدن باندې دپوزکی نښې جوړې شوې وې نوابن مسعود رضی الله عنه عرض اوکړواې دالله رسوله! کاش چه تاسو مونږته حکم راکړې وې مونږه به ستاسودپاره څه (نرم) څیزخورکړې وې. اوڅه څیز به مو جوړکړې وې. نووې فرمائیل چه څه دې مادپاره اودنیادپاره نه یم زه اودنیامګردیوسورپشان چه دیوې اونې دلاندې ئې سورې اونیولو. او ارام کولونه پس لاړو.

﴿۳۳﴾- وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ كُنْتُ أَضْرِبُ غُلَامًا لِي فَسَمِعْتُ مِنْ خَلْفِي صَوْتًا اعْلَمْ أَبَا مَسْعُودٍ لَلّٰهُ أَقْدَرُ عَلَيْكَ مِنْكَ عَلَيْهِ فَالْتَفَتُّ فَإِذَا هُوَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ هُوَ حُرٌّ لِوَجْهِ اللّٰهِ فَقَالَ أَمَا إِنَّكَ لَوْ لَمْ تَفْعَلْ لَلَفَحَتْكَ النَّارُ أَوْ قَالَ لَمَسَّتْكَ النَّارُ. (رواه مسلم)

[مشکوة ص ۳۹۱ س ۳]

**ترجمه﴿﴾** اوحضرت ابومسعودنه روایت دې فرمائی چه مایوخل خپل مرئې وهلونومادخپل روستونه اواز واوریدلوچه اې ابومسعوده رضی الله عنه پوهه شه چه الله تعالی خامخازیات قادردې په تاباندې ستانه په ده باندې (یعنی خومره چه ته په ده باندې دوهلوقدرت لرې الله تعالی ددینه زیات په تاباندې قادردې چه تاووهی) چه کله زه متوجه شوم نو ناڅاپه هغه حضور ﷺ وه. ما (فوراً) اووئیل اې دالله رسوله ﷺ دادالله تعالی درضا دپاره ازاد دې. نوحضور ﷺ اوفرمائیل: خبرداربیشکه که چرې تاداسې نۀ وې کړې نوته به خامخااورسیزلې وې یائې اوفرمائیل ته به خامخا اورمسحه کړې وې.

﴿۳۴﴾- عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُمَا قَالَ كُنْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا فَقَالَ يَا غُلَامُ احْفَظِ اللّٰهَ يَحْفَظْكَ احْفَظِ اللّٰهَ تَجِدْهُ تُجَاهَكَ وَإِذَا سَأَلْتَ فَاسْأَلِ اللّٰهَ وَإِذَا اسْتَعَنْتَ فَاسْتَعِنْ بِاللّٰهِ وَاعْلَمْ أَنَّ الْأُمَّةَ لَوِ اجْتَمَعَتْ عَلٰى أَنْ يَنْفَعُوكَ بِشَيْءٍ لَمْ يَنْفَعُوكَ إِلَّا بِشَيْءٍ قَدْ كَتَبَهُ اللّٰهُ لَكَ وَلَوِ اجْتَمَعُوا عَلٰى أَنْ يَضُرُّوكَ بِشَيْءٍ لَمْ يَضُرُّوكَ إِلَّا بِشَيْءٍ قَدْ كَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْكَ رُفِعَتِ الْأَقْلَامُ وَجَفَّتِ الصُّحُفُ. (رواه احمدوالترمذی)

[مشکوة: ص ۳۹۱: س ۳]

**ترجمه﴿﴾** اوحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه روایت دې هغه وائې چه یوورځ زه دحضور ﷺ نه روستو ووم. نو هغوی اوفرمائیل: اې هلکه! ته الله یادساته. الله تعالی به تایادساتی. ته الله یاد کړه. الله تعالی به تابیامومی خپل وړاندې اوچه کله ته سوال کوې نودالله نه سوال کوه. اوچه

کله ته امدادغواړي نودالله نه مدد .غواړه.اوته پوهه شه چه بيشکه که چرې ټول امت جمع شي په دې خبره چه هغوی تاته نفع اورسوی دځه شي نوهغوی نفع نشي رسولې تاته دهيڅ شي ليکن دهغې چه کوم الله تعالى تادپاره ليکلې دې.اوکه هغوی جمع شي په دې خبره باندې چه تاته نقصان اورسوی دځه شي.نوهغوی نقصان نشي.رسولې تاته دڅه شي مګردهغې چه کوم الله تعالى تادپاره ليکلې دې.قلمونه اوچت کړې شوی دی اوصحيفې اوچې شوی دی.

﴿۳۵﴾- وَعَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدَاللّٰهِ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَانْطَلَقَ لِحَاجَتِهٖ فَرَأَيْنَا حُمَرَةً مَعَهَا فَرْخَانِ فَأَخَذْنَا فَرْخَيْهَا جَاءَتِ الْحُمَرَتُ فَجَعَلَتْ تَفَرَّشُ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ فَجَعَ هٰذِهٖ بِوَلَدِهَا رُدُّوْا وَلَدَهَا إِلَيْهَا وَرَأٰى قَرْيَةَ نَمْلٍ قَدْ حَرَقْنَاهَا قَالَ مَنْ حَرَّقَ هٰذِهٖ فَقُلْنَا نَحْنُ قَالَ إِنَّهٗ لَا يَنْبَغِيْ أَنْ يُعَذِّبَ بِالنَّارِ إِلَّا رَبُّ النَّارِ .(رواه ابوداود)
[مشكوة:ص۳۰۷:س۲۳]

**ترجمه**﴿ اودعبدالرحمن دپلارنه روايت دې هغه وائي چه مونږدحضورﷺ سره يوسفرکښې وو. نوحضورﷺ دقضائې حاجت دپاره لاړۀ نومونږه حمرة مارغه (دچرچڼې پشان مارغه) اوليدۀ. چه دهغه سره اوه بچي وو.مونږه هغه دواړه بچي اونيول نوهغه مرغۍ راغله اوزمونږه وړاندې وزرې خورې کړې.نوحضورﷺ تشريف راوړو.وې فرمائيل چه چا درد رسولې دې (په تکليف او ويره کښې واچوله) دې لره.ددې دبچو باره کښې.ورکړۍ دې ته بچي ددې.او نبی کریمﷺ اوليدلو دميږو کلې چه هغه مونږسيزلې وو.نو نبی کریمﷺ اوفرمائيل چا سوزولې دې داکلې.مونږ اووئيل مونږه سوزولې دې نو نبی کریمﷺ اوفرمائيل چادپاره مناسب نۀ دې چه هغه چاته داورعذاب ورکړي مګرد اوراپيدکونکی دپاره.

﴿۳۶﴾- وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِمَجْلِسَيْنِ فِيْ مَسْجِدِهٖ فَقَالَ كِلَاهُمَا عَلٰى خَيْرٍ وَأَحَدُهُمَا أَفْضَلُ مِنْ صَاحِبِهٖ أَمَّا هٰؤُلَاءِ فَيَدْعُوْنَ اللّٰهَ وَيَرْغَبُوْنَ إِلَيْهِ فَإِنْ شَاءَ أَعْطَاهُمْ وَإِنْ شَاءَ مَنَعَهُمْ وَأَمَّا هٰؤُلَاءِ فَيَتَعَلَّمُوْنَ الْفِقْهَ أَوْقَالَ الْعِلْمَ وَيُعَلِّمُوْنَ الْجَاهِلَ فَهُمْ أَفْضَلُ وَإِنَّمَا بُعِثْتُ مُعَلِّمًا ثُمَّ جَلَسَ فِيْهِمْ. (رواه الدارمي) [مشكوة:ص۳۶:س۲۳]

**ترجمه**﴿ اودحضرت عبدالله بن عمروؓ نه روايت دې چه بيشکه رسولﷺ تيرشويوځل په دوه مجلسونو باندې په خپل جومات کښې نووې فرمائيل چه دواړه نيکۍ باندې دی.په دوی کښې ديومجلس فضيلت زيات دې ددويم نه هغه خلق چه الله بللی اوشوق لري دهغه طرف ته نوکه دالله تعالى خوښه شي دوی ته به ورکړي اوکه خوښه يې شي نودهغوی نه به ئې منع

کړي.باقي داخلق (فقه) یائې اوفرمائیل چه (علم) زده کوی اوناواقفه ته ددین علم ښائی پس دوی دنورونه بهتردی.اوبیشکه زه لیږلې شوې یم صرف استاذ .بیا نبی کریم ﷺ هغوی سره کیناستلوزمعلومه شوه چه دتدریس اوتعلیم درجه دتبلیغ نه هم اوچته ده.

﴿۳۷﴾- وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰی عَنْهَا قَالَتْ جَاءَ رَجُلٌ فَقَعَدَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّ لِيْ مَمْلُوْكِيْنَ يُكَذِّبُوْنَنِيْ وَيَخُوْنُوْنَنِيْ وَيَعْصُوْنَنِيْ وَأَشْتِمُهُمْ وَأَضْرِبُهُمْ فَكَيْفَ أَنَا مِنْهُمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ يُحْسَبُ مَا خَانُوْكَ وَعَصَوْكَ وَكَذَّبُوْكَ وَعِقَابُكَ إِيَّاهُمْ فَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ بِقَدْرِ ذُنُوْبِهِمْ كَانَ كَفَافًا لَا لَكَ وَلَا عَلَيْكَ وَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ دُوْنَ ذُنُوْبِهِمْ كَانَ فَضْلًا لَكَ وَإِنْ كَانَ عِقَابُكَ إِيَّاهُمْ فَوْقَ ذُنُوْبِهِمْ أُقْتُصَّ لَهُمْ مِنْكَ الْفَضْلُ فَتَنَحَّى الرَّجُلُ وَجَعَلَ يَهْتِفُ وَيَبْكِيْ فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَا تَقْرَأُ قَوْلَ اللّٰهِ تَعَالٰى { وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ لِيَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَإِنْ كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا وَكَفٰى بِنَا حَاسِبِيْنَ } الآية فَقَالَ الرَّجُلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا أَجِدُ لِيْ وَلِهٰؤُلَاءِ شَيْئًا خَيْرًا مِنْ مُفَارَقَتِهِمْ أُشْهِدُكَ أَنَّهُمْ كُلُّهُمْ أَحْرَارٌ. (رواه الترمذی)

[مشکوة:ص۴۸۶:س۲۰]

**ترجمه**۞ اودحضرت عائشهؓ نه روایت دې فرمائی چه یوسړې راغې د نبی کریم ﷺ مخکښې کیناستلواووې ونیل اې دالله رسوله بیشکه زما یوڅوغلامان دی چه هغوی ماته دروغ وائی او زما مال کښې خیانت کوی او زما خبره نه منی اوزهٔ هغوی ته بدرد وائم. اوهغوی وهم نوزه به څنګه یم دهغوی په وجې سره(یعنی زما مستقل به څنګه وی دالله تعالی سره) نورسول اللهﷺ اوفرمائیل چه کله دقیامت ورځ شی نوحسابٌ به کولې شی دهغه څیزکوم چه ئې ستانه خیانت کړې دې اوستا نافرمانی ئې کړې ده اوکوم چه تاته ئې دروغ ونیلې وی.اوستاهغوی ته دسزاورکولوبه هم حساب اوکړې شی.که چرې ستاسزاورکول دهغوی دګناهونو برابروی نودابه کافي وی.نه به تادپاره څهٔ فائده وی اونه نقصان اوکه چرې ستاسزاورکول دهغوی دګناهونونه کم وی نوستادپاره به فضیلت وی.اوکه چرې ستا سزا ورکول دهغوي دګناهونونه زیاته وی نوستانه به دزیاتی بدله اخستلې شی.نوهغه سړې یو طرف ته شواوبه چغواوژړاسرشو.نونبیﷺ اوفرمائیل چه ولې تادالله تعالی قول نهٔ دې لوستلې(وَنَضَعُ الْمَوَازِيْنَ الْقِسْطَ) چه مونږبه دانصاف تله اودروو دقیامت په ورځ نوظلم به نشی کولې په هیڅ یونفس باندې دیوڅیز اګرچه د(اوری) ددانې برابروی.مونږ به هغه راوړو اومونږه دحساب

کولوپاره کافي يو نوهغه سړی اووئيل اې دالله رسوله! زۀ نه بيامومم دخپل خان اودهغه غلامانو دپاره بهترخيزدهغوی دجدا کولونه.زه تاګواه کوم چه هغوی ټول ازاددی.

﴿۳۸﴾- عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُولُ جَاءَ ثَلَاثَةُ رَهْطٍ إِلٰى بُيُوتِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُونَ عَنْ عِبَادَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا أُخْبِرُوا بِهَا كَأَنَّهُمْ تَقَالُّوهَا فَقَالُوا وَأَيْنَ نَحْنُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ قَالَ أَحَدُهُمْ أَمَّا أَنَا فَأُصَلِّي اللَّيْلَ أَبَدًا وَقَالَ آخَرُ أَنَا أَصُومُ الدَّهْرَ وَلَا أُفْطِرُ وَقَالَ آخَرُ أَنَا أَعْتَزِلُ النِّسَاءَ فَلَا أَتَزَوَّجُ أَبَدًا فَجَاءَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِمْ فَقَالَ أَنْتُمُ الَّذِينَ قُلْتُمْ كَذَا وَكَذَا أَمَا وَاللّٰهِ إِنِّي لَأَخْشَاكُمْ لِلّٰهِ وَأَتْقَاكُمْ لَهُ لَكِنِّي أَصُومُ وَأُفْطِرُ وَأُصَلِّي وَأَرْقُدُ وَأَتَزَوَّجُ النِّسَاءَ فَمَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِي فَلَيْسَ مِنِّي (رواه البخاري) [مشكوة:ص۲۷ :س۱۹]

**ترجمه**: اود حضرت انس ﷛ نه روايت دې فرمائي چه دررې کسانوجماعت راغې دنبي کريم ﷺ پاکو بيبيانونه.دغوی تپوس کولودرسول اللهﷺ دعبادت متعلق.چه کله هغه خلقوته اوښودلې شودهغوی دعبادت باره کښې نولکه چه هغوی درسول اللهﷺ عبادت کم ګڼړلو.نو وې وئيل مونږه چرته يودحضورﷺ پشان.حال دادې چه دهغه مخکنی اوروستنی ټول ګناهونه معاف شوی دی نوپه هغوی کښې يواووئيل چه زه به هميشه ټوله شپه مونځ کوم اودويم اووئيل چه زۀ به هميشه دورځې روژه نيسم اوهيڅ کله به روژه نۀ ماتوم اودريم اووئيل چه زۀ به دښخونه ډډه کوم پس هيڅکله به واده نۀ کوم.نو نبی کريم ﷺ تشريف راوړو.دوی ته.وې فرمائيل چه تاسوداسې داسې وينا کړې ده.خبردار! په خدائې پاك قسم چه زۀ دالله پاك نه زيات ويريږم په تاسوکښې اوزه ستاسونه زيات پرهيزګاريم دالله تعالی دپاره ليکن زه روژه هم نيسم اوکله ئې پريږدم.اوزۀ د(شپې) مونځ هم کوم او اوده کيږم هم،اوزه د ښخوسره واده هم کوم.نوچه کوم سړی زما دسنت نه اعراض اوکړو(دواده نه يادټولو کارونو نه،هغه زما نه نۀ دې ددې حديث مفصل بحث مخکښې حديث ۱۹۸ کښې تيرشوې دې.

﴿۳۹﴾- وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ صَلّٰى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَوَعَظَنَا مَوْعِظَةً بَلِيغَةً ذَرَفَتْ مِنْهَا الْعُيُونُ وَوَجِلَتْ مِنْهَا الْقُلُوبُ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَأَنَّ هٰذِهِ مَوْعِظَةُ مُوَدِّعٍ فَأَوْصِنَا فَقَالَ أُوصِيكُمْ بِتَقْوَى اللّٰهِ وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ وَإِنْ كَانَ عَبْدًا حَبَشِيًّا فَإِنَّهُ مَنْ يَعِشْ مِنْكُمْ بَعْدِي فَسَيَرٰى اخْتِلَافًا كَثِيرًا فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الْمَهْدِيِّينَ الرَّاشِدِينَ تَمَسَّكُوا بِهَا وَعَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ وَإِيَّاكُمْ وَمُحْدَثَاتِ الْأُمُورِ فَإِنَّ كُلَّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَكُلَّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ.

(رواه احمد وابوداود)[مشکوٰۃ:ص۲۹:س۲۶]

**ترجمه﴿﴾** او حضرت عرباض رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه یوه ورځ نبي کریم ﷺ مونږ ته مونځ راکړو بیا مونږ ته متوجه شو په خپل مخ مبارك سره او هغوی مونږ ته یو بلیغ وعظ اوفرمائیلو چه په هغې سره سترګې (اوښکې) اوبهیدلې او زړونه اویریدل. نو یو سړي اووئیل چه اې د الله رسوله ﷺ لکه چه دا د رخصت کونکی نصیحت دې نو تاسو مونږ ته وصیت اوکړئ. نو نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه زۀ تاسو ته وصیت کوم د الله تعالی نه ډیرې کوولو او خبرې اوریدلو او د حکم منلو اګرچه (حکم کونکې) حبشي غلام وی. بیشکه څوك چه ژوندې پاتې شو زما نه روستو، نو هغه به ډیر زیات اختلاف اووینی. نو لازم دی په تاسو باندې زما سنت او زما د خلفاء راشدینو سنت چه هدایت موندونکی دی تاسو هغه مضبوط اونیسئ او تاسو هغه په غاښونو کښې اونیسئ. تاسو ځان ساتئ د نوو خبرونه. بیشکه هره نوې خبره بدعت دې او هر بدعت ګمراهي ده. د بدعت په موضوع باندې مفصل او مدلل بحث مخکښې حدیث ۲۱۴ باندې تیر شوې دې.

﴿۴۰﴾ - عَنْ مُعَاذٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ رِدْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى حِمَارٍ لَيْسَ بَيْنِيْ وَبَيْنَهُ اِلَّا مُؤَخَّرَةُ الرَّحْلِ فَقَالَ يَا مُعَاذُ هَلْ تَدْرِيْ مَا حَقُّ اللّٰهِ عَلٰى عِبَادِهٖ وَمَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللّٰهِ قُلْتُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّ حَقَّ اللّٰهِ عَلَى الْعِبَادِ أَنْ يَعْبُدُوْهُ وَلَا يُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا وَحَقَّ الْعِبَادِ عَلَى اللّٰهِ أَنْ لَا يُعَذِّبَ مَنْ لَا يُشْرِكُ بِهٖ شَيْئًا قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَفَلَا أُبَشِّرُ بِهِ النَّاسَ قَالَ لَا تُبَشِّرْهُمْ فَيَتَّكِلُوْا. (رواه البخاري ومسلم) [مشکوٰۃ:ص۱۶۸:س۲۱]

**ترجمه﴿﴾** او حضرت معاذ نه روایت دې فرمائي چه زۀ د نبي کریم ﷺ نه روستو په یو خر باندې سور ووم او نه وه زما او د هغوی مینځ کښې لیکن د کجاوې روستې لرګې. نو حضور ﷺ اوفرمائیل: چه اې معاذه رضی الله عنه آیا! تا ته پته شته چه څه حق دې د الله تعالی په خپلو بندګانو باندې. او څه حق دې د بندګانو په الله تعالی باندې ما عرض اوکړو الله ﷻ او د الله رسول ښۀ پوهیږي. رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چه بیشکه د الله حق په بندګانو باندې دا دې چه هغوی د الله تعالی عبادت اوکړي او د هغۀ سره هیڅوك شریك نه کړي. او د بندګانو حق په الله تعالی دا دې چه هغه عذاب ورنه کړي هغه سړي ته څوك چه هغۀ له شریك جوړنه کړي. ما اووئیل چه آیا زۀ دا خوشخبري خلقو ته ورنه کړم؟ نبي کریم ﷺ اوفرمائیل چه ته خلقو ته خوشخبري مه ورکوه بیا به هغوی په هم دې باندې بهروسه اوکړي. (نو اعمال به پریږدي).

تمت بالخیر